

# حنفی فقہ

پر مذہب

حضرت امام اعظم ابو حنیفہ


مصنف

ابو المختار محمد عبد الرؤف حقیار حنفی دیوبندی

نظر ثانی

حضرت مولانا مفتی عبد الصبور محمد حنفی دیوبندی



مکتبہ قاسمیہ

کانسی روڈ کوئٹہ

📚 کفایت دینی کتب خانه 📚
په دی چینل کی دټلیګرام کتابونه نشرکیږی
دحنفی مذهب په رڼاکی
لکه تفاسیر شریف
اوفقه شریفه
اوفتاوی؟
د درجوں کتابونه
اوداسی نور کتابونه لکه.
صرف اونحو
اومنطق
اوعقائد
نوهیله لرم چی دالینک دثواب په خاطر نشر کړی
https://t.me/kafayat2395

کفایت الله واټس ایپ نمبر 03052488551

**توجه وکړي** ما دا زیمه پر غاړه اخیستي له واټسپ
له لارې یا له ټیلي ګرام له لارې تر مسلمانانو پورې pdf
کتابونه رسوم خاص د الله تعالی د رضا په خاطر چې
مسلمانان ورونه استفاده زینی واخلي نو دا کتابونه یو
نامعلومو کسانو pdf کړي ما ته له مختلفو لارو په

لاس راغلي نو دا نمبر ما ځکه ورکړي چې يو مسلمانان
ورور زما سه استفاده واخلي يا د کتاب يا سه بل داسې
نور د دين خدمت تر سو چی زموږ په وسه يې نو کم
ملګري ځی دا ګمان کوي چې دا کتابونه دي بغير له
اجازېpdf کوي نو داسې نده چې زه دی بغير له اجازې
داسې کار وکړم
که بيا هم تاسو معلومات کول غواړي نو تاسې په دا
نمبر رابطه کولي شي



د مسائل او یا د اصلاحی
موضوعات د پی ڈی ایف
ترتیب کولو د پاره رابطہ وکڑی
+923052488551

# حنفي فقه

## يا

# مختار الفتاوى

پر مذهب

د سراج الامت امام الائمة حضرت امام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه

**مصنف**

**ابوالمختار محمد عبدالرؤف حقيار حنفي ديوبندي عفی عنه**

**نظرثاني**

شيخ الحديث حضرت مولانا مفتي عبدالصبور صاحب حنفي ديوبندي عفی عنه

مدرس مدرسه قريه طاوس خېلان کوئټه

**مكتبه قاسميه**

کاسي روډ کوئټه

# د کتاب پېژندنه


د کتاب نوم :: **حنفي فقه یا مختارالفتاوی**

مصنف :: ابوالمختار محمدعبدالرؤف حقیار حنفي دیوبندي عفی عنه

نظرثاني :: شیخ الحدیث حضرت مولانا مفتي عبدالصبور حنفي دیوبندي عفی عنه
**مدرس مدرسه قریه طاؤس خېلان کوټه**

د تصنیف کال :: ۱۳۸۳هـ ش _ ۱۴۲۵هـ ق.

د چاپ کال :: ۱۳۸۳هـ ش _ ۲۰۰۴م

د چاپ شمېر :: زر ټوکه

کمپوز او ډیزاین :: هېواد کمپیوټر اداره
مکتبه قاسمیه کاسي روډ کوټه

کمپوز :: عبدالنافع افغانزی

خپرونکې اداره :: مکتبه قاسمیه کاسي روډ کوټه


د مصنف د برېښنالیک یا ایمیل ادرس: haqyar@parsimail.com





Scanned with CamScanner

Scanned with CamScanner

د فهرست پای

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده ونصلي على رسوله الكريم

اما بعد بنده حقیر کتاب چې مسمٰی په فقه حنفي سره ده

جلد اول او دوم مطالعه کړل او ددغه مسائل ډیر زبده او صحیح ده

او د عوامو له مسلمانانو سره ډیر فایده منده ده امید لرم چه ټول ملت مسلمه

ته مفید وګرزي او مولوي صاحب عبدالرؤف حقیار په

خپل ډیر زیار سره حنفي فقه مسلمانانو ته عموما په اسانه

ژبه وړاندې کړې ده الله تعالی دې قبول کړي

حقیر محمد عبدالمعبود عفی عنه محمد العبود مخفي

مدرس مدرسه قمریه کادس صفتون کوئټه مورخه ۱۵ / رجب المرجب ۱۴۲۵

بسم الله الرحمن الرحيم

# د مصنف له خوا سريزه

## وبه نستعين

الحمدلله العليم الخبير، والصلاة والسلام على سيدنا محمدالبشير النذير، وعلى آله وصحبه أئمة الهدى ومصابيح الحياة، ورضي الله تبارک وتعالى عن أئمة الاجتهاد من السلف الصالح صحبًا وتابعين، وتابعيهم بإحسان الى يوم الدين.

خدای شته چې له ډېره وخته مې دا ارمان درلود، چې د ښو او نيکو يعني اسلامي اخلاقو لپاره د خپل وس مطابق زموږ د هيواد په ملي يعني پښتو ژبه يو کتاب د کتاب الاخلاق په نامه وليکم، ځکه چې زما په فکر زموږ د ټولني د وګړو ددغه علم وتحصيل ته بېخي ډېر ضرورت دی، دا خبره تاسي ښې له چون ؤ چرا راسره ومنئ چې نن سبا زموږ د ټولني د وګړو په اخلاقو کي بې اندازې زيات ضعف او فساد راغلی دی. مبالغه بېې نه کړم که ووايم چې دوی اوس نږدې وداسي مرحلې ته رالنډ شوي دي چې ښه اخلاق بېخي پېژني لا هم نه، دوی نه پوهيږي چې اسلامي اخلاق څه دي او نه دا ورته معلومه ده چې اسلام موږ ته څه رازده کوي، د دوی په فکر اسلام صرف د پنځه وخته لمانځه، يوې مياشت روژې او حج نوم دی او بس

دا سمه ده چې لمونځ، روژه او حج د اسلام د مقدس دين د پنځو مهمو او سترو ارکانو د جملې څخه دي مګر متأسفانه چې دوی په دې نه پوهيږي چې سربېره پر نورو مهمو مقاصدو له دغو پورتنيو عباداتو څخه مهم او ستر مقصد د انسان د ښو اخلاقو روزنه او تکميل دی، دا نکته په قرآن شريف کي هر ځای په ډېر ښکاره او واضح ډول سره څرګنده کړل شوې ده لکه چې قرآن مجيد د لمانځه يوه ستره فائده دا ښوولې ده چې لمونځ انسان د بدو کارونو او بدو خبرو څخه راګرځوي لکه چې فرمايي: اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ.

(سورة العنکبوت آيت ۴۵)

**ترجمه**: بېشکه لمونځ منع کوي (لمونځ کوونکی) له بې حيايي او له بدو کارونو څخه

او د روژې په خصوص کې يې ښوولي دي چې روژه د تقوی درس او تعليم ورکوي، زکوة خو ټول د انساني همدردۍ درس او سبق دی، حج هم په مختلفو طريقو زموږ د اخلاقي اصلاح او ترقۍ ذريعه او د خپل ځان او نورو سره د مرستې او امداد يوه وسيله ده.

له دې تفصيل څخه دا خبره څرګنديږي چې که د دغو څلورو ارکانو جلاجلا نومونه هر څه چې دي هغه به وي، مګر د دوی په بنيادي مقاصدو کې د اخلاقي تعليم راز پټ دی. که له دې عباداتو څخه دا روحاني او اخلاقي ثمره ظاهره نه شي نو په دې صورت کې بايد انسان په دې حقيقت پوه شي چې دا د الهي احکامو تش لفظي تعميل دی، د عبادت د جوهر او معنی څخه بېخي تش او خالي شيان دي

دا راز عبادتونه د هغې ونې مثال لري چې شنده وي او مېوه نه کوي او د هغه ګل مثال لري چې بوی نه لري او د هغه جسم مثال لري چې روح پکښې نه وي، جناب رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې لمونځ د عاجزۍ، فروتنۍ، زارۍ او د خدای ﷻ سره پر صراط مستقيم باندې د سيده تللو د وعدې کولو نوم دی او دا خبره چې دواړه لاسونه يو ځای په لمانځه کې سره وتړي او په دې وينا پيل وکړي چې (ای زما الله) نو څوک چې په دې خبره پوه نه شي د هغه لمونځ ناقص دی او په پخوانيو کتابونو کې راغلي دي چې پاک خدای ﷻ وايي: زه د هر چا لمونځ نه قبلوم زه د هغه چا لمونځ قبلوم چې د هغه سر زما د عظمت په مخکې ټيټ او کښته وي او زما پر بندګانو خپله لويي نه ثابتوي او د هغه چا لمونځ قبلوم چې بې وزلو ته يوازې زما په نامه ډوډۍ ورکوي او همدارنګه جناب رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې: لمونځ د همدې کار لپاره فرض کړل شو او همدارنګه د حج ارکان يوازې د دې لپاره جوړ او مقرر کړل شول چې د خدای ﷻ يادونه وکړل شي. نو که د چا په زړه کې دا کيفيت پيدا نه شي چې د عبادت څخه مقصد يوازې همدغه کيفيت دی، نو تاسي ووایاست د دا راز خدای يادولو قدر او قيمت به څه وي؟

په حديث شريف کې راغلي دي چې پيغمبر ﷺ فرمايلي دي: هغه لمونځ چې انسان د بدو چارو او ګناهونو څخه منع نه کړي، نو په دې وپوهيږئ چې دغه راز لمونځ انسان د خدای ﷻ څخه نور هم ډېر ليرې کوي.

دا وروستی حديث ابن جرير، ابن ابي حاتم او نورو اهل تفسيرو محدثينو په خپلو کتابونو کې په سند سره ذکر کړی دی او حافظ ابن کثير په خپل تفسير د (عنکبوت په سورة) کې دا ټول



روايتونه سره يو ځای کړي دي. د دې حديث په دوهم روايت کې الفاظ دا دي: هغه لمونځ چې سړی د بدو چارو څخه منع نه کړي هغه لمونځ نه دی.

**(تفسير ابن کثير سورة عنکبوت ايت مذکوره)**

دغه راز الفاظ جناب رسول الله ﷺ د روژو په خصوص کې هم فرمايلي دي. ارشاد وشو چې که څوک روژه نيسي مګر له درواغو او فريب څخه لاس وانه خلي نو خدای ﷻ دې ته ضرورت نه لري چې انسان خپل خوراک او څښاک پرېږدي

**(صحيح بخاري، جامع ترمذي، ابوداؤد او ابن ماجه کتاب الصوم)**

له دې تعليمونو څخه به تاسي ته دا اندازه لګېدلې وي چې د عبادتونو يو مهم او ستر مقصد د اخلاقو تزکيه ده

دا چې جناب رسول الله ﷺ د څه لپاره رالېږل شوی دی او د ده مبارک د بعثت مقصود څه دی؟ د دې سوال جواب پخپله د بشريت ستر حاکم جناب محمد رسول الله ﷺ فرمايلي دی.

بُعِثْتُ لِاُتَمِّمَ حُسْنَ الْاَخْلَاقِ. **(موطا امام مالک حسن اخلاق)**

**ترجمه**: زه د ښو اخلاقو د تکميل لپاره رالېږل شوی يم

دا د امام مالک رحمه الله د مؤطا روايت دی. په مسند احمد، بيهقي، ابن سعد او نورو کې له دې څخه هم په ډېرو صافو الفاظو کې راغلي دي چې جناب رسول الله ﷺ وويل: اِنَّمَا بُعِثْتُ لِاُتَمِّمَ مَكَارِمَ الْاَخْلَاقِ.

**ترجمه**: زه د دې لپاره رالېږل شوم چې د ښو اخلاقو تکميل وکړم

قرآن مجيد ځای پر ځای د حضرت محمد ﷺ په تعريف او ستاينه کې داسې فرمايلي دي چې وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ. **(سورة جمعة ايت ۲)**

**ترجمه**: دا پيغمبر بې سواده او ناپوه خلک پاک او صفا کوي او هغوی ته د کتاب او حکمت د خبرو تعليم او ښوونه کوي

په اسلام کې اخلاق هغه يوازينی معيار دی چې د دې معيار په ذريعه د انسانانو په منځ کې د يو بل څخه مرتبې او درجې فرق کوي لکه جناب رسول الله ﷺ چې فرمايي: خيارکم احسنکم

اخلاقًا. (بخاري كتاب الادب)

**ترجمه**: په تاسي ټولو کي ډېر ښه، هغه څوک دی چي د هغه اخلاق تر ټولو ښه وي.

په يو بل حديث کي بيا راغلي دي:

مامن شئٍ يوضع فی الميزان اثقلِ من حسن الخلق.

**ترجمه**: (د قيامت په) تله کي به د ښه خوی څخه ډېر دروند بل هيڅ شی نه وي.

په يو بل حديث کي راغلي دي چي بنده ته چي د خدای له خوا کوم شيان ورکړل شوي دي په هغو ټولو کي د ښو اخلاقو تحفه تر ټولو ښه او جګه ده د حديث عربي الفاظ په دې ډول دي خيرما اعطی الناس خلق حسن.

**ترجمه**: خلکو ته چي د خدای له خوا کوم شيان ورکړل شوي دي په هغو ټولو کي ډېر ښه شی ښه اخلاق دي

دا حديث په حاکم، نسائي، ابن ماجه، ابن حنبل، طبراني او ابن ابي شيبه کي په مختلفو الفاظو راغلی دی، دې زېري د اخلاق حسنه يعني ښو اخلاقو نعمت د نورو ټولو انساني نعمتونو څخه ډېر جګ او پورته کړ، همدارنګه په يو بل حديث کي بيا جناب رسول اللهﷺ داسي وويل احب عبادالله الی الله احسنهم اخلاقًا. (طبراني)

**ترجمه**: دا اللهﷻ په بندګانو کي خدای ته ډېر ګران هغه څوک دی چي د هغه اخلاق تر ټولو ښه وي

له دې څخه دا خبره معلومه شوه چي ښه اخلاق په حقيقت کي د خدای او د خدای د رسول د محبت يوه ذريعه ده لکه جناب رسول اللهﷺ چي فرمايي دي:

ان احبّکم الیّ واقربکُم منی فی الاخرة مجالس محاسنکم اخلاقًا وانّ ابغضکم الیّ وابعدکم منّی فی الاخرة مساويکم اخلاقًا. (ابن حنبل، طبراني، ابن حبان وشعب الايمان بيهقي)

**ترجمه**: په تاسي کي ماته تر ټولو ګران او په ناسته کي ماته تر ټولو نژدې هغه څوک دی چي په تاسو کي هغه د ښو اخلاقو خاوند وي او ماته د ټولو څخه ناخوښه او په قيامت کي به له ما څخه ډېر ليري هغه څوک وي چي هغه په تاسو کي بد اخلاق يعني د بدو اخلاقو خاوند وي/

د جناب رسول اللهﷺ په مبارک عهد کي دوې صحابياني ښځي وې. په دغو دوو کي به يوې



ټوله شپه لمونځونه کول او د ورځي به يې روژې نيولې او خيراتونه به يې کول. مګر سره ددې د داسي بدي خولې او بدي ژبي ميرمن وه چي ددې بدي ژبي په اثر يې د کور، کلي او ګاونډ خلک تر پزې رسولي او ډېر زيات يې تنګ کړي وه.

او دغه دوهمه ښځه چي وه هغې فقط لمونځ کاوه او غريبانو ته به يې هم لږ ډېر څه ورکول، مګر چا ته به يې تکليف نه رساوه. د جناب رسول اللهﷺ څخه ددغو دوو ښځو په خصوص کي پوښتنه وشول پيغمبرﷺ د لومړۍ ښځي په هکله وويل چي "هغه کومه نيکي نه لري او د خپلي بد اخلاقۍ سزا به ګالي" او د دابلې ښځي په هکله يې وويل چي "هغه به جنتي وي". (ادب المفرد د امام بخاري صاحب رحمه الله باب من لايوذی جاره)

ددې دواړو بيبيانو د سيرتونو او اخلاقو په خصوص کي چي کوم مختلفي نتيجې د اسلام د پيغمبر جناب رسول اللهﷺ د مبارکي خولې څخه څرګندي شوي دي هغه په اسلام کي د اخلاقو مقام او حيثيت په پوره ډول څرګندوي

حضرت براء بن عازبرضی الله عنه وايې چي يو سحرائي د جناب رسول اللهﷺ په خدمت کي حاضر شو او عرض يې وکړ چي ماته يو داسي کار راوښيه چي هغه کار ما جنت ته بوزي، جناب رسول اللهﷺ ورته وويل

"انسان د غلامۍ څخه آزاد کړه، د انسان څټ د قرض د ځنځيرونو څخه خلاص کړه. او د ظالمو خپلوانو لاس ونيسه او که ته دا نه شې کولای، وږي ته ډوډۍ ورکړه، تږي ته اوبه کړه، خلکو ته ښه لاره وروښيه او له بدۍ څخه يې منع کوه او که دا هم نه شې کولای نو بې له ښو خبرو په بل شي ژبه مه ښوره وه". (مشکل الاثار د امام طحاوي رحمه الله جلد ۴ صفحه ۲)

که سړی زموږ د ټولني د وګړو اخلاق تر څېړني لاندي ونيسي نو ډېر ژر به دا ورته جوته شي چي څومره ټيټ دي، دغه خلک ښه اخلاق نه پېژني، د خدایﷻ او د هغه د بندګانو حقوقو ته هيڅ اهميت نه ورکوي، انسان او انسانيت ته احترام نه لري، د همدردۍ او احسان په معنی نه پوهيږي، ظلم، ناروا، قتل او قيتال، د نارينه او ښځينه حقوق خوړل، دروغ ويل، چم او فريب، فتنه او فساد خپرول او په دغو ناروا اعمالو خوشحاله کېدل، ويني تويول، حق پټول دا ډول په لسګونو او سلګونو بد عملونه د دوی عادت ګرځېدلي اصلاً دا ډول وګړي خپل ځان نه پېژني، نه پوهيږي چي موږ څوک يو د څه لپاره پيدا شوي يو او بايد څه وکړو او نه په دې پوهيږي چي

دا چې داسلام مقدس دین د هر ملت ، قوم او هر وګړي د حقوقو ساتونکی دی ، هر ملت ته پکښې د هغه حق ورکول شوی دی ، ځکه چې د دې دین بنسټ خو پر عدل ، انصاف او اخوت ولاړ دی ، هیڅ قسم ظلم ، تېري او بې عدالتی ته پکښې ځای نه دی ورکول شوی ، ځکه دا دین خو دیو ستر قانون درلودونکی دی ، ددې قانون جوړوونکی خو داسې ستر قانون پوه دی څوک چې د ټولو مخلوقاتو خالق او مالک دی، د ټول عالم جوړوونکی دی او ددوی لپاره یې یو سوچه او شفاف قانون هم جوړ کړی دی ، په دې قانون کښې یې د خپل مخلوق لپاره قوانین او مقررات وضع کړي دي او انسان ته یې پردې قانون د سیده تللو امر کړی دی ، ځکه چې دا قانون خو دانسان دسعادت او نیک بختی موجب دی، خپلو بندګانو ته پکښې توصیه شوې ده چې د مظلومانو له حاله ځان خبر کړئ او اوښکي یې پاکې کړئ ، د هیچا پر حق ستر ګي مه پټوئ ، هر چاته خپل خپل حقوق ورکړئ، یو سړی که غریب وي د هغه سره اشنا یې مه قطع کوئ، بلکې مرسته ورسره وکړئ، سړیتوب او انسانیت مه هېروئ ، په ځانونو کښې یو اسلامي او ملي شعور پیداکړئ ، په دنیا کښې د زړونو مملکت لاندې کړئ ، تول د وړونو په شان ژوند وکړئ او دلوی خدای ﷻ رسی ټینګه ونیسئ ،ترڅوچې په سعادت پوري وتړل شئ.

وړونو : مسلمان لره ښایي چې د ژوندپه هرپړاو کې دلوی خدای ﷻ او دده دستر رسول ﷺ وګران قیمته هدایاتو ته ملتفت شي او خپله اجتماع او اخلاق دومره نېك اوښه کړي چې دغیر مسلم قومونو زړونه و دې مقدسې لاري ته رامات کړي ، غیر مسلم قومونه او هم خپل ځانونه په سعادت پوري وتړي او د بدبختي څخه یې وژغوري ، ځکه چې مسلمانان باید د عزت او اعتبار څښتنان وي ، مسلمان باید نه یوازې فکر لرونکی شي، بلکې فکر پالونکی هم شي ، او دژوند لپاره جمال اوجلال دواړه پیدا کړي .

وړونو! مسلمان باید حق شناس وي ، حق ووایي او دحق اظهار خپل فرض وګڼي ، خپل مال سر او خپل مقام ونه ساتي بلکې حق او حقیقت وساتي، د ظلم ملا باید ماته کړي. دا کار د حق په اظهار سره کېږي، ځکه چې که حق اوحقیقت ظاهره نشي او لکه



مستوره مېرمن په حجاب کې وي حق مري او د حقیقت رڼا مړه کیږي ، مسلمان باید فکر وکړي چې که زه د حقیقت په اظهار کښې زیان ووینم څه پرواه نشته ، داسې نه چې حقیقت زما د چوپوالي له امله زیانمن شي ، ځنې وګړي بیا وایي چې د حقایقو په اظهار کښې د وخت او محیط غوښتنې په نظر کې نیول په کار دي ، زما په نظر دا د حق او حقیقت لپاره حدود ټاکل دي او د قید او شرط لاندې یې راوستل دي ، نو د حق او حقیقت لپاره حدود ټاکل او د اشخاصو تر قیودو او شرطونو لاندې یې راوستل د حق او حقیقت سره مجادله او مبارزه ده .

که څوک لږ ژور فکر وکړي نو دا خبره په ډېره ښه توګه ورته جوتیږي چې دا ټوله مشکلات موږ ته زموږ د جهل او ناپوهی څخه پېښ دي ، موږ ځانونه مسلمانان ګڼو خو له بده مرغه چې په اسلامي ارشاداتو خبر نه یو ، علم او پوهه مو لږه ده اونه ورسره شوق لرو ، مګر حال دادی چې اسلام تر هر څه زیات وعلم ته ډېره پاملرنه کړې ده ، علم یې پر نر او ښځې فرض کړی دی ، خوله بده مرغه زموږ په ټولنه کښې د علم غوندې وستر دولت ته هیڅ اهمیت نه ورکول کیږي بلکې د ښځو تعلیم خو بیخي شرم او بېغور ګڼل کیږي دوی نه پوهیږي چې علم د اسلام د سترو فرائضو څخه دی ، د اسلام د مقدس دین ستر پیغمبر او د انسانیت او بشریت ستر معلم جناب محمد رسول الله ﷺ په دې هکله څه دا راز فرمایي: اَلْعِلْمُ فَرِيضَةٌ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ. (**مشکوة شریف صفحه۳۳** )

یعني علم پرهر مسلمان نر وي اوکه ښځه فرض دی ، همدارنګه د کائناتو مالك او خالق په خپل لوی کتاب قرآن کښې د هغه چا درجې ډېرې لوړې ښیي څوك چې علم او پوهه لاسته راولي نو ځکه فرمایي :

يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِينَ اٰمَنُوا مِنْكُمْ وَالَّذِينَ اُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجٰتٍ ○ ( **سورت المجادلة آیت ۱۱**)

**ترجمه**: پورته کوي الله ﷻ په درجو کښې هغه کسان چې ایمان لري ستاسو څخه او هغه کسان چې علم او پوهه ورکول شوې ده.

او دسورت الزمر په نهم آیت کښې بیا خپل خوږ نبي ﷺ مخاطب کوي او ورته فرمایي: ووایه ( ای محمده ! ) آیا هغه کسان چې علم او پوهه لري او هغه کسان چې علم او پوهه

نه لري سره برابر دي ؟.

همدارنګه د اسلام د مقدس دین سترصدر جناب محمدرسول الله ﷺ په جامع ترمذي کښي فرمايي: مَنْ خَرَجَ فِي طَلَبِ الْعِلْمِ فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللهِ حَتَّى يَرْجِعَ. يعني هغه څوك چي د علم او عرفان په طلب کښي د کوره ووزي تر څو چي بېرته راځي د خداى ﷻ په لاره کښي بلل کيږي

خو متاسفانه چي ډېر داسي وګړي شته چي علم ته چنداني اهميت نه ورکوي. زما په فکر دا ډول خلکو اصلاً خپل ذوق لـه لاسه ورکړی دی، او د شعوري احساس برخه يې نيمګړې ده. ځکه کوم خلك چي لـه علم او معنى سره ښه نه وي اشنا شوي او عرفاني ذوق يې نه وي پيدا کړی هغوی علم اومعرفت ته خپل ضرورت نه حس کوي اونه عرفاني رجال پکښي ډېر قدر پيدا کولای شي. ځکه چي بې علمه خلکو ته معارف هم داسي په نظر ورځي لکه يو عـالم چي جهل اوناپوهی ته په بد نظر ګوري. دا وګړي کـه هر ډول مثبت يا منفي فکر ولري عرفاني رجال بايد د دوی سره تعاون وکړي او دوی بايد دپوهي په ارزښت خبر کړي. خپله رابطه ورسره ونه شکوي . ځکه چي دا خلك د غريبانو پـه شان دي، نو که يو سړی غريب وي د هغـه سره بـه سړی اشنايي قطع کوي او کـه بـه مرستـه ورسره کوي؟

زما پـه نظر هغـه چاتـه ژوندی وګړی نشي ويـل کېدای چي پوهه او بصيرت ورسره ملګرې نه وي. صرف ګېده مړول ، پـه ښـه کور کښي اوسېدل او ښـه اغوستل د ژوند لومړي ضرورتونه دي . مګر کـافي نـه دي، پـه ژونـد کښي پوهه او بصيرت ، د ذهن او روح اطـمينان. دايندې په نسبت ښه انتظار، د انسـاني ازادۍ او بشري حقوقو تـامين او تکميل ډېر ضرورتونه دي ، خو دد غو ټولو شيانو پېژندل په علم او معـارف سره کېدای شي. دا خبره خو به راسره منئ چي د کائناتو پر تخليق باندي غور او فکر کول زموږ د ټولـو فـرض دی . نو چي دا مـو ومنل اوس ددې خبري څخه هم انکـار مـه کوئ چي ددې کـار د ښـه اداتيګي لپاره د علم حاصلول ډېر ضروري دی

اصلاً بايد د جهل داتوره کتبوه په هره ذريعه چي وي ماته کړل شي.دافاصله چي زموږ



او د عرفان تر منځ موجوده ده ورکه کړل شي ، موږ بايد ژر ژر قدمونه ور واخلو ، تر څو چي موږ په دوارو جهانو کښي سرلوړي شو، هو فکر مو وي چي تر ټولـو زيـات بيـا بـايـد د ښځو و تعليم ته نظر وکړو ځکه چي مور د کوچني لپاره لومړی مدرسه ده، که څوک فکر وکړي د يوه سړي تعليم د يوه فرد تعليم ګڼل کيږي مګر د يوې ښځي تعليم د ټولي کورنۍ تعليم دی موږ بايد دعلم او عرفان سره عشق پيدا کړو ، دا عشق بايد تر هغه عشق چي مجنون يې دليلا سره لري لا هم زيات وي،انسان بايدد داسي شي سره عشق ولري چي پايلي يې ډېري لوړي وي د بلبل او بورا په شان نه وي چي په ظاهري ښکلتوب و غوليږي او ددې جهان په هغو ګلانو پوري زړه بايلي چي دمني باديې ډېر ژر فنا کوي

دا حق خو نر او ښځي ته اسلام ورکړی دی ، بلکي نه يوازي دا چي دا حق يې ورکړی دی په ډېر شدت سره يې خپل ټول پيروان د علم پر حاصلولو امر کړي دي او ورته فرمايلي يې دي چي د علم وحاصلولو ته هيڅکله د پای ټکی مه ږدئ . بلکي تر مرګه پوري د علم او پوهي په طلب پسي ګرځئ هم دا خو د اسلام د سپېڅلي دين د ستر معلم او لارښود جناب محمد رسول الله ﷺ فرمان دی چي عملي کول يې پر موږ ټولو فرض دي، نه پوهېږم چي چا زموږ او دعلم تر منځ توري کتهوي وګرځولې او زموږ زړونه يې ددغه نعمت څخه رامات کړه او موږ يې دجهل په تارکيو کښي وغورځولو زموږ ګران هيواد افغانستان خو يو وخت د علم او پوهي ځانګو پاتـه شوې ده او ډېر ستر پوهان او مېړني بچيـان يې زېږولي چي تر ډېرو ليري سيمو پوري يې علم او پوهه رسولې مګر افسوس دی چي اوس د جهل په تاريکيو کي پروت دی نو ځکه د يوه مشکل سر او د بل پای دی

زما په نظر په هغه ټولنه کي چي علم او پوهه نه وي هر څه بـه پټ وي ، تيـاره بـه وي. تور تم به وي، هيڅوك به څه نه ويني او د هر چا پر سترګو به توري پردې خپرې وي، ښه او بد به ځان نه ښکاره کوي، مګر په دې پوه شه په هغه ټولنه کي چي علم رواج شي. نو به هيڅوك هم خپل معايب نه شي پټولای که څوك هر څومره کوښښ هم وکړي چي خپل نواقص پټ کاندي او ښايسته رنګونه ورپوري و موږي کاميابېدای نشي خواري به يې عبث وي.

زما څخه د معمول په شان خبره اوږده شول هو رشتیا دا خبره مي کول چي ما د ډېره وخته دا ارمان درلود چي د کتاب الاخلاق په نامه وخپلو وګړو ته د خپل هیواد په ملي یعني پښتو ژبه یو کتاب ولیکم او په دې کتاب کي د اسلام د مقدس او سپېڅلي دین د تعلیم تر ټولو غټ مقصد چي د نفس تزکیه او خپل پیروان د ښو اخلاقو په ګینه ښایسته کول دي. یعني د ښو او اسلامي اخلاقو یوه ذخیره راجمع کړم. د لوی خدای ﷻ په فضل په دې مقصود کي تر ډېره بریالی هم شوم خو یوه ورځ زما ورور ښاغلي عبدالباقي جان راته وویل چي زموږ د ټولني د خلکو طبیعت دادی چي دوی اکثره د اخلاقو پر موضوع لیکل شوي کتابونو ته خاص اهمیت نه ورکوي. بلکي ددې په پرتله وفقهي مسائلوته لږ ډېر توجه کوي. ښایي چي ته په دې هکله یو کتاب ولیکې او خپل هغه مقصد چي خلکو ته د اسلامي اخلاقو رسول او د خپلي ټولني د وګړو اصلاح ده په دې کتاب کي ځای کړې

هو که سړی فکر وکړي رشتیا هم زموږ د خلکو طبیعت څه بل ډول دی. نور خلک ډېر ځله د داسي شي په تلاښ کي وي چي د دوی سره نه وي او دوی ځیني محروم او بې برخي وي د مثال په توګه ړوند له خدایه دوې سترګي غواړي. وږی په ډوډۍ پسي ګرځي . تږی د اوبو په تلاښ وي. ناروغ روغ صورت پاچاهي بولي او د یوه عاشق غوښتنه بیا د معشوقې وصال وي . ځیني بیا د حکومت ویوې لوړې رتبې ته ځان رسول خپله ارزو ګڼي . ډېر خلک بیا د پیسو ګټل او پیدا کول غنیمت ګڼي . مطلب دادی چي د هغه شي په تلاښ پسې وي چي دی یې نه لري مګر زموږ د ټولني وګړي بیا څه بل راز طبیعت لري که څه هم هغه شی چي دوی به یې نه لري نه ورپسي ګرځي او ضرورت نه ورته حس کوي. مثلا د ښو اخلا قو او تعلیم کمزوري لري . مګر یوه ته لا هم ضرورت نه ویني

ما چي د خپل ورور څخه دا خبره واورېدل. نو مي په جواب کي ورته وویل چي ما خو دا ټینګ هوډ کړی دی چي په خپله مورنی. یعني پښتو ژبه به دغه د اسلامي اخلاقو کتاب چي د **کتاب الاخلاق الاسلامي** په نامه مو نومولی دی که د خدای ﷻ رضا وه پای ته رسوم او د خپلي ټولني د وګړو د اصلاح په نیت به د لوی خدای ﷻ د رضاء د حاصلولو په مقصد د ښو او اسلامي اخلاقو یوه ذخیره وړاندې کوم .په دې کتاب کي به د جناب محمد رسول الله ﷺ د مبارک سیرت تر څنګ د صحابه کرامو تابعینو او نور د امت د اولیاوو واقعات او ارشادات رانقلوم او ددې



کتاب په یوه برخه کي به د ډېرو داسي پوښتنو جوابونه چي د غیر مسلمو له خوا پر اسلام کېږي او هغه د ناپوهو مسلمانانو د بې لارې توب سبب جوړېږي او یا پخپله د ځینو مسلمانانو په زړونو کي پیدا کېږي رانقلوم. مګر ستا مشوره مي هم خوښه ده. دا چي د فقهي مسائل ښه په روانه خوږه پښتو لیکلو ته هم زیات ضرورت دی. یو کتاب به د **حنفي فقهي یا مختارالفتاوی** په نامه که د خدای ﷻ رضا وه لیکم. نو هغه ؤ چي د کتاب الاخلاق پاته برخه مي د څه مودې لپاره وځنډول او په حنفي فقه مي پیل وکړ. په دې هکله مي د ځانه سره دا ټینګ هوډ کړی دی چي که خدای توفیق راکړ د خپل هاند او کوښښ سره سم به دغه کتاب تر ۱۵ او شلو جلدونو پوري رسوم او په دې کتاب کي به د نورو مسائلو تر څنګ نوي او جدید راپیښېدونکي مسائل هم ښه په کثرت سره د نن زماني د غوښتنو او مشکلاتو د په نظر کي نیولو سره رانقلوم

خو فکر مو باید وي که چیري ددې کتاب یوه حواله د هغې صفحې پر برابر پیدا نه شي چي موږ لیکلي دي. نو تاسي باید په هغه کتاب کي د مسئلې فصل او باب پیدا کړئ. موږ تقریبا د هرې حوالې سره د کتاب فصل او باب لیکلی دی. نو د حوالې د پیدا کولو لپاره باید د هغه کتاب فصل او باب ته رجوع وکړئ. دا ځکه چي دا اوس زما سره د ردالمحتار دري نسخې پرتې دي. نو ځیني حوالې مو د یوې نسخې څخه را اخیستي دي او د هغې نسخې صفحه او جلد مو ورکړی دی او ځیني مو د بلې نسخې څخه را اخیستي دي او د هغې نسخې صفحه او جلد مو لیکلی دی. د نورو کتابونو هم همدا حال دی یعني ضرور د هر کتاب د نوو کمپیوټري او زړو نسخو د صفحو تر منځ فرق موجود وي نو تاسي کولای شئ چي د هر کتاب په هره نسخه کي ددې حوالې پیدا کړئ. خو په دې شرط چي د هغه کتاب باب او فصل ته رجوع وکړئ. مثلاً ددې کتاب یعني حنفي فقهي د لومړي جلد په ۵۴۶ صفحه کي د غنیة المستملي د ۱۲۲ صفحې ته حواله ورکول شوې ده مګر زما سره بله پخوانی نسخه پرته ده په هغه کي دغه مسئله په ۱۴۸ صفحه کي راغلې ده . همدا رنګه ددې کتاب په ۵۸۰ صفحه کي د طحطاوي د ۲۳ صفحې ته حواله ورکول شوې ده . مګر په نوې د قدیمي کتب خاني کراچي په چاپ شوې نسخه کي دغه حواله په ۴۱ صفحه کي پیدا کولای شئ . یعني د خپلي اساني لپاره د هر کتاب په هره نسخه کي که زوړ چاپ وي او که نوی و نو موږ د باب او فصل ته رجوع وکړئ او خپله مسئله

هلته ښه په اسانی سره ولټوئ

پته دي نه وي چي زما چاپ شوي او غير چاپ شوي تصانيف او ژباړي اوس مهال تقريبا ولسو ته رسيږي. خبره داده چي زه د مهاجرت په داسي سختو شرائطو کي قرار لرم چي د مطالعو او ليکنو لپاره صرف د شپي برخه لرم. نو څه چي مي کړي دي. دا هر څه مي تقريبا د شپي له خوا کړي دي. د شپي له خوا تر ډېره ويښ پاته شوی يم او څه علمي خدمات مي سرته رسولي دي اثار مي هم پخپلو پيسو چاپ کړي او ځيني مي خپلو ملګرو او دوستانو ته بې له قيمته همداسي په وړيا توګه هم ورکړي دي

په آخره کي د خپل ګران ورور عبدالنافع افغانزي او تر ټولو کشر ورور فضل الباري بريالي څخه مننه کوم چي زما د کتابونو په کمپوز کي يې بې دريغه زيار ګاللی دی او په ډېره ښه توګه يې زما کتابونه کمپوز کړي دي

او د درنو استادانو او ښاغلو محققينو څخه په ډېر درناوي سره هيله کوم که چيري زما په ژباړو او تصانيفو کي يوه سهوه يا غلطي ووينې. نو سمدستي دې ماته په ګوته کړي چي په بل ځل چاپ کي يې اصلاح کړو. او د ګرانو لوستونکو څخه بيا هيله لرم که کومي پوښتني لري او يا ددې کتاب په هکله کوم وړانديزونه لري . د ډاک له لاري دي پر دې پته خطونه راوليږي انشاء الله پوښتنو ته به يې د جوابونو په ورپيدا کولو کي ډېر کوښښ وشي او سوالونه به يې د خپلو نومونو سره او د ورپيدا کړو جوابونو سره يو ځای ددې کتاب په نورو ټوکونو کي ځای کړل شي

پته د پوستي له لاري داده (مکتبه قاسميه کانسي روډ کوئټه) او که د ايميل له لاري خط راليږل غواړي نو کولای شي چي د ايميل يا برېښناليک له لاري يې راوليږي. زما د ايميل يا برېښناليک پته د کتاب په پيژندپاڼه کې ليکلې ده. په اخره کي د ګرانو لوستونکو خويندو او وروڼو څخه د زړه له کومي هيله کوم چي زما په هکله د مغفرت دعاء وکړئ فقط

والسلام

په ډېره درناوي

ابوالمختار محمد عبدالرؤف حقيار حنفي ديوبندي کندهاري عفي عنه





# بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحيم

## کلمه طيبه څه شی ده

**پوښتنه**: د اسلام کلمه څه شی ده؟

**جواب**: د اسلام کلمه داده:

لَاإِلٰهَ اِلَّا اللهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ.

**ترجمه**: د الله ﷻ څخه ما سيوا بل هيڅوک د عبادت او بندګی لائق نشته، محمد ﷺ د الله ﷻ رسول دی.

دغه کلمه "کلمه توحيد" او "کلمه طيبه" نوميږي.

## کلمه شهادت څه شی ده

**پوښتنه**: کلمه شهادت څه شی ده؟

**جواب**: کلمه شهادت دا ده.

اَشْهَدُ اَنْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاَشْهَدُاَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

**ترجمه**: زه شاهدي ورکوم چي د الله ﷻ څخه ماسيوا بل هيڅ معبود يعني

د عبادت کولو لائق نشته، او زه شاهدي ورکوم چې محمد ﷺ د الله ﷻ بنده او د هغه رسول دی.

## ایمان مجمل څه شی دی

**پوښتنه**: ایمان مجمل څه شی دی؟

**ځواب**: ایمان مجمل دا دی:

آمَنْتُ بِاللّٰهِ كَمَا هُوَ بِأَسْمَائِهِ وَصِفَاتِهِ، وَقَبِلْتُ جَمِيعَ أَحْكَامِهِ.

**ترجمه**: زه ایمان لرم پر الله ﷻ باندې، څرنګه چې هغه د خپلو ټولو نومونو او صفتونو سره دی، او ما د هغه ټول حکمونه منلي دي.

## ایمان مفصل څه شی دی

**پوښتنه**: ایمان مفصل څه شی دی؟

**جواب**: ایمان مفصل دا دی:

آمَنْتُ بِاللّٰهِ وَمَلٰئِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، وَالْقَدْرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ مِنَ اللّٰهِ تَعَالٰى وَالْبَعْثِ بَعْدَ الْمَوْتِ.

**ترجمه**: زه ایمان لرم پر الله ﷻ باندې او د هغه پر ملائکو، او د هغه پر کتابونو، او د هغه پر رسولانو باندې او د قیامت پر ورځ باندې، او پر دې چې د خیر او شر یعني د ښو او بدو تقدیر (اندازه) د الله تعالی ﷻ له جانبه دی، او



ایمان لرم د مرګ وروسته پر راپاڅېدو یعني بېرته پر را ژوندي کېدو باندې.

## د ایمان حقیقت:

په حدیث جبرئیل کې د حضرت جبرئیل عليه السلام لومړۍ پوښتنه دا وه چې اسلام څه شی دی؟

ددې پوښتنې په جواب کې جناب رسول الله ﷺ د اسلام پنځه ارکان یاد کړل چې عبارت د کلمه طیبې، لمانځه، روژې، زکات او حج څخه دي.

تردې وروسته حضرت جبرئیل عليه السلام دوهمه پوښتنه وکړل او ویې ویل: چې ایمان څه شی دی؟

جناب رسول الله ﷺ دده د پوښتنې په جواب کې و فرمایل ایمان دا دی: چې ته ایمان راوړې پر الله ﷻ او د هغه پر ملائکو باندې، او د هغه پر کتابونو باندې، او د هغه پر رسولانو باندې، او د قیامت پر ورځې باندې او پر دې خبره باندې چې د خیر او شر تقدیر د الله ﷻ له جانبه دی.

## پر الله ﷻ باندې د ایمان راوړلو مطلب:

۱- پر الله ﷻ باندې د ایمان راوړلو مطلب دا دی: چې صرف او صرف الله ﷻ د عبادت او بندګۍ لایق وګڼې، او پر دې خبره عقیده ولرې چې الله ﷻ نه په ذات او نه په صفاتو کې شریک لري.

او پر دې خبره عقیده ولرې چې الله ﷻ د هر ډول نقص او عیب څخه پاک دی او په ټولو کمالاتو سره متصف دی.

او پر دې خبره عقیده ولرې چې الله ﷻ په هر شي خبر دی، هیڅ شی د هغه

څخه پټ نه دي، هغه د پوره طاقت او قدرت خاوند دی، مځکه، اسمانونه، ملائکې، انسانان، پيرانان مطلب دا دی چې ټوله مخلوقات الله ﷻ پيدا کړي دي او دی د ټولې دنيا مالک دی.

او پر دې خبره عقيده ولري چې الله ﷻ نه د چا څخه پيدا شوی دی او نه دده څخه څوک پيدا شوي دي.

او هم پر دې خبره عقيده ولري چې دی و هيچا ته محتاج نه دی، مگر مخلوق ټوله و ده ته محتاج دي، د کائناتو ټوله تصرفات دده په قبضه کې دي.

## پر ملائکو باندې د ايمان راوړلو مطلب:

۲- پر ملائکو د ايمان راړولو مطلب دا دی: چې پر دې خبره عقيده ولري چې ملائکې يو ځانګړی نوراني مخلوق دی، هغوی د الله ﷻ نافرماني نه کوي، بلکې پر کومو کارونو چې الله ﷻ مقرري کړې دي. يو ګړی هم په هغو کې غفلت او کوتاهي نه کوي.

## پر رسولانو باندې د ايمان راوړلو مطلب:

۳- پر رسولانو باندې د ايمان راوړلو مطلب دا دی: چې پر دې خبره عقيده ولري چې دغه مبارک کسان الله ﷻ د خپلو بندګانو د هدايت او خپلو بندګانو ته د حکمونو د رسولو لپاره مقرر کړي دي. دوی هم انسانان دي او د خدای ﷻ بندګان دي، دوی ټول رښتيا ويونکي دي، هيڅکله دروغ نه وايي، ګناه نه کوي، د الله ﷻ په امر سره معجزې ښکاره کوي، د الله ﷻ پيغامونه پوره پوره خلکو ته رسوي، په هغوی کې هيڅ کمي او زياتوالی نه کوي.



تر ټولو لومړی نبي حضرت ادم عليه السلام دی، او تر ټولو اخري نبي حضرت محمد ﷺ دی، دده څخه وروسته تر قيامته پورې بل نبي نه راځي، بلکې هغه دين چې ده راوړی دی اخيري او تر قيامته پورې به موجود وي.

## پر کتابونو باندې د ايمان راوړلو مطلب:

۴- پر کتابونو باندې د ايمان راوړلو مطلب دا دی: چې پر دې خبره عقيده ولري چې الله ﷻ پر خپلو پيغمرانو باندې د خپلو بندګانو د هدايت لپاره زيات شمېر اسماني کتابونه نازل کړي دي چې په هغو کې څلور يې ډېر مشهور دي:

**يو تورات** نومېږي چې پر حضرت موسی ؑ نازل شوی دی

**دوهم زبور** نومېږي چې پر حضرت داؤد ؑ نازل شوی دی

**دريم انجيل** نومېږي چې پر حضرت عيسی ؑ نازل شوی دی.

**څلورم** چې اخيري کتاب دی قران شريف دی چې پر حضرت محمد ﷺ نازل شوی دی.

قرآن شريف آخيري کتاب دی چې الله ﷻ پر خپل آخيري پيغمبر حضرت محمد ﷺ باندې د خپلو بندګانو د هدايت لپاره نازل کړی دی، د قرآن شريف پيروي پر ټولو انسانانو باندې لازمه ده، او په دغه کتاب عمل کول د ټولې انسانيت لپاره د نجات لاره ده، کوم څوک چې د الله ﷻ د دغه آخيري کتابه څخه سر غړونه کوي، هغه به ناکامه وي

# د قیامت پر ورځې
## باندې د ایمان راوړلو مطلب:

د قیامت پر ورځې باندې د ایمان راوړلو مطلب دا دی: چې پر دې خبره عقیده ولري چې داسې یوه ورځ ضرور راتلونکې ده چې ټوله دنیا به ختمه شي، مځکه او اسمانونه به له منځه ولاړ شي. او ددې څخه وروسته به الله ﷻ بېرته ټوله شیان راژوندي کړي، او په دې دنیا کې چې چا ښه او یا بد کارونه کړي دي د هغو ټولو به حساب او کتاب ورسره وشي، د عدالت او انصاف ترازو به ودرول شي او د هر سړي نېکیانې او بدیانې به پکښې وتلل شي، د کوم چا د نېکو عملونو پله چې درنه شي، هغه ته به د الله ﷻ رضا لاس ته ورشي او د تل لپاره به وجنت ته داخل کړل شي او د کوم چا چې د بدو عملونو پله درنه شي، هغه به ونیول شي او د خدای ﷻ په بندیخانه کې، چې جهنم نومېږي وابه چول شي.

په دنیا کې چې یو چا پر بل چا باندې ظلم کړی وي، یا یې رشوت خوړلی وي، یا یې د یو چا مال پر ناحقه باندې خوړلی وي، یا یې یو چا ته ښکنځل کړي وي، یا یې یو څوک بې عزته کړی وي، د قیامت په ورځ به د هغو ټولو شیانو حساب وکړل شي او مظلوم به د ظالم څخه پوره پوره حق تر لاسه کړي، مطلب دا دی چې دغې د انصاف ورځې ته قیامت ویل کېږي د هر سړي سره به د یوې یوې زرې په اندازه حساب وکړل شي او پر هیچا باندې به ظلم ونه کړل شي، بلکې هر چا ته به خپل پوره پوره حق ورسېږي.



# د ښو او بدو پر تقدیر
## باندې د ایمان راوړلو مطلب:

۲- د ښو او بدو پر تقدیر د ایمان راوړلو مطلب دا دی چې: د هر ښه او بد شي لپاره د الله ﷻ په علم کې یوه اندازه مقرره شوې ده او د هر شي تر پیدا کېدلو مخکې الله ﷻ ته هغه ټوله شیان معلوم وي، د الله ﷻ همدې علم او اندازې ته تقدیر ویل کېږي، هیڅ یوه ښه او بده خبره د الله ﷻ د علم او اندازې څخه وتلې نه ده، د کائناتو تر پیدا کېدلو مخکې الله ﷻ ته د هغوی د یوې یوې زرې د ټولو حالاتو علم ؤ، او هر شی چې اوس پېښېږي هغه ټوله په لوح محفوظ کې لیکلي دي (**فتاوی یوسفیه**)

## گونگی به څه ډول اسلام راوړي:

**پوښتنه**: دلته زموږ په سیمه کې یو گونگی دی، په کوچنیوالي کې دده مور او پلار مړه شوي دي، دی د پیدا کېدو د وخت څخه تر اوسه پورې هندو و، خو اوس غواړي چې مسلمان شي، دده عمر اته ویشت کاله دی او بې تعلیمه هم دی، اوس پوښتنه داده چې: دده ته به موږ څه ډول کلمه ورښیو، حال دا دی چې گونگی خو خبرې نه اوري؟

**جواب**: که چیرې دی په اشاره سره د توحید او رسالت اقرار وکړي، نو بس دغه د گونگي د مسلمانېدلو لپاره کافي دي او په دې سره دغه گونگی

مسلمانيږي، يعني تر دې وروسته ده ته مسلمان ويل کېږي

**(فتاوی يوسفيه جلد اول صفحه ۲۱)**

## يو مسلمان و بل مسلمان

## ته د کافر په لفظ سره ويل:

**پوښتنه**: آيا يو مسلمان بل مسلمان ته د کافر په لفظ سره خطاب کولای شي او که نه؟

**جواب**: نه وروره! هيڅکله يو مسلمان دا کار نه شي کولای، ځکه چې يو مسلمان وبل مسلمان ته د کافر په لفظ سره ويل گناه کبيره ده، مگر ددې سره سره دا هم زده کړئ چې مسلمان څوک دی؟

بايد ووايم چې جناب رسول الله ﷺ چې د الله ﷻ د طرفه څخه کوم دين و امت ته راوړی دی، هغه ټوله پوره پوره منل او د هغه يوه يوه خبره تسليمول اسلام دی، نو څوک چې دغه دين پوره پوره ومني او د جناب رسول الله ﷺ يوه يوه خبره تسليم کړي، بس همدغه سړي ته مسلمان ويل کيږي.

او کوم څوک چې د اسلام د دين هغه خبرې چې جناب رسول الله ﷺ فرمايلي دي ټوله ونه مني او يا په هغو کې يوه خبره ونه مني، او يا په هغو کې شک او تردد وکړي، بس دغه سړی کافر دی.

نو څوک چې د اسلام د دين يوه قطعي او يقيني خبره درواغ وبولي، او يا پر هغه باندې ټوکې يا پسخند ووهي، داسي چا ته مسلمان نه ويل کېږي، د



جناب رسول الله ﷺ د راوړي پوره دين د منلو مختصر عنوان کلمه طيبه يعني "لا اله الا الله محمد رسول الله" ده، يو څوک چې دغه کلمه ووايي نو هغه خو د الله ﷻ د توحيد او د جناب رسول الله ﷺ د رسالت اقرار وکړ، او ددغه اقرار همدا معنی ده، چې دی د الله ﷻ هر حکم مني او د جناب رسول الله ﷺ هر فرمان د الله ﷻ فرمان بولي.

ددغې کلمې د ويلو سره سره که يو څوک د جناب رسول الله ﷺ يوه خبره نعوذ بالله غلطه وبولي، نو بايد ووايم چې دغه سړی په خپل اقرار کې پوره درواغجن دی، پر دې خبرې سربېره دغه سړي ته مسلمان ويل د جناب رسول الله ﷺ تکذيب دی.

په لنډه توگه دا خبره زده کړئ چې نه يو مسلمان ته د کافر ويلو اجازه شته او نه بيا يو بې ايمانه کافر ته د مسلمان ويلو گنجايش شته. ځکه چې الله ﷻ فرمايلي دي: وَقُلِ الْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ فَمَن شَاءَ فَلْيُؤْمِن وَمَن شَاءَ فَلْيَكْفُرْ، إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلظَّالِمِينَ نَارًا. **(سورة کهف آيت ۲۹)**

**ترجمه**: ووايه (ای محمده! دوی ته اسلام او قرآن) حق دی له رب ستاسې، نو هر څوک چې اراده (د ايمان) وکړي، نو ايمان دې راوړي، او هر څوک چې اراده د (کفر) وکړي نو کافر دې شي، بېشکه چې موږ (دهغو ظالمانو لپاره (چې د حق څخه انکار کوي) اور تيار کړی دی.

## يو مسلمان كافر شو خو اوس غواړي چې بېرته مسلمان شي بايد څه وکړي؟

**پوښتنه**: آيا مرتد بېرته و خپل دين يعني اسلام ته راتلای شي او که نه؟

**جواب**: هو! که يو سړی مرتد شوی وي، نو بېرته په توبه کښلو سره مسلمانېدای شي، ددې صورت دادی چې د اسلام کلمه ووايي او د اسلام څخه ماسېوا د نورو دينونو څخه خپله بيزاري اعلان کړي لکه چې وايي:

اسلامه ان يبرأعن الاديان سوى الاسلام، او عما انتقل اليه.

**(تنويرالابصار مع شرحه جلد۴صفحه ۲۲۶)**

مگر هو، فکر مو وي چې پر يو مسلمان باندې بې له ثبوته د مرتد والي تهمت لګول ډېره سخته گناه ده. **(كفايت المفتى جلد اول صفحه۵۸)**

## د خوب په وخت کې د کفر الفاظ ويل:

**پوښتنه**: که يو سړی د خوب په وخت کې د کفر الفاظ ووايي مثلاً ووايي چې عزير عليه السلام د خدای ﷻ زوی دی، يا ووايي چې عيسى عليه السلام د خدای ﷻ زوی دی، نو دغه سړی کافر کيږي او که نه؟

**جواب**: د خوب په حالت کې هيڅ کار او هيڅ خبره د شريعت له نظره معتبره نه ده، بلکې د خوب په حالت کې خبرې کول د مرغانو د خبرو سره مشابه او د



هغوی په حکم کې دي يعني نائم مرفوع القلم دی.

**(كفايت المفتى جلد اول صفحه ۶۲)**

## آيا د ضرورت په وخت کې د کفر کلمه ويل روا ده که نه:

**پوښتنه**: که يو سړی د ضرورت په وجه د کفر کلمه ووايي يعني اسلام پرېږدي، مگر په حقيقت کې يې اسلام نه وي پرې ايښى، نو آيا دغه سړی کافر کيږي او که نه؟

**جواب**: اسلام پرېښودل او د کفر کلمه ويل صرف په هغه وخت کې چې د مرگ خطره يې وي روا دی، مگر ددې څخه ما سېوا په هيڅ حالت کې روا نه دی. **(كفايت المفتى جلد اول صفحه ۶۹)**

## الله ﷻ د دروغو په صفت سره نه موصوفه کيږي:

**پوښتنه**: آيا! الله ﷻ پر دروغو هم قدرت لري او که نه، ځکه چې الله ﷻ په خپل پاک کلام قرآن شريف کې فرمايلي دي: **ان الله على كل شىء قدير** يعنى الله ﷻ پر هر شي قادردی.

احمد وايي چې الله ﷻ پر درواغو ويلو قدرت نه لري، نو آيا پر احمد باندې د كفر فتوى وركول كېداى شي او كه نه؟

**جواب**: وروره! دا ډول سوالونه اكثره وخت كمونستيان، دهريان او بې مذهبه خلك يې د ناپوهو مسلمانانو د راګيرولو، بندولو او دهغوى په عقيدو كې د خرابۍ د وړپيدا كولو لپاره كوي، په دې هكله ما ابوالمختار محمد عبدالرؤف حقيار حنفي ديوبندي د دا ډول پوښتنو د جوابونو لپاره چې د مشركانو، دهريانو، كمونستيانو، عيسايانو او نورو له خوا پر عامو مسلمانانو كېږي او دوى غواړي چې د هغوى په زړونو كې په دې سره ډول ډول پوښتنې وړپيدا كړي او يا د ځينو هغو مسلمانانو د پوښتنو جوابونه چې په خپله ددوى په زړونو كې قسم قسم سوالونه وړپيدا كېږي مګر په خوله يې ويلاى نه شي يو جامع كتاب تصنيف كړى دى چې په نژدې وخت كې به انشاءالله تر چاپ راووزي، مګر اوس ستاسي ددې موجوده سوال په جواب كې بايد ووايم چې الله ﷻ هيڅكله نه مخكې درواغ ويلي دي او نه يې ددې څخه وروسته وايي او نه د الله ﷻ دا شان دى چې په درواغو سره دي متصف شي يعني الله ﷻ ددې څخه پاك دى چې په درواغو دي متصف شي لكه چې وايي ان الله تعالى منزه من ان يتصف بصفة الكذب يعني الله ﷻ ددې څخه پاك دى چې د درواغو په صفت سره دي متصف شي

وروره! په زرګونو داسې شيان شته چې الله ﷻ پر هغو ټولو قادر دى، مګر كوي يې نه، د مثال په توګه الله ﷻ پر دې قادر دى چې د هر سړي په مخكې هر



وخت د سرو زرو غر پيدا كړي، يا د سپينو زرو درختې راشنې كړي، مګر كوي يې نه، نو همدا ډول الله ﷻ پر درواغو ويلو هم قادر دى، مګر هيڅكله يې نه درواغ ويلي دي او نه يې ددې څخه وروسته وايي، ځكه چې درواغ ويل د الله ﷻ د شان سره لائق نه دي او الله ﷻ د درواغو د صفت څخه پاك دى.

**(كفايت المفتى جلد اول صفحه ۷۹)**

## د انبياء عليهم السلام ژوند په قبرونو كې:

**پوښتنه**: آيا انبياء كرام عليهم السلام په خپلو قبرونو كې ژوندي دي او كه نه؟

**جواب**: انبياء كرام صلوات الله عليهم اجمعين په خپلو قبرونو كې ژوندي دي، مګر د دوى ژوند دنيوي ژوند نه دى، بلكې برزخي او د ټولو خلكو د ژوند څخه ممتاز دى، همدا ډول د شهيدانو ژوند هم برزخي دى او د انبياوو د ژوند څخه په كښته درجه كې دى، د دنيا په اعتبار سره خو دوى ټول په مړو كې داخل دي، د قرآن شريف دغه ايت چې "**انک ميت وانهم ميتون**" ددې صريح دليل دى. **(كفايت المفتى جلد اول صفحه ۸۰)**

## په انبياوو عليهم السلام كې كوم نبي افضل دى؟

په عام ډول سره واعظين ليدل كيږي چې د جناب رسول الله ﷺ تفضيل او

برتري پر نورو انبیاوو علیهم السلام باندې بیانوي خو دوی ډېر داسې شیان بیانوي چې سراسر غلط وي په دې هکله احسن الفتاوی لیکي:

که چیرې په دې هکله یو شی صحیح ومنل شي خو بیا هم په دې ډول د جناب رسول الله ﷺ فضیلت بیانول چې د نورو نبیانو نقصان پکښې راشي هیڅکله روا نه دي، په دې هکله په ظاهره حدیثونه مختلف او یو تر بله په ټکر کې په نظر راځي، لکه جناب رسول الله ﷺ چې فرمایلي دي: **"لاتخیروني علی الانبیاء"** یعني زما فضیلت پر نورو انبیاوو باندې مه بیانوئ، او همدارنګه یې فرمایلي دي: **"لا تقولوا انا خیر من یونس بن متیٰ"** یعني دا مه وایاست چې زه تر یونس بن متیٰ غوره یم.

حال دا دی چې جناب رسول الله ﷺ په مختلفو ځایونو کې خپل فضیلت بیان کړی دی لکه چې فرمایي: **"اناسید ولد ادم ولا فخر"** یعني زه د ادم علیه السلام د اولاد سردار یم او فخر نه کوم، او همدا راز یې فرمایلي دي: **"انا صاحب اللواء یوم القیمة وادم تحت لوائی"** یعني د قیامت په ورځ به حضرت ادم علیه السلام هم زما تر بیرغ لاندې وي. او په بل ځای کې یې بیا داسې فرمایلي دي: **"کنت نبیا و ادم بین الماء والطین"** او همدا راز یې د شفاعت په حدیث کې هم پر نورو نبیانو خپل فضیلت بیان کړی دی.

ددغو مختلفو روایتونو د تطبیق طریقه دا ده چې که چیرې د بیان طرز داسې وي چې په هغه کې د هیڅ نبي د نقصان د بیانولو شک نه وي، نو په دې



صورت کې جائز دی، او په کوم ځای کې چې د یوه او بل نبي تر منځ د بیان مقابله راشي او یوه ته پر بل ترجیح ورکول کیږي جائز نه دی، ځکه چې په دې کې د دوهم نبي نقصان بیانیږي، په دې وجه جائز نه دی.

په کوم ځای کې چې جناب رسول الله ﷺ خلک د خپل تفضیل څخه منع کړي دي، هغه د داسې مقابلې ځایونه وه، د مثال په ډول **"لاتخیروني علی الانبیاء"** یې په هغه وخت کې وفرمایل چې د یوه یهودي د یوه مسلمان سره جګړه وه، مسلمان ویل چې: **"والله الذی اصطفی محمداً ﷺ علی العالمین"** یعني زما دې قسم په هغه رب وي چې محمد ﷺ یې تر ټوله عالم غوره کړی او تر ټوله عالم یې فضیلت ورکړی دی.

او یهودي بیا ویل چې: **"والله الذی اصطفی موسیٰ علیه السلام علی العالمین"** یعني زما دې قسم په هغه رب وي چې موسیٰ علیه السلام یې تر ټوله عالم غوره کړی او تر ټوله عالم یې فضیلت ورکړی دی.

نو دغه مسلمان دغه یهودي پر مخ په چپلاخه وواهه او ورته ویې ویل: **"علی محمد ایضا؟"** یعني تر محمد یې هم غوره کړی دی.

وروسته دغه یهودي و جناب رسول الله ﷺ ته د شکایت په ډول راغی، جناب رسول الله ﷺ د دوی ټوله واقعه واورېدله نو یې وفرمایل: **"لاتخیروني علی الانبیاء"** یعني زما فضیلت پر نورو انبیاوو مه بیانوئ.

مطلب دا دی په کوم ځای کې چې د دوو نبیانو په هکله د خلکو تر منځ د

بیان مقابله روانه وي، نو په دې وخت کې د یوه فضیلت بیانول د بل نقصان
لازموي، ددغه ډول تفضیل څخه منع راغلې ده، اکثره واعظین د فضیلت دغه
لاندې څو وجې بیانوي:

۱- موسیٰ ﷷ چې په کوه طور کې د الله ﷻ تجلي ولیدلې نو بې هوښه شو
مګر جناب رسول الله ﷺ چې عرش ته تشریف وړی ؤ او بلا حجابه یې الله ﷻ
ولیدی بې هوښه نه شو، نو ددې څخه خو معلومیږي چې جناب رسول الله ﷺ تر
موسیٰ ﷷ ډېر لوړ او قوي دی.

۲- موسیٰ ﷷ چې بني اسرائیل له ځانه سره بېول که ګوري چې د فرعون
لښکر په دوی پسې راورسېدل، بني اسرائیلو چې داسې وکتل که ګوري چې
مخې ته یې د نیل دریاب دی او شا ته یې د فرعون لښکر ور پسې راروان دی،
نو وبېرېدل، په دې وخت کې حضرت موسیٰ ﷷ وفرمایل:

"کَلَّا اِنَّ مَعِیَ رَبِّیْ سَیَهْدِیْنِ". **(سورة الشعراء آیت ۶۲)**

**ترجمه**: نه ده داسې بېشکه له ما سره رب زما دی (په نصرت او اعانت) ژر
ده چې را وښیي ما ته (لاره د نجات).

دوی وایي چې په دې کلام کې یو نقص دا دی چې موسیٰ ﷷ تر ټولو
مخکې د "کَلَّا" لفظ استعمال کړی چې د د ګوابښنې او د دوی د خبرې د رد
لپاره استعمالیږي یعني لومړی یې خپل قوم پر مخ په چپلاخه وواهه بیا یې
خپل ځان د رب پر لفظ مخته کړی، یعني و یې ویل چې "معی ربی" او بل نقص
دا دی چې د رب ملګري یې صرف د خپل ځان سره بیان کړل، قوم یې پرېښوول



یعني و یې ویل: چې زما سره رب دی.

مګر جناب رسول الله ﷺ چې د هجرت پر وخت د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه
سره ملګری ؤ، څه وخت چې په غار ثور ننوتل، په دې وخت کې د مکې
مشرکان پسې راورسېدل. نو ابوبکر صدیق رضی الله عنه چې وکتل چې مشرکان را پسې
راورسېدل نو خوابدی شو، په دې وخت کې جناب رسول الله ﷺ ورته وفرمایل

"لَا تَحْزَنْ اِنَّ اللّٰهَ مَعَنَا". **(سورة توبه آیت۴۰)**

**ترجمه**: ته مه خپه کېږه بېشکه چې الله ﷻ له موږ سره دی.

جناب رسول الله ﷺ د "الله ﷻ" لفظ مقدم وواېه او د "مَعِیَ" د لفظ پر ځای
یې "معنا" لفظ وواېه یعني د الله ﷻ ملګري یې عامه وویله صرف د خپله ځانه
سره یې خاص نه کړل

۳- حضرت نوح ﷷ خپل قوم ته ښېرا وکړه، نو ټوله قوم یې غرق شو، مګر
برعکس په طائف کې د جناب رسول الله ﷺ په خدمت کې جبرئیل ﷷ تشریف
راوړی او جناب رسول الله ﷺ ته یې وویل: که ستا حکم وي، نو زه به دغه
خلک د دوو غرونو په منځ کې تباه کړم؟ مګر جناب رسول الله ﷺ ورته
وویل: چې نه! دا کار مه کوه ځکه چې زه رحمة للعالمین جوړ شوی او را
استول شوی یم

په دې هکله احسن الفتاویٰ زیاتوي: دغه د ترجیح طریقې که څېرې صحیح
هم ومنل شي، نو بیا هم پر دې ډول بیانول روانه دي، ځکه چې په دې ډول
بیانولو کې د نورو انبیاوو علیهم الصلوٰة والسلام تنقیص راځي، د یوه ورور په

دا ډول صفت کول چې د بل ورور سپکاوی پکښې وشي، د خوشحالۍ پر ځای قهر او غضب را منځته کوي، مګر حقیقت خو دا دی چې دغه د فضیلت وجې چې پورته ذکر شوې فی نفسه او سراسر غلطې دي.

## ددې جوابونه په لاندې ډول دي:

**د لومړۍ خبرې په جواب کې احسن الفتاویٰ زیاتوي:** په کور کې ناسته او خبرې کول اسانه کار دی. کمال خو دا دی چې د دښمن په مخکې خبرې وکړل شي، تاسې فکر وکړئ که چیرې د ترجیح دغه وجه د یوه یهودي په مخکې بیان کړل شي او هغه په جواب کې دا راته ووایي چې زمونږ نبي خو الله ﷻ ولیدی بې هوښه شو او ستاسې نبي چې یو ځل جبرئیل ﷺ ولیدی بې هوښه شو. نو زمونږ سره به بې له پښېمانۍ بل څه جواب وي؟

حقیقت دادی چې د الله ﷻ تجلې موسیٰ ﷺ په عالم دنیا کې ولیدلې او په عالم دنیا کې خو قوه ضعیفه وي، چې د الهی تجلې برداشت نه لري، همدارنګه جناب رسول الله ﷺ د جبرئیل ﷺ په لیدلو بې هوښه کېدل هم ددې وجې څخه وه، مګر جناب رسول الله ﷺ چې څه وخت معراج ته ولاړی نو دده مبارک ته د هغو ځایونو د ښکاره کولو لپاره د هغه عالم مناسب قوه ورکول شوه، ددې لپاره چې د هغه شیانو دلیدلو برداشت وکړي، ځکه چې د معراج څخه مخکې یې د سینې ور څیرول او بیا د زمزم په اوبو غسل ورکول ددې لپاره وو چې په دده مبارک کې د عالم اعلی قوت پیدا شي، نو ددې وجې څخه عالم دنیا پر عالم اعلی باندې قیاسول جهالت او ناپوهي ده.



بله خبره دا ده چې د معراج په قصه کې د عرش څخه تجاوز کول او داسې نور ډېر خرافات او داسې بې حقیقته خبرې چې ښخي د شریعت د اصولو څخه خلاف دي د خلکو په خولو کې دي او روزمره یې واعظان او نور وګړي بیانوي او بله خبره دا ده چې هلته د معراج پر وخت د مبارک ﷺ له خوا د الله ﷻ په لیدلو کې د احسن الفتاویٰ په قول د صحابه کرامو ﷺ اختلاف دی، تر دې چې حضرت عایشې (رضی الله عنها) فرمایلي دي: **من زعم انّه رأی ربّه فقد اعظم** علی الله الفرية. (**احسن الفتاویٰ جلد اول صفحه ۴۸۰**)

**ددوهمې خبرې په جواب کې احسن الفتاویٰ زیاتوي:** او وایي چې دا داسې غلطي ده چې ځینې مصنفین هم پکښې مبتلاء دي، حقیقت دادی چې د جناب رسول الله ﷺ او د حضرت موسیٰ ﷺ د دواړو مبارکانو کلامونه پر خپل خپل ځای د بلاغت پر هغه تر ټولو لوړ ځای ولاړ دي اودوی مبارکانو هر کلام پر خپل خپل ځای د خپل محل او موقع سره ښخي برابر او عین مناسب دی.

حضرت اشرف اعلي تهانوي پخپل کتاب اشرف الجواب کې ددغو خبرو په لړ کې زیاتوي: که چیرې د حضرت موسیٰ ﷺ مخاطب د حضرت صدیق ﷺ په ډول سړی وای. نو ده هم هماغه خبره فرمایله لکه جناب رسول الله ﷺ چې وفرمایل او که چیرې د جناب رسول الله ﷺ مخاطب هغه خلک وای چې د حضرت موسیٰ ﷺ مخاطب وه، نو جناب رسول الله ﷺ هم هغسې ورته فرمایله لکه سیدنا موسیٰ ﷺ چې وفرمایل

تاسې فکر وکړئ که چیرې حضرت موسی علیه السلام "انَّ الله معَنا" ویلي وای لکه جناب رسول الله ﷺ چې ویلي دي نو بیا خو په کلام کې بلاغت نه پاتې کېدی. همدا ډول که چیرې جناب رسول الله ﷺ د حضرت موسی علیه السلام په ډول "انَّ معِی ربِّی" ویلی وای نو د ځای د نامناسبوالي په وجه کلام د بلاغت څخه وتی.

تر دې وروسته احسن الفتاوی د تعجب په ښکاره کولو سره د مشهور مصنف علامه تفتازاني رحمه الله ته د اعتراض ګوته نیسي او دا راز لیکي

د تعجب خبره ده چې علامه تفتازاني چې د فصاحت او بلاغت په فن کې کتابونه تصنیفوي مګر له دې سره سره بیا هم داسې فاحشې غلطیانې کوي او د جناب رسول الله ﷺ کلام ته د حضرت موسی علیه السلام پر کلام ترجیح ورکوي

حضرت اشرف علي تهانوي رحمه الله پخپل کتاب اشرف الجواب کې د دغو خبرو په لړ کې زیاتوي: افسوس دی پر دغو خلکو چې سیدنا موسی علیه السلام ته د خبرو اداب ورښیي چې تا باید د خدای د نامه یادونه د خپل ځان تر یادونې مخکې کړې وای (یعني "ان ربی معی" دې باید ویلی وای)

احسن الفتاوی د خپلو خبرو په لړ کې علامه بیضاوي رحمه الله هم تر اعتراض لاندې نیسي او وایي چې غالبًا دغه غلطي د علامه بیضاوي څخه هم شوې ده

اوس تاسې لږ فکر وکړئ او وګورئ چې دهر نبي کلام پر خپل ځای په آخیري اندازه بلیغ دی او که نه؟ د حضرت موسی علیه السلام قوم دومره ضعیف الایمان ؤ



چې غټې غټې معجزې یې په سترګو لیدلې اوپه دې ځای کې هم د خدای ﷻ په حکم سره د خپل نبي سره روان وه او نبي یې هم داسې سړی ؤ چې د هغه پر معجزو هر څومره کم عقله سړي هم یقین حاصلولای شوای او په سترګو یې لیدلې، نو په دې وخت کې چې دوی د خدای ﷻ په حکم د خپل نبي سره یو ځای روان وه او معجزې یې هم د سر په سترګو لیدلې او الله ﷻ د فرعون په مقابله کې د دوی نور هم څومره ډېر مدد کړی ؤ، نو بیا خو دوی ته د فرعون د لښکرو څخه هیڅ ډېره نه وه پکار، مګر دوی چې کله د فرعون لښکر ولیدی نو وسوسه خو هلته پرېږده، بلکې په یقیني ډول سره یې په څو تاکیداتو سره حکم وکړی او ویې ویل: اِنَّا لَمُدرَکُونَ. **(سورة الشعراء آیت ۶۱)**

**ترجمه**: بېشکه موږ خامخا موندل شوي یو (نیول شوي یو) له جانبه د (قبطیانو).

لفظ د اِنَّا، **لام تاکید** او **جمله اسمیه** یې راوړله دا یقین یې ښخې ټینګ کړی چې موږ به ضرور نیسي، حال دا دی چې څو څو واره دوی لیدلي وه چې الله ﷻ د فرعون په مقابله کې د حضرت موسی علیه السلام څومره زیات مدد کړی ؤ. نو اوس تاسې فکر وکړئ داسې قوم چې د خدای ﷻ او د خدای د رسول پر وعدو یې باور نه وي او دوی د خدای ﷻ د وعدو خلاف یقین کوي او هغه په دریو تاکیداتو سره بیانوي یعنې وایې چې موږ به یقینًا، ضرور او خامخا فرعون نیسي. نو تاسې وواياست د داسې قوم سره د الله ﷻ ملګري او مرسته څنګه یو ځای کېدای شي؟

دا د دوی د توکل او د کامل یقین د نه درلودلو یو ښکاره دلیل دی، نوله دې وجې موسیٰ علیه السلام د ګواښنې او قهر په شکل ورته وویل چې: "کَلَّا" ګویا چپلاخه یې ورکړه چې داسې هیڅکله نه شي کېدای، د دوی د خبرې په جواب کې چې په دریو تاکیداتو سره یې وکړه همداسې ټینګ جواب ورکول ورته په کار ؤ.

بل دا چې دغه خلک د کامل یقین د نه درلودلو په وجه د حق د ملګرتوب څخه بې برخې وه نو له دې وجې څخه موسیٰ علیه السلام په "اِنَّ مَعِیَ رَبِّیْ" کې د حصر په غرض د "مَعِی" لفظ مقدم کړی، ځکه چې مؤخر مقدم کول او مقدم مؤخر کول د حصر لپاره دی لکه چې دا قاعده ده: **تقدیم ماحقه التا خیر یفید الحصر.**

او د متکلم مفرد ضمیر یې راوړی او ویې ویل: چې زما سره زما د رب ملګري ده، ددې په برکت سره به تاسې هم وساتل شئ، که نه نو تاسې خو ددې لائق یاست چې یا خو د فرعون په ظلم کې راګیر شئ او یا په دریاب کې غرق کړل شئ، نو په دغه خبره چې "اِنَّ مَعِیَ رَبِّیْ" یې وویل: دا مقصود یې بیانول غوښتل چې د رب ملګرتوب یوازې زما سره دی ځکه چې تاسې د ملګرتوب لائق نه یاست، نو که یې چیرې د جناب رسول الله ﷺ په ډول "اِنَّ الله معنا" ویلي وای، نو دا خو د مقصود خلاف خبره وه، که داسې شوي وای نو بیا به کلام بېخي د بلاغت له معیار څخه وتلی وای.



ددې برعکس په غار ثور کې د حضرت ابوبکر صدیق ﵁ چې پر خدای ﷻ او د خدای پر رسول ﷺ یې کامل ایمان درلودی او د وسوسې په ډول چې یې دغه لفظ پر خوله راغی چې که چیرې کفار لږ سر راکښته کړي نو موږ به ووینې او و به مونیسي، باید ووایم چې لومړی خو دا خبره صرف د وسوسې په درجه کې وه، پر دې خو په شریعت کې هیڅ مؤاخذه نشته.

دوهمه خبره دا ده چې ددغې وسوسې وجه د حضرت ابوبکر صدیق ﵁ پر خپل ځان باندې بېره نه وه، بلکې دی مبارک پر جناب رسول الله ﷺ بېرېدی، دا دده مبارک د جناب رسول الله ﷺ سره د پوره مینې او محبت یو ښکاره دلیل دی.

دا چې دی پر خپل ځان نه بېرېدی، بلکې پر جناب رسول الله ﷺ بېرېدی ددې یو دلیل دا دی چې حضرت صدیق ﵁ د جناب رسول الله ﷺ سره بې اندازې زیاته مینه درلوده تر دې چې دوی دواړه چې څه وخت هغه غار ته چې ثور نومېدی راورسېدل، نو په دې وخت کې حضرت صدیق خپل څادر ټوټې ټوټې کړی او ددې غار په سوریانو کې یې ورکړې، ددې لپاره چې ددغو سوریانو څخه یو خطرناکه شی راونه وځي او جناب رسول الله ﷺ و نه خوري، تر دې چې یو غار پاته شو او د څادر ټوټې ختمې شوې نو بیا حضرت صدیق ﵁ خپله پښه په دغه سوري کې ورکړه، ددې لپاره چې که یو شی خطر ناکه راووتی نو ما به وخوري مګر جناب رسول الله ﷺ ته خو به تاوان و نه رسیږي

او بل دلیل یې دا دی چې جناب رسول الله ﷺ ده مبارک ته په جواب کې

"لَاتَحْزَنْ" وويل، يعني مه غمجن کېږه "لَا تَخَفْ" يې ورته ونه ويـل، چې مه بېرېږه.

د "لَا تَخَفْ" پر ځای د "لَاتَحْزَنْ" ويل ددې خبرې ښکاره دليـل دی چې دی مبارک پر خپل ځان نه ، بلکې پر جناب رسول الله ﷺ بېرېدی، ځکه چې خـوف پر نفس باندې وي او حُزن د يو محبوب شي پر جلاکېدو باندې وي. نو لـه دې څخه معلومه شوه چې د صديق اکبر ؓ بېره پر خپل ځان باندې نه وه ، بلکې لـه ده څخـه د جناب رسـول الله ﷺ د جلاکېـدلو خطره ورتـه پيـدا وه. لـه دې وجې څخـه جنـاب رسـول الله ﷺ د "اِنَّ اللهَ مَعَنَـا" پـه فـرمايلو سـره دا واضـحه کـړه چـې د حـضرت صـديق ؓ ايمـان دومـره کامـل دی لکـه څنگـه چـې د الله ﷻ ملگري زمـا سـره ده همـدا راز د حـضرت صـديق ؓ سـره هـم ده. نـو کـه چيـرې جناب رسول الله ﷺ د حضرت موسی ؑ په ډول "اِنَّ مَعِیَ رَبِّی" ويلی وای. نو مقصود نه ادا کېدی او په کلام کې بلاغت له منځه تلی

**د دريیم سوال په جواب کې احسن الفتاویٰ ليکي** : د حضرت نوح ؑ په باره کې دا خبره کول چې هغه د خپلې ښېرا په ذريعه خپل قوم تباه کړی.دا د قرآن څخه د بې خبرۍ نتيجه ده، کـه چيرې پـه قرآن شريف کـې د حضرت نوح ؑ پر قصه غور او فکر وکړل شي. نو دا پـه ښکاره توگـه سره معلومېږي. چې حضرت نوح ؑ پر خپل قوم ډېر شفقت درلودی او پـه هيـڅ صورت يې د خپل قوم هلاکت نه خوښاوه لکه لوی خدای ﷻ چې و ده مبارک



ته وحې کوي او دا راز فرمايي:

فَلَاتَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ. (**سورة هود آيت ۳۶**)

**ترجمه**: نو مه غمجن کېږه په هغه چې وو دوی چې کول به يې

ددې څخه معلومه شوه چې حضرت نوح ؑ د خپـل قـوم پـر بـد عملـی ډېر زيات غمجن ؤ، دا ده د شفقت او محبت يوښکاره دليـل دی. ښکاره خبره ده چې د دښمن پر بد عملی خو سړی نه غمجن کېږي. تر نهه نيم سوه کـالو پـوري حضرت نوح ؑ د دوی د بد عملی په ليدلو سره غم او خپگان برداشت کړی. تاسې فکر وکړئ نهه نيم سوه کاله وخت څه معمولي خبرنه ده. دا خبره په ويلو کې آسانه ده مگر دومره ډېر وخت بد عمليانې ليدل او پر هغوی سخت غمجن کېدل او بيا ددې سره سره د صبر او استقامت لمن ټينگه نيول او دا هر څه په سړه سينه گالل دا يوه غټه معجزه ده. ددې باوجود چې کله د غرق کېدلو حکم وکړل شو نو حضرت نوح ؑ په ډېر اصرار او تاکيد سره د دوی سفارش کاوه چې ددې په جواب کې الله ﷻ ورته وفرمايل وَلَا تُخَاطِبْنِیْ فِی الَّذِیْنَ ظَلَمُوْا اِنَّهُمْ مُغْرَقُوْنَ. (**سورة المومنون آيت۲۷**)

**ترجمه**: او مه کوه خبرې له ما سره په باب د هغو کسانو کې چې ظلم يې کړی دی ( په نفسونو خپلو باندې چې ) بېشکه دوی غرق کول شي

ددې څخه ثابته شوه چې نوح ؑ د دوی د خلاصون په هکله ډېرې زياتې زارۍ ورتـه کولې، مگر ددې کـاره څخـه الله ﷻ پـه پـورتـه مبـارکو الفاظو سره حضرت نوح ؑ ددغـه کاره څخه راوگرځاوه او ورتـه ويې فرمايل چې په دې

هکله ته زما سره خبري مه کوه.

د بلاغت دا تقاضا ده چې د انکار د شدت مطابق په جواب کې د شدت
تاکید الفاظ استعمالیږي یعني د جواب تاکید د انکار پر تاکید دلالت کو
که تاسې فکر کړی وي په لَا تُخَاطِبْنِي فِي الَّذِينَ ظَلَمُوا کې څومره زیا
تاکیدات دي، لومړی خو دادی چې الله ﷻ د لَا تَشْفَعْ یعني ته شفاعت
کوه، ددې پر ځای یې لَا تُخَاطِبْنِي وفرمایه چې ډېر غټ تاکید دی یعني په د
باره کې زما سره بېخي هیڅ خبره هم مه کوه او په فِي الَّذِينَ ظَلَمُوا کې یې
دوی د بد عملی او قباحت په ذکر کولو سره حضرت نوح علیه السلام پوه کړی، چ
دا خلک ظالمان دي، پر دوی به ضرور عذاب نازلیږي.

بیا د اِنَّ لفظ او د جمله اسمیه راوړل دا ټوله شیان پر دې خبره دلالت کو
چې د حضرت نوح علیه السلام انکار یعني د خپل قوم پر شفاعت باندې تاکید ا
اصرار بېخي زیات ؤ. مګر د حضرت نوح علیه السلام د خپل قوم په باره کې دوم
زیاتي زاری او شفاعت بیا هم قبول نه شول، او دده د قوم د غرق کېدلو حک
محکم کړل شو. مګر ددې باوجود حضرت نوح علیه السلام په دې انتظار ؤ چ
ګوندې د سفارش او شفاعت یو چانس یا یو حیله په لاس راشي. تر دې چې
خپل زوی په باره کې یې لږ د مېرې لار پیدا کړه، نو سمدلاسه یې د هغ
سفارش شروع کړی.

تاسې شاید دا فکر وکړئ چې د حصرت نوح علیه السلام د خپل زوی په هکل
شفاعت دا دده د پلاروالي په وجه ؤ، ځکه چې دی یې پلار ؤ د ډېر زیات



شفقت او مهرباني په وجه یې د زوی شفاعت شروع کړی

نه داسې نه وه، بلکې احسن الفتاوی لیکي: چې دې ته د پلاروالي د شفقت خاصه نه شي ویل کېدای لومړی دا چې: د نبي تعلق د ټوله امت سره د پلار په شان وي، دوهم دا چې: که چیرې اولاد انکار وکړي، نو دا خو ښکاره خبره ده چې و اولاد ته د نورو په نسبت د سړي زیات درد راځي، د حضرت نوح علیه السلام چې کله د زوی پر انکار هم دومره شفقت ؤ، نو ښکاره خبره ده چې پر نورو خلکو به یې تر دې ډېر زیات شفقت ؤ. مطلب دا دی چې د زوی په هکله سفارش یې په دې وجه نه ؤ چې هغه دده زوی دی. بلکې ددې په وجه ؤ چې د نورو خلکو د غرقېدو لپاره کوم ګنجائش پاته نه شي. ددې وروسته چې کله حضرت نوح علیه السلام ته دده د خپل زوی د سفارش په هکله کومه سخته خبرتیا ورکړل شول. او دی مبارک ددې کار څخه راوګرځول شو نو په دې وخت کې دی مبارک په دې ویوهېدی چې په بار بار سفارش کولو کې د الله ﷻ د ناراضګی احتمال پیدا کېدای شي، نو ددې د تدارک او جرماني لپاره حضرت نوح علیه السلام خپله رضا د الله ﷻ په رضا کې دفنا کولو لپاره داسې عرض کړل: وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا.

**(سورة نوح آیت ۲۶)**

**ترجمه**: او وویل: نوح اې ربه زما مه پرېږده! پر مځکه باندې له کافرانو څخه هیڅ اوسېدونکی.

د حضرت نوح علیه السلام دغه غوښتنه د الله ﷻ د رضا د حاصلولو لپاره وه، که

چيرې دا خبرې تاسي نه راسره منئ او خامخا وایاست چې نه داسي نه ده، بلکې د حضرت نوح ﷺ د ښېرا په وجه دده قوم تباه شو. نو که چيرې موږ بالفرض دا تسليم هم کړو چې د حضرت نوح ﷺ د ښېرا په وجه دا عذاب راغی، نو د ځو افرادو. بلکې د ځو قبائلو په هکله د جناب رسول الله ﷺ ښېرا هم ثابته ده. نو بايد ووايم چې د ښېرا د کولو او نه کولو په ځای او موقع انبياء عليهم السلام ډېر ښه پوهيږي، که چيرې جناب رسول الله ﷺ د حضرت نوح ﷺ پر مقام وای، نو جناب رسول الله ﷺ هم ښېرا فرمايله. او که چيرې د جناب رسول الله ﷺ پر ځای حضرت نوح ﷺ وای نو يقيناً چې نوح ﷺ به هم په دې ځای کې ښېرا نه کولای. **(احسن الفتاوىٰ جلد اول صفحه ۴۸۲)**

فقط والحمدلله اوّلاً واخرا و الصلوة والسلام على رسوله الكرام خصوصاً على سيد الانام ما اختلفت الليالى و الايام و هو خيرختام.

همدارنګه ډېر واعظان ليدل کيږي چې پر منبر ناست وي او داسي خبرې کوي چې بېخي هيڅ حقيقت نه لري او داسي ضعيفه کتابونه يې مخ ته نيولي وي چې د موضوعاتو ډک وي لکه تذکيرة الواعظين او داسي نور. دا لا څه کوي چې بې حقيقته خبرې کوي. بلکې د رسول الله ﷺ و طرف ته يې منسوبوي دوی په دې نه پوهيږي چې په دې کې دوه نقصانونه دي چې هر يو يې ډېر ستر نقصان دی. يو نقصان يکښې دا دی چې پخپله جناب رسول الله ﷺ بيان کړی دی مَن كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ.

**ترجمه**: کوم څوک چې په قصد سره زما وطرف ته د دروا غو د خبرې نسبت



وکړي نو هغه دې خپل د اوسېدلو ځای په دوزخ کې وګوري. (يعني کوم سړی چې د خپله ځانه جوړه کړې خبره په ما پورې وتړي نو خپل د اوسېدلو ځای دې په دوزخ کې تيار کړي)

او بل غټ نقصان يې دا دی چې په دې کې د عوامو د عقيدو او اعمالو خرابي راځي او په ځينو ځايونو کې يې پر ګناهونو کولو زړور کوي. ښاغلو واعظانو ته په کار دي چې په د خدای ﷻ څخه وبېريږي او په دې هکله غلطي خبري بيان نه کړي. د دوی دنده او وظيفه دا ده چې خلکو ته اسلامي اخلاق وروښوي او په ښو خويونو يې سمبال کړي که نه نو د ټولني د خرابېدو مسئوليت به ورپه غاړه شي

## آيا جناب رسول الله ﷺ عالم الغيب ؤ او که نه؟

**پوښتنه**: آيا جناب رسول الله ﷺ عالم الغيب ؤ او که نه؟

**جواب**: نه ورورو، جناب رسول الله ﷺ عالم الغيب نه ؤ. ځکه چې دا يوازې د الله ﷻ صفت دی که تاسي فکر کړی وي. په سورة الانعام کې الله ﷻ خپل ګران رسول ته امر کوي او فرمايي

قُل لاَ اَقُولُ لَكُم عِندِى خزآئِنُ اللهِ وَلاَ اَعلَمُ الغَيبَ.

**(سورة الانعام آيت ۵۰)**

**ترجمه**: ووايه (اې محمده!) دوی ته، چې نه وايم زه تاسي ته چې زما سره

خزانې د الله دي (چې درکړم تاسې ته هر څه چې غواړئ) او نه (وایم چې زه) پوهېږم په غیب باندې

مگر هو! د الله ﷻ له طرفه څخه د ډېرو پټو خبرو علم و جناب رسول الله ﷺ ته ورکول شوی ؤ (کفایت المفتی جلد اول صفحه۹۴)

## آیا جناب رسول الله ﷺ په خپله ذاتي رایه سره د شریعت په احکامو کې کمبود یا زیاتوب کولای شوای:

**پوښتنه**: آیا جناب رسول الله ﷺ په خپله ذاتي رایه سره د شریعت په احکامو کې کمبود یا زیاتوب کولای شوای او که نه؟

**جواب**: نه وروره! جناب رسول الله ﷺ په خپله ذاتي رایه سره د خدای ﷻ په احکامو کې کمبود یا زیاتوب نه شوای کولای، مگر هو په اجتهادي مسائلو کې یې د خپله اجتهاده څخه یو حکم ښوولای شوای. مگر په کومو امورو کې چې د قرآن شریف یو آیت نازل شوی وي اجتهاد نه شي کېدای. بلکې د وحې متابعت ضروري دی (کفایت المفتی جلد اول صفحه ۹۴)

لکه د سورة یونس په یوه آیت کې چې الله ﷻ و خپل خوږ نبي جناب رسول الله ﷺ ته امر کوي او فرمایي: قُلْ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أُبَدِّلَهُ مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِي إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَى إِلَيَّ (سورة یونس آیت ۱۵)



**ترجمه**: ووایه (اې محمده دوی ته) چې نه ښایي ماته دا چې بدل کړم دغه (قرآن) له ځانه خپله، متابعت نه کوم زه، مگر (صرف) د هغه (حکم) چې را لېږل شوی دی ماته

## تر دغه آیت لاندې تفسیر کابلی دا راز لیکي:

د پاک قرآن عمومي پند او نصیحت خو کفارو ډېر خوښاوه، مگر د هغو آیاتونو څخه یې ښه نه وړل په چا کې چې د بت پرستۍ، یا د کفارو د مخصوصو عقائدو تردید شوی ؤ، نو کفارو به په ډېر نفرت او کراهیت سره رسول الله ﷺ ته ویل چې پاک خدای ﷻ ته ووایه چې بل داسې قرآن درکړي چې دغسې مضامین پکښې نه وي، او که همدغه قرآن پاته کېږي، نو ښایي چې هغه برخه خو یې ضرور اصلاح او ترمیم کړې چې د بت پرستۍ او داسې نورو شیانو په هکله پکښې خبرې موجودې دي.

دغو خلکو چې پخپل لاس به یې د ډېرو او نورو شیانو څخه بتان جوړول او بیا به یې خدایي تصرفات او اختیارات پر دغو شیانو تقسیمول، نو دوی خو یو رسول هم د دا ډول تصرفاتو او اختیاراتو مالک فرض کړی ؤ، او یا به یې ښایي دغه وینا د پسخند او ټوکو په ډول کوله

## په هر حال ددې تحقیقي جواب دا دی:

چې پخپله الله ﷻ فرمایلی دی ووایه اې محمده! دوی ته چې نه ښایي ما ته چې بدل کړم دغه قرآن، بېشکه زه بېرېږم که نافرماني وکړم د رب خپل په بدلول د قرآن سره له عذابه څخه د غټې ورځې چې قیامت دی، یعنې نه د هېڅ ملائکې او نه د هېڅ رسول دا کار دی چې له خپله ځانه د الله ﷻ په کلام کې

ترميم وکړي، يا يې يو ټکی يا حرکت لاندې باندې کړي، د رسول الله ﷺ وظيفه دا ده هغه وحې چې د الله ﷻ له لوري راشي هغه بې له زياتوبه او کمبوده، دده له حکم سره موافق ورسوي، او تعميل يې وکړي.

## د رسول الله ﷺ د حاضر او ناظر کېدلو عقيده:

**پوښتنه**: نورګل وايي چې حضرت محمد ﷺ عالم الغيب دی او هر ځای حاضر او ناظر دی. دی وايي که يو څوک جناب رسول الله ﷺ عالم الغيب او هر ځای حاضر او ناظر ونه بولي هغه کافر دی او د اسلامه څخه وتلی دی. آيا د نورګل دغه عقيده صحيح ده او که نه. او همدارنګه د امام اعظم رحمه الله په دې مسئله کې کومه عقيده ده؟

**جواب**: د امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله او همدارنګه د نورو ټولو امامانو بلکې د ټوله محمدي امت اجماع او متفق عليه عقيده ده چې علم غيب د الله ﷻ يو محصوص صفت دی او د پاک قرآن د سورة الحشر ۲۲ آيت ددې خبرې په ښکاره ډول سره ثبوت کوي چې د الله ﷻ څخه ماسېوا بل هيڅ عالم الغيب نه شته. مګر هو د جناب رسول الله ﷺ علم د خدای ﷻ څخه وروسته تر ټوله مخلوق زيات دی. ځکه چې الله ﷻ ډېرې پټې خبرې و جناب رسول الله ﷺ ته ورښودلې دي، مګر له دې سره سره بيا هم جناب رسول الله ﷺ عالم الغيب نه دی. نو د نورګل دا عقيده د قرآن شريف، حديث شريف او د ټوله امت د اجماعي عقيدې څخه خلاف ده.

**(کفايت المفتی جلد اول صفحه ۹۸)**



## د جناب رسول الله ﷺ د نامه په اورېدلو سره د ګوتو سرونه مچول:

**پوښتنه**: ځينې خلک چې د جناب رسول الله ﷺ مبارک نوم واوري نو د ګوتو سرونه مچ کړي، آيا ددې کار ثبوت شته او که نه؟

**جواب**: د جناب رسول الله ﷺ د مبارک نامه په اورېدلو سره ګوتې موچول او سترګو ته وړل په يو پاخه او معتبر دليل سره نه دي ثابت شوي.

**(کفايت المفتی جلد اول صفحه ۱۱۳)**

وذکر ذلک الجراحی واطال ثم قال: ولم يصح فی المرفوع من کل هذا شئ. **(ردالمحتار، باب الاذان جلد اول صفحه ۳۹۸)**

علامه عبدالحی لکنوي رحمه الله فرمايلي دي:

**اين تقبيل رادر بعض کتب فقه مستحب نوشته است، نه واجب ونه سنت... و آن کتب که درآنها اين مسئله مذکور است غير معتبر اند... ازين وجه که درين کتب رطب ويابس بلا تنقيح مجتمع است... واحاديث که درين باب فقهاء نقل ميکنند ان بتحقيق محدثين صحيح نيستند الخ.**

**(مجموعة الفتاوی علی هامش خلاصة الفتاوی جلد۴صفحه ۳۲۵)**

## آیا جناب رسول الله ﷺ مړي را ژوندي کړي دي او که نه؟

**پوښتنه**: آیا جناب رسول الله ﷺ مړي را ژوندي کړي دي او که نه؟

**جواب**: په صحیح روایت سره ددې ثبوت نه شته چې جناب رسول الله ﷺ دې مړي را ژوندي کړي وي. **(کفایت المفتي جلد اول صفحه۱۱۶)**

## آیا د جناب رسول الله ﷺ سایه مبارکه پر مځکه باندې لوېدله او که نه؟

**پوښتنه**: آیا د جناب رسول الله ﷺ سایه مبارکه پر مځکه باندې لوېدله او که نه؟

**جواب**: وروره! ددې په اړه کومه یادونه، (په صحیحو احادیثو او نورو معتبرو کتابونو کې) نشته چې (د هغه څخه دي معلومه شي چې) د جناب رسول الله ﷺ سایه پر مځکه باندې نه لوېدله.

**(کفایت المفتي جلد اول صفحه۱۱۶)**

په خصائص الکبرٰی کې یو روایت راغلی دی، مګر حضرت ملاعلي قاري رحمه الله ضعیف بللی دی، روایت په دې ډول دی:

**اخرج الحکیم الترمذی عن ذکوان ان رسول الله ﷺ لم یکن له ظل**



**في شمس ولافی قمر. (الخصائص الکبرىٰ جلد اول صفحه ۶۸)**

یعني رسول الله ﷺ نه په لمر کې او نه په سپوږمۍ کې سایه درلوده.

## د غیر مسلمانانو سره د مندر او یا نورو مذهبي ځایونو په جوړولو کې مرسته کول:

**پوښتنه**: آیا یو مسلمان د هندوانو یا نورو غیر مسلمو اقلیتونو سره د مندر یا نورو مذهبي ځایونو په جوړېدو کې مرسته کولای شي او که نه؟

**جواب**: وروره! په اسلامي هېواد کې د غیر مسلمانانو ته مذهبي ازادي شته، مګر دغه ازادي هم حدود لري، چې تفصیلات یې د فقهي په کتابونو کې راغلي دي، مطلب دا دی چې د غیر مسلمو خلکو مذهبي ازادي، د مسلمانانو تر مذهبي بې عزتۍ پورې رسول نه دی په کار، الله ﷻ دې و مسلمانانو ته ایمان او عقل ور نصیب کړي.

**(فتاوىٰ یوسفیه جلد اول صفحه ۶۶)**

## آیا غیر مسلمو ته سلام اچول روا دی او که نه؟

**پوښتنه**: آیا غیر مسلمو ته سلام اچول روا دی او که نه؟

**جواب**: و غیر مسلمو ته سلام اچول نه دی په کار، مګر په هغه صورت کې

## آیا جناب رسول الله ﷺ مړي را ژوندي کړي دي او که نه؟

**پوښتنه**: آیا جناب رسول الله ﷺ مړي را ژوندي کړي دي او که نه؟

**جواب**: په صحیح روایت سره ددې ثبوت نه شته چې جناب رسول الله ﷺ دې مړي را ژوندي کړي وي. **(کفایت المفتي جلد اول صفحه۱۱۶)**

## آیا د جناب رسول الله ﷺ سایه مبارکه پر مځکه باندې لویدله او که نه؟

**پوښتنه**: آیا د جناب رسول الله ﷺ سایه مبارکه پر مځکه باندې لوېدله او که نه؟

**جواب**: وروره! ددې په اړه کومه یادونه، (په صحیحو احادیثو او نورو معتبرو کتابونو کې) نشته چې (د هغه څخه دې معلومه شي چې) د جناب رسول الله ﷺ سایه پر مځکه باندې نه لوېدله

**(کفایت المفتي جلد اول صفحه۱۱۶)**

په خصائص الکبریٰ کې یو روایت راغلی دی. مگر حضرت ملاعلی قاري رحمه الله ضعیف بللی دی، روایت په دې ډول دی:

**اخرج الحکیم الترمذی عن ذکوان ان رسول الله ﷺ لم یکن له ظل**



**في شمس ولافی قمر. (الخصائص الکبریٰ جلد اول صفحه ۶۸)**

یعني رسول الله ﷺ نه په لمر کې او نه په سپوږمۍ کې سایه درلوده.

## د غیر مسلمانانو سره د مندر او یا نورو مذهبي ځایونو په جوړولو کې مرسته کول:

**پوښتنه**: آیا یو مسلمان د هندوانو یا نورو غیر مسلمو اقلیتونو سره د مندر یا نورو مذهبي ځایونو په جوړېدو کې مرسته کولای شي او که نه؟

**جواب**: وروره! په اسلامي هېواد کې و غیر مسلمانانو ته مذهبي ازادي شته، مگر دغه ازادي هم حدود لري، چې تفصیلات یې د فقهي په کتابونو کې راغلي دي، مطلب دا دی چې د غیر مسلمو خلکو مذهبي ازادي، د مسلمانانو تر مذهبي بې عزتۍ پورې رسول نه دی په کار، الله ﷻ دې و مسلمانانو ته ایمان او عقل ور نصیب کړي

**(فتاویٰ یوسفیه جلد اول صفحه ۶۶)**

## آیا غیر مسلمو ته سلام اچول روا دی او که نه؟

**پوښتنه**: آیا غیر مسلمو ته سلام اچول روا دی او که نه؟

**جواب**: و غیر مسلمو ته سلام اچول نه دی په کار، مگر په هغه صورت ک

که ده سلام در واچوی، نو صرف وعلیکم ورته ویل په کار دي، البته که د ملاقات وخت راغی یا په لاره کې سره مخامخ سواست نو د سلام پر ځای باید د ده د عافیت او خیریت په هکله پوښتنه وکړئ یعني ورته ووایاست چې څه حال دي دی، ښه خو یې، خیر خو دی ، په کور کې کراري ده او داسې نورو جملو سره د ده دل جویي یعني زړه خوشحاله کړئ.

**(فتاویٰ یوسفیه جلد اول صفحه ۶۷)**

## آیا د هندوانو دعوت او میلمستیا قبلول روا دي او که نه؟

**پوښتنه**: د هندوانو یا نورو غیر مسلمو تحفه او یا هم د عوت او میلمستیا قبلول روا دي او که نه؟

**جواب**: هو! د غیر مسلمو تحفه قبلول روا دي، په دې شرط چې مرداره نه وي، همدارنګه د هندو میلمستیا قبلول په دې شرط چې په حلاله طریقه سره یې ګټلې وي روا ده. **(فتاویٰ یوسفیه جلداول صفحه ۶۸)**



## آیا د غیر مسلمو خلکو سره ډوډۍ خوړل روا ده او که نه؟

**پوښتنه**: د غیر مسلمو خلکو سره ډوډۍ خوړل روا ده او که نه؟

**جواب**: هو! د غیر مسلمو خلکو سره ډوډۍ خوړل روا ده، مګر د مرتد سره روا نه ده. **(فتاویٰ یوسفیه جلداول صفحه ۶۹)**

## آیا د هندوانو نذر خوړل روا دی او که نه؟

**پوښتنه**: ځینې وخت هندوان د خپلو بتانو پر نامه نذر کوي او پر خلکو یې تقسیموي آیا د دغه شي خوړل روا دي او که نه؟

**جواب**: د بوتانو په نامه نذر کړل شوی شی شرعًا حرام دی، د هیڅ مسلمان لپاره د دغه شي خوړل روا نه دي **(فتاویٰ یوسفیه جلداول صفحه ۷۱)**

## آیا د مرتد لپاره جنازه روا ده او که نه؟

**پوښتنه**: آیا د مرتد لپاره جنازه روا ده او که نه؟

**جواب**: د غیر مسلم جنازه روا نه ده او مرتد خو شرعًا واجب القتل دی، د هغه جنازه به څه ډول روا شي. **(فتاویٰ یوسفیه جلداول صفحه ۷۲)**

## ملائکو و حضرت ادم علیه السلام ته څه ډول سجده وکړه؟

**پوښتنه**: ملائکو و حضرت ادم علیه السلام ته څه ډول سجده وکړه؟

**جواب**: په دې کې دوه قوله دي: يو قول دا دی چې دغه سجده و ادم علیه السلام ته د تعظيم په ډول وه او بل قول دا دی چې دغه سجده الله جل جلاله ته وه، او د آدم علیه السلام حيثيت د دوی لپاره دا ډول ؤ. لکه زموږ لپاره چې قبله شريفه ده.

**( فتاوی يوسفيه جلداول صفحه ٩٦)**

## آیا قرآن شریف افضل دی او که جناب رسول الله ﷺ؟

**پوښتنه**: آیا قرآن شریف افضل دی او که جناب رسول الله ﷺ؟

**جواب**: که چیرې د قرآن شریف څخه کلام الله مراد واخلې. نو دا خو د الله جل جلاله صفت دی نو بیا د قرآن شریف د افضل کېدو په هکله هیڅ شک نه شته. او که د قرآن شریف څخه مراد مصحف يعني د قرآن شریف مطبوع (چاپ) او د هغه مکتوب (نوشته) واخلې، نو په دې صورت کې بیا د جناب رسول الله ﷺ په افضل کېدلو کې هیڅ شک نه شته.

**(کفایت المفتي جلد اول صفحه ١٢٥)**



## د قرآن شریف د خیري شوو او زړو شوو ورقو حکم:

**پوښتنه**: که چیرې د قرآن شریف خیرې شوې ورقې په دې خیال سره وسوځل شي چې د هغو توهین ونه شي نو آیا دا کار روا دی او که نه؟

**جواب**: د توهین څخه د ساتلو په غرض د قرآن شریف د زړو ورقو سوځل مباح او روا دي. ځکه چې حضرت عثمان رضي الله عنه چې د کومو مصاحفو پاته کېدل مناسب ونه بلل نو بې وسوځل لکه چې وايي: و امر بماسواه من القرآن فی کل صحيفة او مصحف ان يحرق.

**( بخاري شريف جلد دوهم صفحه ٧۴٦)**

مگر ښه کار دا دی چې ښخ کړل شي يا په اوبو کې وبهول شي. خو دا چې نن سبا د مناسب ځای پيدا کېدل مشکل دی نو کفايت المفتی څخه دا راز ليکي: په يو محفوظ ځای کې د قرآن شريف د زړو شوو ورقو ښخول هم روا دی، مگر نن سبا بې سوځل ښه کار دی، ځکه چې داسې محفوظ ځای پيدا کول چې هلته دې انسان او يا حيوان ور ونه رسيږي، ډېر مشکل دی او د حضرت عثمان رضي الله عنه د مصاحفو سوځل د دې کار د جواز دليل دی.

**(کفايت المفتی جلد اول صفحه ١٢٧)**

## آیا قابل احترام ورقې په ردي کې استعمالول روا دي او که نه؟

**پوښتنه**: په ورځپاڼو او اخبارو کې چې کوم آیاتونه او یا هم قابل احترام مضامین لیکلي وي، هغه د ویلو څخه وروسته په ردي کې استعمالول یعني یو شی پکښې پېچل، لکه نن سبا چې ځیني خلک ډوډۍ او یا نور شیان پکښې پېچي او یا په دغو اخبارو باندې سیښې پاکوي روا دي او که نه؟

**جواب**: په کومو ورځپاڼو او مجلو کې چې د قرآن شریف آیاتونه او یا نور معتبر مضامین لیکلي وي هغه په ردي کې استعمالول روا نه دي لکه فتاویٰ عالمګیري چې پخپل پنځم جلد کې لیکي **ویکره ان یجعل شیئاً فی کاغذ فیها اسم الله تعالی کانت الکتابة علی ظاهرها او باطنها.**

**(فتاویٰ هندیه جلد پنځم صفحه ۳۲۳)**

## صرف د قرآن شریف ترجمه خپرول روا دي او که نه؟

**پوښتنه**: آیا د قرآن شریف دا ډول ترجمه خپرول چې د قرآن شریف عربي متن پکښې نه وي لیکل شوی روا دي او که نه؟

**جواب**: هو، د قرآن شریف د اصل عربي نظم او د هغه د ځانګړتیاوو د ساتنې



لپاره دا ضروري دي چې د ترجمې سره یې عبارت هم ولیکل شي، ځکه چې یوازې د ترجمې په اشاعت سره د تغیر او تبدیل امکانات زیات راځي. لکه چې ردالمحتار پخپل لومړي جلد کې زیاتوي: **ان اعتاد القراءة بالفارسیة او اراد ان یکتب مصحفا بها یمنع..**

**( رد الحتار جلد اول صفحه ۴۸۶)**

## د یوچا د لاس څخه په نافهمۍ کې د قرآن شریف لوېدل:

**پوښتنه**: که د یوه سړي څخه په نافهمۍ کې قرآن شریف پر مځکه ولوېدی، نو څه به کوي؟

**جواب**: که د یوه سړي د لاسه څخه بلا قصده قرآن شریف ولوېدی نو پر دغه سړي باندې هیڅ مؤاخذه نه شته، صرف د خپلې بې احتیاطۍ او غفلت په وجه به د خدای ﷻ څخه بخښنه غواړي.

**(کفایت المفتی جلد اول صفحه ۱۳۰)**

## د کوچني په غوږ کې د اذان کولو وخت:

**پوښتنه**: د نوي زېږدلي کوچني په غوږ کې به څه وخت اذان کوي، که چیرې په اوله ورځ اذان ونه کړي څه پروا خو نه لري؟ او بله پوښتنه دا ده چې

په راسته غوږ کې به یې اذان کوي او په چپه غوږ کې به یې اقامت وایي او که څنګه؟

**جواب**: وروره! د کوچني په غوږ کې د اذان کولو لپاره کوم معلوم وخت نه شته، مګر کوښښ په کار دی چې په دې کې غفلت ونه کړل شي، که چیرې د غفلت له وجې څو ورځې وځنډول شي نو وروسته دې اذان وکړل شي او د کوچني په راسته غوږ کې اذان او په چپه غوږ کې اقامت کول سنت دي.

عن ابی رافع ﷺ قال رأیت رسول الله ﷺ اذن فی اذن الحسن بن علی حین ولدته فاطمة بالصلوة، قال الملاعلی القاری رحمة الله علیه ( حین ولدته فاطمة) یحتمل السابع و قبله. (مرقاة جلد ۸ صفحه ۱۵۹)

## هغه سړی چې لاسونه یې پرې شوي وي څه ډول به اودس تازه کوي؟

**پوښتنه**: که چیرې د یو سړي لاسونه پرې شوي وي، نو دی به د لمانځه لپاره څه ډول اودس تازه کوي؟

**جواب**: د اوداسه پر اندامونو دې اوبه وبهوي، که چیرې یې پر دې قدرت نه درلودی نو تیمم دې وکړي، که یې چیرې پر لاسونو زخم ؤ، یا یې لاسونه تر بازو پورې پرې شوي وه او پر مخ یې هیڅ ډول اوبه نه شوای بهولای یعني پر مخ یې د اوبو د بهولو قدرت هم نه درلودی، نو مخ دې پر مځکه یا پر د یواله



او یا پر بل شي باندې د تیمم په نیت سره (کرار کرار) وموږي چې خوږ نه شي او که یې پر مخ زخم ؤ، نه یې شوای کولای چې پر دیواله یې وموږي یعني پر دې کار یې هم قدرت نه درلودی، نو بې له اوداسه لمونځ کولای شي او بیا د لمانځه راګرځول هم نه غواړي لکه فقهاء چې لیکي

قال فی التنویر مقطوع الیدین والرجلین اذا کان بوجه جراحة یصلّی بغیر طهارة ولا یعید علی الاصح وفی الشامیة (قوله وبوجهه جراحة) والامسحه علی التراب ان لم یمکنه غسله.

( ردالمحتار جلد اول صفحه ۲۳۳)

## که اوبه اوخاورې نه وې د لمانځه کولو په وخت کې به سړی څه کوي؟

**پوښتنه**: که یو سړی په ریل ګاډۍ کې په سفر روان ؤ خو په دې وخت کې بې اودسه شو، د لمانځه وخت راغی او اوبه هم نېستې وې او همدارنګه په ګاډۍ کې د ډېر رش له وجې د لمانځه کولو ځای هم نه ؤ موجود، نو آیا بې له اودسه او په اشاره سره لمونځ کولای شي او که نه. دا خو یو صورت ؤ. بل صورت دادی که چیرې یو څوک اودس خو ولري مګر د لمانځه کولو ځای نه وي، نو د ځای د نېستیوالي له وجې په اشاره سره لمونځ صحیح کیږي او که نه؟ او بله خبره داده چې په دغو دواړو ذکر شوو صورتونو کې د لمانځه د قضا کېدلو بیره هم شته؟

**جواب:** ورورہ! په دواړو صورتونو کې چې هر ډول ممکن وي لمونځ کولای شي مګر وروسته به يې قضاء راوړي.

**(احسن الفتاوی جلد ۲ صفحه ۲۶)**

## آيا يو مسلمان ته روا دي چې د مجبورۍ او اضطرار په حالت کې د کفر کلمه ووايي يا بت ته سجده وکړي:

**پوښتنه:** آيا د يو مسلمان لپاره دا روا دي چې د مجبورۍ او اضطرار په حالت کې د کفر او شرک د کلمې په ويلو سره او يا بت ته د سجدې کولو په وجه سره خپل ځان د مرګه څخه وساتي؟

**جواب:** هو، ورورہ! د محمدي قانون له نظره د مجبورۍ په وخت کې د کفر او شرک د کلمې ويلو اجازت شته په دې شرط چې زړه به يې مطمئن وي، د قرآن شريف د سورة نحل دغه ايت وګورئ چې فرمايي:

مَنْ كَفَرَ بِاللّٰهِ مِنْ بَعْدِ اِيْمَانِهٖٓ اِلَّا مَنْ اُكْرِهَ وَقَلْبُهٗ مُطْمَئِنٌّۢ بِالْاِيْمَانِ.

**(سورة النحل ايت ۱۰۶)**

**ترجمه:** هر هغه څوک چې پر الله ﷻ تر ايمان راوړلو وروسته (بيرته) کافر شو (نو د الله ﷻ غضب دی پر دغسې چا) مګر نه هغه څوک چې زور پر وکړل شو (او مجبوراً يې د کفر کلمه وويله) حال دا دی چې زړه دده په ايمان سره



مطمئن دی.

کفايت المفتی ليکي چې کفر او شرک يو ډېر حرام کار دی، د مسلمان لپاره په کار دي چې د دغه حرام کار څخه ځان وساتي، مګر د اضطرار په حالت کې رخصت دی لکه الله ﷻ چې فرمايي:

**وقد فصل لكم ماحرم عليكم الاما اضطررتم اليه. (سورة الانعام)**

همدارنګه په بخاري شريف کې راغلي دي چې مجبور ضعيف ګڼل کيږي، چې د خپل ضعف په وجه سره الهی امر پرېښوولای شي (يعني د حرامو مرتکب کېدای شي) له دې سببه ضعيف ته الله ﷻ معذور ويلی دی لکه چې فرمايي: **قال ابو عبدالله فعذر الله المستضعفين الذين لا يمتنعون من ترك ما امر الله به والمكره لايكون الامستضعفاً غيرممتنع من فعل ما امر به.** **(صحيح البخاري جلد۲ صفحه ۱۰۲۶)**

همدارنګه مرقات شرح مشکوة پخپل لومړي جلد کې په دې هکله داسې ليکي: **اما باعتبار اصل الجواز فيجوز له ان يتلفظ وان يفعل ما يقتضى الكفر كسب الاسلام وسجود الصنم اذا هدد ولو بنحو ضرب شديدا واخذ مال له وقع كما افاد ذلك قوله تعالى من كفر بالله من بعد ايمانه الامن اكره وقلبه مطمئن بالايمان الاية.**

**(مرقات شرح مشکوة جلداول صفحه ۱۱۱)**

## که چیري یو چا ته د مرګ دمکۍ ورکړل شي چې فلانی سړی به وژنې که نه نو تا وژنم، آیا د هغه سړي وژل دده لپاره روا دي؟

ورورہ! لومړی دا خبره زده کړه چې شرعي محرمات پر درې ډوله دي، یو قسم یې داسې دي چې د اضطرار او اکراه په صورت کې روا دي دا هغه ډول محرمات دي چې که عملي نه کړل شي او په دې وجه دغه سړی مړ شي نو ګناه کاره دی لکه د اضطرار او اکراه په حالت کې د خنزیر یا د مړه حیوان د غوښو خوړل . که چیري دغه شیان ونه خوړل شي او دی مړ شي نو د شریعت له رویه دغه سړی ګناهکاره دی.

دوهم قسم هغه ډول محرمات دي چې عملي کول یې مباح دي یعني په عملي کولو کې یې کومه ګناه نشته، مګر د نه عملي کولو په وجه که چیري مړ شو ، نو موجب د اجر او ثواب دی لکه د کفر پر کلمې ویلو مجبوره کېدل، یا بت ته پر سجده کولو مجبوره کېدل (یا اسلامي شعائرو ته پر ښکنځلو کولو مجبوره کېدل).

په دې شرط سره چې په زړه کې به یې ایمان قائم وي او بت ته په سجده کې به یې و الله ﷻ ته د سجدې نیت وي د کفر کلمه پر ژبه باندې راوړل او یا د بت په مخکې سجده کول یا اسلامي شعائرو ته ښکنځل کول د شریعت له رویه مباح ګرځي، مګر که دغه سړی انکار وکړي او په دې وجه ووژل شي، یا د بدن یو غړی ځیني پرې کړل شي،نو موجب د اجر او ثواب دی ځیني فقها وايي



چې د شهداؤ ثواب ورکول کیږي لکه ډېر صحابه کرامو ﷺ ته چې ډول ډول تکلیفونه د مشرکینو له خوا ورکړل شول، مګر بیا یې هم د کفر کلمې تر مبارکو خولو راونه وتلې.

دریم قسم هغه ډول محرمات دي چې په هیڅ حالت کې مباح او روا نه جوړیږي لکه پر یو چا چې اکراه او زور واچول شي چې خپل پلار. زوی، لور، ښځه یا یو بل داسې انسان چې د شریعت له نظره یې وژل روا نه وي ووژنه، یافلانی سړی ډېر سخت وواهه یا ښکنځل اوازار ورکړه یازناوکړه یایواندام ځیني غوځ کړه، دغه کارونه هیڅکله او د هیچا لپاره نه روا کیږي، بلکې پر اکراه صبر کول په کار دي که څه هم چې خپله ووژل شي، په قرآن شریف کې دغه آیت چې فمن اضطر غیر باغ ولاعاد د لومړي قسم په هکله دی او دا آیت چې مَنْ كَفَرَ بِاللهِ مِنْ بَعْدِ اِيمَانِهِ اِلَّا مَنْ اُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْاِيمَانِ د دوهم قسم په هکله دی، په دغو دوو ځایونو کې پاک او مقدس شریعت د ځان د ساتلو لپاره ددغو خبرو اجازت ورکړی دی، مګر په دریم صورت کې د یوه ځان د ساتلو لپاره د بل ځان هلاکول رامنځته کیږي چې دا کار په هیڅ ډول روا نه دی لکه ردالمحتار چې په کتاب الاکراه کې لیکي: فان اکره علی اکل میتة او دم او لحم خنزیر او شرب خمر (تنویر الابصار) قال المحقق فی الشامیه (قوله فان اکره علی اکل میتة) الاکراه علی المعاصی انواع، نوع یرخص فعله ویثاب علی ترکه کاجراء کلمة الکفر وشتم النبی ﷺ وترک الصلوة و کل ماثبت بالکتاب، وقسم یحرم فعله ویاثم باتیانه کقتل مسلم او

قطع عضوه اوضربه ضربا متلفا او شتمه او اذيته اوالزنا، وقسم يباح فعله ويأثم تركه كالخمر وما ذكر معه.

**(ردالمحتار، كتاب الاكراه جلد۶ صفحه ۱۳۳)**

همدارنګه لږ وروسته ليكي

وان اكره على الكفر بالله تعالى وسب النبى ﷺ مجمع وقد روى يقطع او قتل رخص له ان يظهر مامر به على لسانه ويودى وقلبه مطمئن بالايمان......... ويؤجر لو صبر (تنوير وشرحه) قال المحقق فى الشاميه اى يؤجر اجر الشهداء.

**(ردالمحتار كتاب الاكراه جلد۶ صفحه ۱۳۴، ۱۳۵)**

## آيا د اضطرار په حالت كي سود اخيستل روا دي:

**پوښتنه**: آيا د سخت تكليف په وخت كي د سود اخيستل روا دي كه نه؟

**جواب**: هو. د اضطرار په حالت كي دومره سود اخيستل چي دده اضطرار له منځه يوسي مباح دى، مګر تر دي زيات اخيستل او يا دومره اخيستل چي اضطرار يې لا باقي وي روا نه دى. **(كفايت المفتى جلد۲صفحه ۲۳۰)**

همدارنګه تفسير ابن كثير ليكي. قال الله تعالى فمن اضطر غير باغ ولا



عاد فلا اثم عليه (الاية) قال الحافظ عماد الدين فى تفسيره اى فى غير بغى ولا عدوان وهو مجاوزة الحد ولا يا كل الا العلقة ويحمل معه ما يبلغه الحلال.

**(تفسير ابن كثير: البقرة آيت ۱۷۳ جلداول صفحه ۱۰۶)**

## كه يو مسلمان ډاكتر د يوه ناروغه د علاج لپاره شراب خوړل لازمي وبولي آيا ددغه ناروغ لپاره دا كار روا دى؟

**پوښتنه**: كه چيري يو مسلمان ډاكتر د يوه ناروغه د علاج لپاره دا ضروري وګڼي چي ستا د ناروغۍ لپاره دا ضروري ده چي څو څاڅكي شراب وخوري. آيا ددغه ناروغه لپاره روا دي چي ددغه ډاكتر په خبره عمل وكړي؟

**جواب**: وروره! په دي هكله د فقهاوو اختلاف دى ځيني يې روا بولي او ځيني يې ناروا بولي درمختار ليكي. چي صحيح مذهب دادى چي په حرامو سره تداوي روا نه ده نو كوم فقهاء چي په حرام شي سره تداوي حرام بولي هغوى ليكي. چي په حرام او نجس شي باندي د علاج كولو لپاره په دي شرط اجازت وركول كيداى شي چي مسلمان ډاكتر ورته ووايي چي ستا د ناروغۍ د علاج لپاره د شرابو خوړل ضروري دي. بې له شرابو بله دوا ستا د ناروغۍ د علاج لپاره ګټوره نه ده. صرف د غير مسلم ډاكتر قول ددي لپاره كافي نه

دی (دا ځکه چې په غیر مسلم پوره اعتماد نه شي کیدای ځکه چې په ډېرو غیر مسلمو قومونو کې د شرابو استعمال بې له څه مشکله روا دی) لکه ردالمحتار چې لیکي: **یجوز للعلیل شرب البول والدم والمیتة للتداوی اذا اخبره طبیب مسلم ان شفائه فیه ولم یجد من المباح ما یقوم مقامه وهل یجوز شرب القلیل من الخمر للتداوی فیه وجهان انتهی مختصراً.** (**ردالمحتار کتاب الحظر والاباحة جلد۶ صفحه ۳۸۹**)

## که یو چا د خپلې مور یا خور سره زنا وکړل آیا په دې کار سره دغه سړی کافر کیږي او که نه؟

**پوښتنه**: که یو چا د خپلې مور یا خور یا عمه یا خاله یا یو بل داسې چا سره زنا وکړل چې دده سره یې د تل لپاره نکاح حرامه وه، آیا په دغه کار سره دغه سړی کافر کیږي او که نه، همدارنګه یوه سړي د یوې فاحشې ښځې یعني رنډۍ سره هر وخت زنا کوله، څه زمانه وروسته ددغې فاحشې ښځې لور پیدا شول، مګر دا معلومه نه وه چې دا به ددغه سړي د نطفې څخه پیدا شوې وي او که به د بل چا د نطفې څخه، ځکه چې ددغې ښځې سره خو نورو خلکو هم زنا کوله، مطلب دادی چې دغه نجلۍ د پنځه ویشتو کلونو شول، دغه سړي ددغې نجلۍ سره هم زنا وکړل، نو اوس ددغه سړي شرعاً څه حکم دی چې هم یې د مور او هم یې د لور سره زنا کړې ده؟

**جواب**: وروره! د انسان په طبیعت کې دغه خبره پرته ده چې د مور او خور



سره د زنا څخه نفرت کوي، مګر که بیا هم یو خبیث النفس سړي داسې کار وکړي نو باید ووایم چې د ګناه کبیره په کولو سره څوک نه کافر کیږي، مګر هو، که څوک دغه ناروا کار حلال وبولي په دې سره کافر کیږي لکه ردالمحتار چې لیکي: **من استحل حراماً قد علم فی دین النبی ﷺ تحرمه کنکاح المحارم فکافر.**

(**ردالمحتار مطلب استحلال المعصیة کفر جلد۲ صفحه۲۹۲**)

مګر بې له قوي او پاخه دلیله دغه خبره د یو مسلمان وطرفته منسوبول روا نه دي.

ستاسې د دوهمې پوښتنې جواب دادی چې دغه سړی چې تاسې وایاست هم یې پخپله د رنډۍ او هم د هغې د لور سره زنا کوي فاسق دی، دا فرق نه کوي که یوازې د رنډۍ سره زنا وکړي هم فاسق ګرځي او که یې د لور سره وکړي خو تر دې لا زیات، د محمدي شریعت له رویه پر دغه سړي د زنا حد لازمیږي، مګر اوس د حدودو د اقامت زمانه نه ده، ځکه چې د حدودو اقامت دامام سره خاص دی لکه ردالمحتار چې لیکي:

**فیشترط الامام لاستیفاء الحدود.** (**ردالمحتار جلد۶صفحه ۵۴۹**)

نو له دې وجې پر مسلمانانو لازم دي چې د داسې شخص سره زجراً او توبیخاً اسلامي تعلقات تر هغو پرې کړي ترڅو چې دی توبه کاږي او دده د توبې خلوص د قرائنو او علامو څخه معلومیږي لکه فتح الباري شرح صحیح البخاري چې لیکي: **فتبین هذا السبب المسوغ للهجر وهو عن صدرت**

منه معصية عليها ليكف عنها وقال المهلب غرض البخاري في هذا الباب: ان يبين صفة الهجران الجائز، وانه يتنوع بقدر الجرم فمن كان من اهل العصيان يستحق الهجران بترک المکالمة کما في قصة کعب وصاحبيه.(فتح الباري بشرح صحيح بخاري، باب مايجوز عن البحران لمن عصى جلد۱۰ صفحه ۴۱۵)

## په دارالحرب کې پر زنا کاره ښځې او زنا کاره سړي حد نه شي جاري کېداې:

**پوښتنه**: که چېرې په دارالحرب کې یو واده والا ښځه د یو واده والا سړي سره زنا وکړي نو پر دوی رجم څنګه جاري کېدای شي او علماء دین ته ددغه حکم نافذول څنګه په کار دي؟

**جواب**: وروره! د شرعي حدودو د تنفیذ لپاره دارالاسلام شرط دی په دارالحرب کې خو اسلامي پاچا لا هم شرعي حدود نه شي قائمولای. نو په دې صورت کې د امت پر علماوو لازمه ده چې د خپل طاقت سره سم زنا کاره سړي او زنا کاره ښځې ته زجر ورکړي. تر څو چې د وخت د قانون سره متصادم او په ټکر کې نه وي. د مثال په توګه د مقاطعې یعني قطع تعلق حکم ورکول کېږي، یعني تر څو چې زنا کاره سړی او زنا کاره ښځې توبه نه وي کښلې تر هغو پورې باید تعلق ورسره ونه ساتل شي لکه فتح الباري چې لیکي: قال المهلب



غرض البخاري في هذا الباب: ان يبين صفة الهجران الجائز، وانه يتنوع بقدر الجرم فمن كان من اهل العصيان يستحق الهجران بترک المکالمة کما في قصة کعب وصاحبيه.(فتح الباري شرح صحيح البخاري، باب مايجوز عن البحران لمن عصى جلد۱۰ صفحه ۴۱۵)

## که یو څوک د غوا یا بزې سره بد کاري وکړي، نو په دې غوا یا بزې به سړی څه کوي؟

**پوښتنه**: که چېرې یو سړی د غوا یا بزې سره بد کاري وکړي، نو په دغې بزې او غوا به سړی څه کوي، آیا تر دې وروسته ددغو حیواناتو څخه استفاده روا ده او که نه او د زنا کاره لپاره څه حکم دی او د دې تاوان پر چا دی؟

**جواب**: د کومې غوا یا بزې سره چې زنا شوې ده، باید حلاله کړل شي، ددې څخه هیڅ نفع اخیستل روا نه دي او زنا کاره باید صرف زجر او توبیخ کړل شي لکه درمختار چې لیکي: **ولايحد بوطی بهيمة بل يعزر وتذبح ثم تحرق ويكره الانتفاع بهاحية وميتة. (درمختار)**

او د قیمت تاوان پر زنا کاره دی لکه ردالمحتار چې لیکي: **قال في الخانية**

کان لصاحبها ان یدفعها الیه بالقیمة.

**(ردالمحتار مطلب فی وطی الدابة جلد۴ صفحه۲۶)**

مگر دا خبره نه ده چي مالک دي پخپله دغه حیوان حلال کړي او د زنا کاره شخه دي خامخا ددې حیوان قیمت واخلي، که چیري مالک خپله حلاله کړل نو پر زنا کاره باندي ددې قیمت ورکول واجب نه دي، بلکي حیوان به زاني ته ورحواله کوي او قیمت به يې ځيني اخلي.

د حیوان سره د زنا د ثبوت لپاره د زاني اقرار کافي دی، خو که هغه اقرار ونه کړي مگر د حیوان مالک ددې دعوه لري چي ده زما د حیوان سره زنا کړې ده. نو ددې لپاره د شاهدانو راوستل ضروري دي، تر څو چي د زاني شخه د خپل حیوان قیمت واخیستلای شي، د زنا شوي چارپایه شخه نفع اخیستل مکروه تحریمي دي. **(کفایت المفتی جلد۲ صفحه ۲۲۲)**

## که یو مېړه خپله ښځه د یو بل سړي سره پر زنا ووینې آیا دغه مېړه کولای شي چي خپله ښځه بې له قاضي پېشولو ووژني:

**پوښتنه**: که چیري یو سړي خبله ماینه د یو بل شخص سره پر زنا کولو پخپلو سترگو ولیدل، آیا اوس دغه سړی دا حق لري چي هم خپل ماینه او هم دغه سړی چي دده د ماینې سره زنا کوي بې له د قاضي د فیصلې څخه ووژني. او که دا حق نه لري چي دوی ته پر خپل سر څه سزا ورکړي، او بله خبره داده که



چیري دده ماینه توبه وکاږي نو آیا مېړه ودې ته معافي او بخښنه کولای شي او که نه؟

**جواب**: نه وروره! شرعًا دغه سړی حق نه لري چي خپله ماینه او یا هغه سړی چي دده د ماینې سره زنا کوي بې له د قاضي د فیصلې خپله ووژني، که څه هم پخپلو سترگو به يې د دوی زنا لیدلې وي.

**(کفایت المفتي جلد۲ صفحه ۲۲۳)**

وروره! ته ودې ته فکر وکړه د دنیا قانون لا پخپل لاس کي اخیستل د حکومت په نزد څومره ستر جرم دی، نو د خدای ﷻ د قانون پخپل لاس کي د اخیستلو به څنگه اجازت ورکړل شي، مگر که د ډېره جوشه او غضب څخه یو سړی راولاړ شي دغه کار وکړي، نو د خدای ﷻ په نزد که دی صادق وي د قتل په تور نه نیول کیږي یعني په آخرت کي د قتل سزا نه ورکول کیږي، مگر په دنیا کي د شرعي قانون له لوري مجرم گڼل کیږي لکه عمدة القاري شرح صحیح بخاري چي لیکي: اختلف فیمن قتل رجلاً وزعم انه وجد قدزني بامراته فقال جمهور هم، لا یقبل بل یلزمه القصاص الا ان تقوم بذلک بنیة اوتعترف به ورثة القتیل والبینة اربعة من عدول الرجال یشهدون علی نفس الزنا ویکون القتیل محصناً واما فیما بینه وبین الله تعالی فان کان صادقًا فلا شئی علیه. **(عمدة القاري شرح صحیح البخاري کتاب التفسیرجلد۱۹صفحه ۷۵)**

## که یو سړي د یوې شیدې کوونکي ګامیښې سره بدکاري وکړل نو دغه سړي ته د شریعت له نظره کومه سزا ورکول کیږي:

**پوښتنه**: یو بالغ مسلمان د یوې شیدې کوونکي ګامیښې سره زنا وکړل، که چیرې اسلامي حکومت موجود ؤ، نو دغه سړي ته باید اسلامي حکومت کومه سزا ورکړي او دغه ګامېښه به څه په کوي؟

**جواب**: د هر حیوان سره حرام کاري کوونکی سړی ګناه کاره دی او حیوان خوغیر مکلف دی عقل او فکر نه لري، پر هغه هیڅ ګناه نشته. مګر هو په دې وجه چې خلک هر کله دغه حیوان ویني دا به وایې چې دا خو هغه حیوان دی چې فلاني سړي بدکاري ورسره کړې ده، ددې لپاره چې دغه خبره نوره ختمه شي، نو ددې وجې ددغه حیوان د حلالېدلو او ښخېدلو حکم کیږي او که ددغه حیوان مالک بل سړی ؤ، نو دی حق لري چې ددغه حیوان ټول قیمت د زنا کاره څخه واخلي، او که چیرې هغه نه ورکاوه، نو مالک کولای شي چې ددغه حیوان څخه استفاده وکړي او بله خبره داده چې پر دغه زنا کاره حد نه جاري کیږي صرف تعزیر ورکول کیږي یعني تر هغو دې مسلمانان تعلق نه ورسره ساتي تر څو چې یې ددغه بد کار څخه توبه نه وي کښلې لکه ردالمحتار چې لیکي: **ولایحدبوطء بهیمة بل یعزر، وتذبح ثم تحرق** (تنویر الابصاروشرحه) قال المحقق فی الشامیه: **(قوله وتذبح ثم تحرق)**



ای لقطع امتداد التحدث به کلما رؤیت ولیس بواجب...... فان کانت الدابة لغیر الواطی یطالب صاحبها ان یدفعها الیه بالقیمة ثم تذبح، هکذا قالوا، ولا یعرف ذلک الاسماعًا فیحمل علیه.

**(ردالمحتار باب الوطء جلد۴ صفحه ۲۶)**

همدارنګه عمدة القاري شرح صحیح البخاري لیکي:

قال المهلب غرض البخاري فی هذا الباب: ان یبین صفة الهجران الجائز، وانه یتنوع بقدر الجرم فمن کان من اهل العصیان یستحق الهجران بترک المکالمه کما فی قصة کعب وصاحبیه.

**(فتح الباري شرح صحیح البخاري، باب مایجوز عن البحران لمن عصی جلد۱۰ صفحه ۴۱۵)**

## که یو سړي دا اقرار وکړ چې ما د خپلې خواښې سره زنا وکړل نوایا پر دغه سړي خپله ماینه یعني ددغې ښځې لور پر حرامیږي:

**پوښتنه**: یوه ورځ یو سړی زموږ د سیمې ویو عالم ته راغی او ورته یې وویل چې صاحبه! ما مسلمان کړه او ماته معافي وکړه، دغه عالم ورته وویل چې د څه شي معافي درته وکړم، سړي ورته وویل چې هغه تور چې پر ما

لګېدلی دی چې د خپلې خوابنۍ سره مې زنا کړې ده، هغه رشتيا دي، ما د خپلې خوابنۍ سره زنا کړې ده، دغه ګناه زما څخه واقعي شوې ده، آيا په دې سره پر دغه سړي خپله ماينه چې د هغې ښځې لور ده چې دی وايي ما زنا ورسره کړې ده طلاقيږي او که په صرف توبه سره خبره خلاصيږي؟

**جــواب**: وروره! د زنا د اقرار د ثبوت لپاره دا شرط دی چې اقرار به د قاضي د مجلس په وړاندې وي او اقرار کوونکی به څلور واري په څلورو مجلسونو کې پر خپلې ګناه اقرار کوي که چيرې تر محکمې يعني د قضا تر مجلس دباندې اقرار وکړي دا د شريعت له رويه د اعتبار وړ نه دی. همدارنګه پر اقرار باندې شهادت قابل اعتبار نه دی لکه عالمګيري چې ليکي:

ولا يعتبر اقراره عند غير القاضي ممن لا ولاية له في اقامة الحدود ولو كان اربع مرات حتى لا تقبل الشهادة عليه بذلك كذلك في التبيين ولا بدان يكون الاقرار صريحا.

**(فتاوى عالمگيري الباب الثاني في الزنا جلد۲ صفحه ۱۴۳)**

والاقرار ان يقر البالغ العاقل على نفسه بالزنا اربع مرات في اربعة مجالس المقر كذا في الهداية. **(فتاوى عالمگيري الباب الثاني في الزنا جلد۲ صفحه۱۴۴)**

لېکن فکر مووي چې د زنا د حد د ثبوت لپاره د اقرار کولو دغه شرائط دي، د حرمت زوجی يعني د مايني د حراموالي لپاره او د حرمت مصاهرة لپاره



دغه شرائط نه دي، بلکې دغه شی په يو وار اقرار کولو سره هم ثابتيږي او ددې لپاره د قضا مجلس هم شرط نه دی لکه عالمګيري چې ليکي:

قيل لرجل ما فعلت بام امراتك قال جامعتها قال ثبت حرمة المصاهرة قيل ان كان السائل والمسئول هازلين قال لايتفاوت ولايصدق انه كذب كذا في المحيط.

**(فتاوى عالمگيري جلد۱ صفحه ۹۲۴)**

## د ځنګله بوټي په غير قانوني ډول سره وهل شرعي جرم دی:

**پوښتنه**: دلته يو ځنګل دی، په دې ځنګله کې ډېر بوټي ولاړ دي، مګر حکومت چا ته دا اجازت نه ورکوي چې دغه بوټي دي ووهي. حکومت وايي چې دغه کار د سيمې لپاره ډېر تاواني دی. ځينې خلک دغه بوټي وهي او بيا يې په غير قانوني توګه پر تجارانو خرڅوي. آيا د دغه مال رانيول روا دي او که نه؟

**جـواب**: وروره! د هغو ځنګلاتو بوټي وهل چې مباح الاصل نه وي، نه يوازې قانوني جرم دی، بلکې شرعي جرم هم دی. نو د داسې مال رانيول روا نه دي لکه ردالمحتار چې ليکي: اما ان يكون ضررها بذي المال، اوبه و بعامة المسلمين، فالاول يسمى بالسرقة الصغرى. والثاني بالكبرى.......

اى لان المعتبر فى كل منهما اخذ المال خفيةً لكن الخفية فى الصغرى هى الخفية عن عين المالك ومن يقوم مقامه كالمودع المستعير، وفى الكبرى عن عين الامام الملتزم حفظ طرق المسلمين وبلادهم.

**(ردالمحتار: كتاب السرقة جلد۴ صفحه ۸۲)**

همدارنګه لوی قرآن فرمايي:

ولاتعاونوا على الاثم والعدوان. (سورة المائده آيت ۲)

## که چيري يو سړی په قرآن شريف قسم واخلي چي زه به دا فلانی کار کوم مګر هغه کار ونه کړي آيا دې ته قسم ويل کيږي او که نه:

**پوښتنه**: که چيري يو سړی په قرآن شريف قسم واخلي چي زه به دا فلانی کار کوم، يا به فلانی کار نه کوم، نو آيا دې ته قسم ويل کيږي او که نه. ځکه چي قسم خو هغه ته ويل کيږي چي د الله ﷻ په نامه واخيستل شي او که يو څوک دا ډول قسم واخلي او پوره يې نه کړي نو حانث کيږي او که نه يعني ددغه سړي پر ذمه کفاره واجب ده او که نه؟

**جواب**: وروره! څوک چي په قرآن شريف قسم وخوري او بيا هغه کار پوره نه کړي، نو دی پخپل قسم کي حانث کيږي او پر دغه سړي د قسم کفاره واجب ده لکه درمختار چي ليکي: قال الكمال ولا يخفى ان الحلف بالقرآن الآن



متعارف فيكون يميناً (درمختار) وقال محمد بن مقاتل الرازى انه يمين وبه اخذ جمهور مشائخنا اه.

**(ردالمحتار كتاب الايمان، مطلب فى القرآن جلد۳ صفحه ۷۱۲)**

## آيا دا خبره هم په قسم کي داخله ده چي يو څوک ووايي چي ستاسي د کور خوراک او اوبه پر ما حرام دي:

**پوښتنه**: که يو سړی ووايي چي ستاسي د کور خوراک او اوبه پر ما حرام دي وروسته مجبوره شي د دوی کور ته ولاړ شي او هلته ډوډۍ وخوري آيا دې ته قسم ويل کيږي او که نه، او که يې داسي کار وکړی آيا دغه سړی حانث کيږي او که نه؟

**جواب**: هو، وروره! يو چا ته دا خبره کول چي ستاسي د کور خوراک پر ما حرام دي دا قسم دی، نو اوس که چيري دغه سړی د هغه چا د کوره څخه چي ده دا خبره ورته کړې ده خوراک وکړي، نو دی په خپل دغه قسم کي حانث کيږي او د قسم کفاره ادا کول ورته په کار ده لکه درمختار چي ليکي حرم على نفسه شيئاً ثم فعله باكل او نفقة كفر ليمينه. **(درمختار كتاب الايمان مطلب فى تحريم الحلال جلد۳ صفحه ۷۲۹)**

## تر قسم کولو وروسته بې له کوم شرعي عذره قسم ماتول سخته ګناه ده

**پوښتنه**: که یو څوک د خلکو په مخکې قسم واخلي، مګر ددې سره سره بیا هم پر پخپله معاهده ونه دریږي، قسم مات کړي او وایي چې څه پروا لري، بیا به درې روژې ونیسم، آیا دا کار روا دی او آیا په درو روژونیولو سره دغه سړي غاړې خلاصیږي؟

**جواب**: وروره! قسم بې له کوم شرعي عذره ماتول سخته ګناه ده، څوک چې بلاوجه خپل قسم مات کړي دغه سړی د شریعت له رویه ګناه کاره دی که څه هم چې روژې ونیسي او که بې شرعي عذر درلودی او یا یې پر یو غلط کار قسم اخیستی ؤ، نو په دې صورت کې بیا دغه سړي ته په کار دي چې خپل قسم مات کړي او وروسته یې کفاره اداء کړي، فتاوی عالمګیري په دې هکله داسې لیکي: ونوع منها یجب اتمام البر فیها وهو ان یعقد علی فعل طاعة امر به او امتناع عن معصیة وذلک فرض، علیه قبل الیمین وبالیمین یزداد وکادةً. **(فتاوی عالمګیري جلد۲ صفحه۵۲)**

## که یو سړي وویل چې که ما د خپلې مایني سره نور ژوند تېر کړ، زه به ددې دنطفې څخه پیدا یم:

**پوښتنه**: زموږ په دوستانو کې یو سړی دی چې احمد نومیږي، یوه ورځ



دده د مور او دده د ښځې تر منځ سره جګړه شول. احمد چې کله کور ته راغی مور یې دده د ښځې شکایت ورته وکړ. په دې وخت کې احمد ته ډېر درد ورغی او د ښځې په غیر موجودګي کې یې وویل چې که ما ددې سره نور وخت تېر کړ. زه به ددې د نطفې څخه پیدا شوی یم. د داسې قسم شرعي څه حکم دی؟

**جواب**: ددې ډول قسم حکم دادی چې احمد د خپلې ښځې سره د ماینې او مېړه تعلقات ساتلای شي. مګر اخلاقًا دا ډول وینا کول ښه کار نه دی. فتاوی عالمګیري لیکي: ونوع لایجوز حفظهما وهو ان یحلف علی ترک طاعة او فعل معصیة. **(فتاوی عالمګیري جلد۲ صفحه ۵۲)**

احمد د خپلې مایني سره د پخوا په شان تعلقات ساتلای شي. مګر پرده لازمه ده چې د خپل قسم کفاره ورکړي. کفاره داده چې لسو مسکینانو ته به دوه وخته په ماړه نس ډوډۍ ورکوي یا به لسو مسکینانو ته یوه یوه جوړه کالي ورکوي او که یې ددې قدرت نه درلودی نو پرله پسې به درې ورځې روژې نیسي لکه فقهاء چې لیکي:

وکفارته تحریر رقبة او اطعام عشرة مساکین او کسوتهم بما یستر عامة البدن ....... و ان عجز عنها وقت الاداء صام ثلثة ایام ولاء.

**(تنویر الابصار مع ردالمحتار، مطلب کفارة الیمین جلد۳ صفحه ۷۲۵، ۷۲۶)**

## ايا په قرآن قسم اخيستل روا دي او ايا د حانث کېدلو په صورت کي کفاره پر لازميږي:

**پوښتنه**: که يو سړی په قرآن قسم واخلي آيا دا روا دي او په دې صورت کي څه ډول کفاره اداء کول واجب ده؟

**جواب**: وروره! اصل مذهب دادی چي حلف بالقرآن معتبر نه دی، لېکن متاخرينو فقهاوو په دې تاويل سره چي د قرآن څخه مراد کلام الله دی چي د خدای ﷻ صفت دی نو ځکه د متاخرينو فقهاوو په نزد حلف بالقرآن هم معتبر دی، او د دوی د قول مطابق د حانث کېدلو په صورت کي يې هغه ډول کفاره لازميږي لکه د اصل قسم د ماتېدو په صورت کي چي لازمېدل يعني د يوه مريي ازادول يا لسو مسکينانو ته دوه وخته تر مړېدو خوراک ورکول يا لسو مسکينانو ته پوښاک ورکول او که يې ددغو شيانو طاقت نه درلودی دري ورځي پرله پسې روژې نيول لکه فقهاء چي ليکي:

**و كفارته تحرير رقبة او اطعام عشرة مساكين او كسوتهم بما يستر عامة البدن .... و ان عجز عنها وقت الاداء صام ثلثة ايام ولاء.**

**(تنوير الابصار مع ردالمحتار، مطلب كفارة اليمين جلد۳ صفحه ۷۲۵، ۷۲۶)**

د متاخرينو فقهاوو دا قول په دې ډول دی:

درمختار ليکي: **قال الكمال ولا يخفى ان الحلف بالقرآن متعارف**



**فيكون يمينا. (درمختار)**

همدارنګه علامه شامي رحمه الله په ردالمحتار کي ليکي:

**(قوله قال الكمال رحمه الله الخ) مبنى على ان القرآن بمعنى كلام الله فيكون من صفاته تعالى كما يفيده كلام الهداية حيث قال ومن حلف بغير الله تعالى لم يكن حلفا كالنبى والكعبة لقوله عليه الصلوة والسلام من كان منكم حالفا فليحلف بالله او ليذرو كذا اذا حلف بالقرآن لانه غير متعارف اه فقوله وكذا يفيد انه ليس من قسم الحلف لغير الله تعالى بل هو من قسم الصفات ولذا علله بانه غير متعارف ولو كان من القسم الاول كما هو المتبادر من كلام المصنف والقدورى لكانت العلة فيه النهى المذكور اوغيره لان التعارف انما يعتبر فى الصفات المشتركة لا فى غيرها وقال فى الفتح وتعليل عدم كونه يمينا بأنه غيره تعالى لانه مخلوق لانه حروف وغير المخلوق هو الكلام النفسى منع بان القرآن كلام الله منزل غير مخلوق الخ وفى آخر هذه القول ونقل فى الهندية عن المضمرات وقد قيل هذا فى زمانهم اما فى زماننا فيمين وبه ناخذ ونامرو نعتقد وقال محمد بن مقاتل الرازى انه يمين وبه اخذ جمهور مشائخنا اه فهذا مؤيد لكونه تعورف الحلف بها كعزة الله وجلاله.**

**(ردالمحتار جلد۳ صفحه ۵۶)**

## د يو مشروع او روا كار د

## كولولپاره د قسم كولو حكم:

**پوښتنه**: په يو اسلامي انجمن كي د ډېرو خلكو د نيكو كارونو د كولو لپاره برخه اخيستل، خو يوه سړي ددې لپاره چي ترخپل منځ بدگماني وركه كړي، دا نظر يې وركړ چي د انجمن كار كوونكي بايد په ښه اخلاص د كار كولو لپاره قسم واخلي، آيا ددغه سړي خبره صحيح ده همداسي بايد وشي او كه نه؟

**جواب**: وروره! د يو مشروع او روا كار د كولو لپاره معاهده يا قسم اخيستل يعني لوړه كول ناروا خونه دي، مگر ښه دادى چي دا راز قسم ونه كړل شي، دا ځكه چي يو كار كه چيري ضروري وي نو بيا خو صرف د شريعت حكم ددې كار د عملي كولو لپاره كافي دى او كه چيري مسنون يا مستحب وي نو په دې صورت كي خو بيا د معاهدې يا حلف (قسم) په وجه سره پر سړي يو ډول پابندي او سختي عائد كيږي او د خلاف وعدې په صورت كي قسم ماتېدل لازميږي. (كفايت المفتى جلد٢ صفحه ٢٤٢)

همدارنگه فتاوى عالمگيري ليكي: اليمين بالله تعالى لاتكره ولكن تقليله اولى من تكفيره. (فتاوى عالمگيري جلد٢ صفحه ٥٢)



## د خداى جل جلاله په نامه قسم اخيستل

## او بيا بيرته قسم ماتول كفاره واجبوي:

**پوښتنه**: زموږ په سيمه كي يو سړى دى، دغه سړى دا عادت لري چي پر هره خبره قسم اخلي، آيا دغه كار تر كومي اندازې روا دى او بله پوښتنه داده چي ډېر خلك په قرآن او نبي ﷺ قسم اخلي آيا دا ډول قسم اخيستل روا دى او كه نه؟

**جواب**: ډېر قسمونه اخيستل په هيڅ صورت ښه نه دي لكه عالمگيري چي ليكي: اليمين بالله تعالى لاتكره ولكن تقليله اولى من تكفيره، مگر كوم څوك چي زيات قسمونه اخلي، د هغوى دا عادت وي چي د قسم ماتېدل هم هيڅ زور نه ورته غواړي او بې تكليفه قسمونه ماتوي، نو چا چي قسم واخيستى او بيا يې مات كړ ددغه سړي پر ذمه د شريعت له نظره كفاره وركول واجب ده او د قسم كفاره داده چي لسو مسكينانو ته به دوه وخته تر مړېدو پوري ډوډۍ وركوي، يا به لسو خلكو ته يوه يوه جوړه كالي وركوي او كه يې ددې دواړو طاقت نه درلود، نو درې روژې به نيسي لكه فقهاوو چي ليكلي دي: وكفارته تحرير رقبة او اطعام عشرة مساكين او كسوتهم بما يستر عامة البدن...... وان عجز عنها وقت الاداء صام ثلثة ايام ولاء.

(تنوير الابصار مع ردالمحتار جلد٣ صفحه ٧٢٥، ٧٢٦)

او كوم څوك چي بې له الله ﷻ په بل شي قسم اخلي لكه قرآن. رسول. كعبه

او داسي نور دا ډول قسمونه اخيستل په شريعت كي ناروا او حرام دي

**(كفايت المفتى جلد۲ صفحه ۲۴۲)**

همدارنګه ردالمحتار ليكي:

**لايقسم بغير الله تعالى كالنبى والقرآن والكعبة (تنوير وشرحه) قال المحقق فى الشاميه (قوله لايقسم بغير الله تعالى) بل يحرم كما فى القهستانى. (ردالمحتار قبيل مطلب فى القرآن جلد۳ صفحه ۷۱۲)**

## د داډول قسم حكم چي يو سړى ووايي كه ما د فلاني په كور كي ډوډۍ وخوړل د نبى ﷺ شفاعت دي زما نصيب نه وي:

**پوښتنه**: يوه ورځ مختاراحمد قسم وخوړى چي زه به د خپل اكا د زوى نثاراحمد په كور كي! هيڅكله ډوډۍ نه خورم، ځكه چي دى په انډيوالى، قرابت او دوستى نه پوهيږي كه مي چيري ډوډۍ وخوړل د نبى شفاعت دي زما نصيب نه وي، يوه مياشت وروسته مختاراحمد راولاړ شو د نثاراحمد كور ته ورغى او هلته يې ډوډۍ وخوړل، نو اوس د مختاراحمد په هكله د شريعت څه حكم دى؟

**جواب**: وروره! د داسي قسم ماتول چي شرعًا يې ماتول مطلوب وي روا دي او د هغه كفاره اداء كول ورته په كار ده، د نثاراحمد په كور كي د ډوډۍ



نه خوړلو قسم كه چيري مختاراحمد د يو معقول دليل په وجه نه وي اخيستى، ماتول يې بهتر دي، ځكه چي بې له شرعي دليله د دوستانو سره د تعلق پريكول روا نه دي لكه فتاوى عالمګيري چي ليكي: نوع يتخير فيه بين البر والحنث، والحنث خير من البر فيندب فيه الحنث.

**(فتاوى عالمگيرى جلد۲ صفحه ۵۲)**

او ددې كفاره داده چي لسو مسكينانو ته به دوه وخته په ماړه نس ډوډۍ وركوي يا به لسو مسكينانو ته يوه يوه جوړه كالي وركوي او كه يې ددې قدرت نه درلود، نو پرله پسې به درې ورځي روژې نيسي لكه فقهاء چي ليكي: وكفارته تحرير رقبة او اطعام عشرة مساكين او كسوتهم بما يستر عامة البدن .... وان عجزعنها وقت الاداء صام ثلثة ايام ولاء.

**(تنويرالابصارمع ردالمحتارمطلب كفارة اليمين جلد۳ صفحه ۷۲۵، ۷۲۶)**

## په هغه صورت كي د روژو په نيولو كفاره نه اداء كيږي كه يې ددې طاقت درلود چي لسو مسكينانو ته ډوډۍ وركړي او يا لسو مسكينانو ته يوه يوه جوړه كالي وركړي:

**پوښتنه**: بلال احمد د خپلې ماينې سره خوابدى شو. نو يې قسم واخيست چي زه به تر يوې مياشتي پوري ددې سره خبري نه كوم. مګر دا يې

په یاد نه وه چي د خدای په نامه مي قسم اخیستی دی او که په بل شي، نو یوه هفته لا نه وه تېره شوې چي بیا د بلال احمد زړه نرم او نری شو، خبري یې ورسره وکړې، نو دده د قسم څه حکم دی آیا بلال احمد حانث شو او که نه، که حانث شوی دی آیا کولای شي چي درې ورځي پرله پسې روژې ونیسي، سره ددې چي بلال احمد دا طاقت لري چي لسو مسکینانو ته ډوډۍ او یا کالي ورکړي؟

**جواب**: که چیري بلال احمد د خدای تعالی په ذات یا صفاتو قسم اخیستی وي او بیا یې ددې مخالفت کړی وي کفاره اداء کول پر واجب ده، مګر که د خدای ﷻ د ذات او صفاتو څخه ماسېوا یې په بل شي قسم اخیستی وُ، کفاره نه پر واجبیږي لکه خلاصة الفتاوی چي لیکي:

**والحاصل ان الیمین ما یکون باسم من اسماء الله او بالصفات ماکان متعارفا.** (**خلاصة الفتاوی جلد۲ صفحه ۱۲۵**)

او د قسم کفاره لکه مخکي چي بیان شول داده چي یا لسو مسکینانو ته تر مړېدو پوري دوه وخته ډوډۍ ورکړي او یا لسو مسکینانو ته یوه یوه جوړه کالي ورکړي او که یې دا یو لا نه شوای کولای، نو درې ورځي په مسلسله روژې نیسي، مګر که یو سړي د لسو مسکینانو د ډوډۍ ورکولو او یا کالو ورکولو قدرت درلودی، مګر بیا یې هم درې ورځي مسلسله روژې ونیولې په دې سره یې کفاره نه اداء کیږي، ځکه چي د روژو نیول هغه وخت صحیح کیږي چي لسو مسکینانو ته د ډوډۍ ورکولو او یا کالو ورکولو طاقت ونه لري لکه



فقهاء چي لیکي: **وکفارته تحریر رقبة او اطعام عشرة مساکین او کسوتهم بما یستر عامة البدن...... وان عجز عنها وقت الاداء صام ثلثة ایام ولاء.** (**تنویر الابصار مع ردالمحتار جلد۳ صفحه ۷۲۵، ۷۲۶**)

## وکیل احمد قسم واخیستی چي زه د آینده لپاره فلاني مسجد ته نه ورځم:

**پوښتنه**: وکیل احمد زموږ په مسجد کي د یو سړي سره خوابدی شو، نو یې دا قسم وکړ چي د آینده لپاره بیا دې مسجد ته نه راځم، هغه لیري مسجد ته ځم، مګر د مسجد خلک چي دده په پرېکړه خبر شول، نو وکور ته یې ورغلل او ورته ویې ویل چي دا ښه کار نه دی چي خپل نژدې مسجد دې پرېښوی، بل لیري مسجد ته ځې، داسي مه کوه، بیرته خپل مسجد ته راځه. مطلب دادی چي وکیل احمد یې اخیر دې ته مجبوره کړ چي خپل قسم مات کړي او بیرته خپل نژدې مسجد ته ځي، نو آیا په دې صورت کي د کلي خلک حانث شول او که خپله وکیل احمد حانث شو، ځکه چي د کلي خلکو دی ودې ته مجبور کړ چي بیرته خپل زاړه مسجد ته ورشي؟

**جواب**: وروره! د قسم کفاره صرف پر وکیل احمد لازمه ده چي باید دی د خپل قسم کفاره اداء کړي، د کلي پر خلکو چي دی یې خوشحاله کړي دی او بیرته یې خپل نژدې مسجد ته په راتګ سره هڅولی دی، ښه کار یې کړی دی، پر هغوی د هیڅ شي کفاره نه ده واجب لکه فقهاء چي

ليکي: ومن فعل المحلوف عليه مکرهًا او ناسيًا فهو سواء.

(هداية، کتاب الايمان جلد۲ صفحه ۴۷۹)

وفی العالمگيريه، فتصح من المکره وکذا الجدو العمد فتصح من الخاطئ والهازل.

## يو سړي د قاضي په مخکي پر قرآن لاس کښېښاوه مګر بيا يې هم دروغ وويل:

**پوښتنه**: محمد ګل د شاهدۍ ورکولو لپاره قاضي راوغوښت او وده ته يې قرآن کښېښاوه، ورته ويې ويل چې پر دې لاس کښېږده او دا قسم وکړه چې زه څه وايم ټول رشتيا وايم، ده هم همداسي وکړل، وروسته قاضي دده څخه پوښتني شروع کړې، مګر ددې سره سره چې محمد ګل پر قرآن شريف مخکي لاس کښېښاوه بيايي هم دروغ وويل: محمد ګل يو وار بيا قسم واخيست چې زما دې په خدای ﷻ قسم وي چې دا فلانی کار داسي ؤ، يا فلانی هم ورسره ؤ، يا بل څه يا بل څه، مطلب دادی چې د حقيقت خلاف خبري يې وکړې او غلطه شاهدي يې ورکړل، نو آيا دې ته منعقده قسم ويل کيږي او که يمين غموس؟

**جواب**: وروره! قسم پر درې ډوله دی:

۱- يمين لغوه ۲- يمين منعقده ۳- يمين غموس.



د يمين لغوه مثال دادی چې يو سړی د يو چا څخه غوښتنه وکړي چې سلګون نوټ ميده يعني دوه پنځوسيان راکړه. هغه سړی ورته ووايي چې قسم په خدای که ميده راسره شته. دده هيري وي. وروسته چې وګوري ډېري ميده روپۍ يې په جيب کي وي، يعني په هېره سره پر يو شي قسم واخلي دې ته يمين لغوه ويل کيږي، د شريعت له نظره په دغه سړي هيڅ شی نه لازميږي.

دوهم ډول قسم يمين منعقده دی دا بيا هغه ډول قسم دی چې په اينده کي د يو کار پر کولو يا نه کولو قسم واخلي ددې ډول قسم حکم دادی چې د حانث والي په صورت کي د قسم د ماتېدو کفاره پر لازميږي لکه فتاوی عالمګيري چې ليکي: ومنعقدة وهو ان يحلف علی امر فی المستقبل ان يفعله او لايفعله، وحکمها لزوم الکفارة عند الحنث.

(فتاوی عالمګيري، جلد۲ صفحه ۵۲)

دريم ډول چې تر ټولو بد قسم دی غموس نوميږي. دا هغه قسم دی چې يو څوک په قصده پر دروغو قسم واخلي چې په ماضي يعني تېره زمانه کي ما فلانی کار کړی دی او يا فلانی کار مي نه دی کړی او يا فلانی کار داسي ؤ يا داسي، مطلب په ماضي زمانه کي ياپه حال کي په قصده پر دروغو قسم واخلي، دې ته يمين غموس ويل کيږي غموس په عربي ژبه کي د غوټه کېدو په معنی دی. يعني دا ډول قسم اخيستل د سړي ودوږخ ته د غوټه کېدو ذريعه جوړيږي.

دا داسي بد قسم دی چې کفاره نه لري يعني د مسکينانو په مړېدلو او د روژو په نيولو سره دغه سړی نه شي خلاصېدای. بلکي پر هغه چا چې دا ډول

قسم يې اخيستى وي لازمه ده چې په اخلاص سره رښتينې توبه وکاږي چې د
اينده لپاره به هيڅکله داسي کار نه کوم او پر تېر د ډېره پښېماني ښکاره کړي
الله ﷻ ډېر مهربانه دى اميد دى چې دغه سړي ته بخښنه وکړي او توبه يې
قبوله کړي لکه فتاوى عالمګيري چې ليکي: غموس: وهو الحلف على
اثبات شئ او نفيه فى الماضى والحال يتعمد الكذب فيه فهذه اليمين
ياثم فيها صاحبها، وعليه الاستغفار والتوبة دون الكفارة.

**(فتاوى عالمګيري، جلد۲ صفحه ۵۲)**

همدارنګه د يمين غموس بدوالى جناب ﷺ په دغو مبارکو الفاظو سره بيان
کړى دى قال النبى ﷺ الكبائر: الاشراک بالله، وعقوق الوالدين، وقتل
النفس، واليمين الغموس. **(رواه البخاري فى کتاب الايمان)**

همدارنګه کتاب الهداية د دوهم جلد په کتاب الايمان کي داسي ليکي:
قال الايمان على ثلثة اضرب اليمين الغموس ويمين منعقدة ويمين لغوٌ
فالغموس هوالحلف على امرٍ ماضٍ يتعمد الكذب فيه فهذه اليمين ياثم
فيها صاحبها لقوله عليه السلام من حلف كاذبا ادخله الله النار ولاكفارة فيها
الا التوبة والاستغفار والمنعقدة ما يحلف على امر فى المستقبل ان يفعله
اولا يفعله واذاحنث فى ذلک لزمته الكفارة لقوله تعالى لايواخذكم الله
باللغو فى ايمانكم ولكن يواخذكم بماعقّدتم الايمان وهو ماذكرنا ويمين



اللغوان يحلف على امرٍ ماضٍ وهو يظن انه كما قال والامر بخلافه فهذه
اليمين نرجوان لايواخذالله بها صاحبها ومن اللغوان يقول والله انه لزيد
وهو يظنه زيد او انما هو عمروٌ والاصل فيه قوله تعالى لايواخذكم الله
باللغو فى ايمانكم ولكن يواخذكم الاية الا انه علّقه بالرجاء للاختلاف
فى تفسيره.

محمدګل خو دوې ډېرې غټې ګناوې کړې دي يو خو دا چې د درواغو
شاهدي يې اداء کړل چې ډېره غټه ګناه ده او بل دا چې پر تېره زمانه يې د
درواغو قسم واخيستى چې دا هم ډېره غټه ګناه ده، نو ده ته په کار دي چې د
همدا اوس څخه ښه په اخلاص توبه وکاږي او د خداى ﷻ څخه بخښنه
وغواړي، او بيا داسي کار ونه کړي، اميد دى چې الله ﷻ يې وبخښي.

## نوراحمد وويل چې اوس به پر درواغو قسم واخلم بيا به درې روژې ونيسم:

**پوښتنه**: نوراحمد يو کار کړى ؤ، مګر اوس پر منکره ؤ، ويل يې چې
ما نه دى کړى، مدعى يې ورته وويل چې قسم راته واخله چې ما دا کار نه دى
کړى، نوراحمد فکر وکړى چې دا خو دومره ګرانه خبره نه ده اوس به پر
درواغو قسم واخلم بيا به بيرته درې روژې ونيسم، نو همداسي يې هم وکړل
پر درواغو يې قسم واخيست، بيا يې درې روژې ونيولې؟

**جواب**: وروره! نوراحمد چي سل روژي هم ونيسي کفاره يې نه اداء کيږي، ځکه چي ده يمين غموس اخيستی دی يعني پر تېره زمانه يې د دروغو قسم اخيستی دی، مخکي تاسي ته د يمين غموس تعريف تېر شو چي دا هغه قسم دی چي پر حال يا پر تېره زمانه پر دروغو قسم واخلي دا داسي بد قسم دی چي په هرڅومره روژو او د مسکينانو په مړېدلو سره يې کفاره نه اداء کيږي، دې ډول قسم ته د غوټه کېدو نوم ورکړل شوی دی يعني دوږخ ته د ورداخلېدو قسم.

پر نوراحمد لازمه ده چي پر تېر ډېر پښېمانه شي او د آينده لپاره د داسي کار څخه ښه په اخلاص توبه وکاږي، امید دی چي الله ﷻ يې توبه قبوله کړي او مغفرت يې نصيب شي لکه فتاوی عالمګيري چي ليکي: غموس: وهو الحلف على اثبات شئ او نفيه فى الماضى والحال يتعمد الكذب فيه فهذه اليمين ياثم فيها صاحبها، وعليه الاستغفار والتوبة دون الكفارة.

**(فتاوى عالمګيري، جلد۲ صفحه ۵۲)**

## پر يوه کار د څو قسمونو په اخيستلو سره صرف يوه کفاره اداء کول کافي ده:

**پوښتنه**: يوه سړي د يوه کار په هکله څو قسمونه واخيستل، مګر هغه کار يې ونه کړ يعني قسم يې مات کړ، نواوس به دغه سړی څو کفارې اداء



کوي؟

**جواب**: وروره! پر يوه کار که هر څومره قسمونه واخلي او بيا قسم مات کړي يوه کفاره اداء کول کافي ده: وفى البغية كفارات الايمان اذا كثرت تداخلت ويخرج بالكفارة الواحدة عن عهدة الجميع.

**(ردالمحتار جلد۳ صفحه ۷۱۴)**

او کفاره يې هم داده چي يو مريي به ازاد وي يا به لسو مسکينانو ته تر مړېدو دوه وخته ډوډۍ ورکوي او يا به لسو مسکينانو ته يوه يوه جوړه کالي ورکوي، که يې چيري دا په وسه نه وه پوره، نو درې ورځي به مسلسله روژې نيسي: كفارة اليمين عتق رقبة يجزئ فيها ما يجزئ فى الظهار وان شاء كسا عشرة مساكين كل واحد ثوبًا فما زاد وادناه مايجوز فيه الصلوة وان شاء اطعم عشرة مساكين كالاطعام فى كفارة الظهار فان لم يقدر على احد الاشياء الثلثة صام ثلثة ايام متتابعات.

**(هدايه فصل فى الكفارة جلد۲ صفحه ۴۸۱)**

## پر لاري يو شی پيدا کول که هر څومره کم قيمت شی وي بيا هم ومالک ته يې ورکول ضروري دي:

**پوښتنه**: که چيري يو سړي يو شی پيدا کړي بايد څه په وکړي، يوه ورځ يو سړي يوه روپۍ پر لاري پيدا کړل، بيا يې د يو مولوي څخه پوښتنه

وکړل چې آیا دا ماته حلاله ده او که نه، مولوي صاحب ورته وویل چې لږ شی پروا نه لري که ډېر شی وي، مالک ته یې ورکول ضروري دي آیا د دغه مولوي صاحب خبره صحیح ده او که نه؟

**جواب**: وروره! دغه مولوي صاحب چې څه ویلي دي غلط یې ویلي دي، هر څومره کم قیمت شی که پیدا کړل شي باید ومالک ته یې بېرته وروسپارل شي که هم چې یوه روپۍ به وي

که یو څوک یو شی پیدا کړي باید مالک یې تلاښ کړل شي، که یې مالک پیدا شو، باید مالک ته یې وروسپاري. مګر هو د کم قیمته شي مالک تر ډېرو ورځو پورې تلاښول ضروري نه دي او که مالک یې پیدا نه شو نو ودې ګوري که چیرې پیدا کوونکی پخپله غریب ؤ، نو پخپله یې مصرفولای شي او که غریب نه ؤ یو مسکین ته دې ورکړي لکه فقهاء چې وایي:

ویکفیه ان یقول من سمعتموه ینشد لقطةً فدلّوه عليّ، وعرف ای نادی علیها حیث وجدها وفی المجامع (کالمساجد والاسواق وغیرهما) الی ان علم ان صاحبها لایطلبها....... فینتفع الرافع بهالو فقیراً والاتصدق بها.(**الدرالمختار کتاب اللقطه جلد اول صفحه ۳۶۵**)

## زموږ په دوکان کې د یو خریدار یو غوټه پاته شول اوس په دې موږ څه وکړو:

**پوښتنه**: زموږ دوکان ته اکثره د سحرا خلک راځي کله کله چې دوی



راشي سودا وکړي چې بېرته ځي یو شی یې هېر شوی وي یعني یو غوټه موته ځني پاته شي. دوی چې ولاړ شي زموږ ورته فکر شي چې اوهو! د فلاني سړي څخه خو دغه غوټه پاته شوې ده. وروسته موږ حیران یو چې په دغه شي څه وکړو. اوس د دې لپاره موږ ته یو شرعي لاره راوښیاست؟

**جواب**: وروره! هغه شی چې ستاسې په دوکان کې د یو سړي څخه په هېره سره پاته شي. نو که یې مالک معلوم وي. باید خبر ورکول شي چې ستا فلانی شی زموږ په دوکان کې هېر شوی دی. راشه وایې خله. او که یې مالک معلوم نه وي. نو تر دومره ورځو پورې به یې محفوظوئ چې د مالک د بېرته راتللو او د خپل شي د وړلو یې غالب ګمان کیږي. که چیرې په دغو ورځو کې یې مالک راغی خو هغه ته یې وروسپارئ او که رانه غلی. نو بیا یې په دې نیت سره خیرات کړئ چې ثواب یې مالک ته ورسیږي لکه فقهاء چې لیکي

ویکفیه ان یقول من سمعتموه ینشد لقطةً فدلّوه عليّ. وعرف ای نادی علیها حیث وجدها وفی المجامع (کالمساجد والاسواق وغیرهما) الی ان علم ان صاحبها لایطلبها....... فینتفع الرافع بهالو فقیراً والاتصدق بها.(**الدرالمختار کتاب اللقطه جلد اول صفحه ۳۶۵**)

که تر خیراتولو وروسته یې مالک راغی او هغه خپل شی طلب کړئ. نو په دې صورت کې به ته د هغه شي قیمت ومالک ته ورکوې یعني ته هغه ته نه شې ویلای چې هغه شی خو ما خیرات کړ. په دې هکله فقهاء داسې لیکي

فان جاء مالکها بعد التصدق خیر بین اجازة فعله وبعد هلاکها وله

ثوابها اوتضمينه والظاهرانه ليس للوصى والاب اجازتها. (الدرالمختار، كتاب اللقطة جلد اول صفحه ۳۶۵)

## يوه سړي د سرو زرو يو شی پيدا کړ، بيا يې اعلان وکړ، مګر مالک يې پيدا نه شو، نو اوس به دغه سړی دغه د سرو زرو شی څه په کوي:

**پوښتنه**: يوه ورځ زما يو نابالغه زوی په ټوکره کي پيچلی د سروزرو يو شی په عمومي لاره کي پيدا کړ، موږ ددغه شي په مالک پسي ډېر وګرځېدو چي ګوندي پيدا يې کړو. مګر تر اوسه نه يو توانېدلی چي ددغه شي د مالک درک معلوم کړو، نو اوس موږ ته يو شرعي لاره راوښيه چي په دغه شي څه وکړو؟

**جواب**: تر دومره وخته پوري ددغه شي د مالک په طلب پسي شئ تر څو چي ددغه شي د مالک د راتللو غالب ګمان کيږي. که بيا هم ددغه شي مالک پيدا نه شو. نو که چيري ددغه شي پيدا کوونکی پخپله غريب ؤ، نو خپله يې اخيستلای شي او که غني ؤ، نو پر مسکينانو دې وويشي او په دواړو صورتونو کي دي ددغه شي علامې په ياد ولري او يا دې پر يو کاغذه وليکي ددې لپاره که چيري وروسته ددغه شي مالک پيدا شو. نو هغه علامې دي ځيني وپوښتي که چيري دده باور راغی چي واقعي دا شی دده ؤ، نو دې ددغه شي قيمت ورکړئ. که يې پخپله اخيستی وي او که يې خيرات کړی وي. په



دواړو صورتونو کي دي د شي قيمت ورکوي. په دې هکله فقهاء داسي ليکي

فان جاء مالكها بعد التصدق خير بين اجـازة فعلـه وبعـد هـلاكها ولـه ثوابها اوتضمينه الخ.

(الدرالمختار مع ردالمحتار، كتاب اللقطة جلد ۱ صفحه ۲۶۵)

## په اسلام کي د ټولو نشيي شيانو پر خلاف د جهاد اعلان:

د نشې شيان استعمالول تقريباً د نړی په ډېرو اديانو کي بد ګڼل شوي دي. مګر اسلام هغه يوازينی مذهب دی چي د شک او تذبذب ټول اړخونه يې بيخي له منځه وړي دي او په دې خصوص کي يې بيخي په آخيري اندازه يوه قطعي فيصله نافذه کړې ده او پر ټولو هغو خلکو يې چي د نشې شيان استعمالوي د لوی خدای ﷻ لعنت ويلی دی. نه يوازي پر هغو خلکو يې لعنت ويلی دی چي دغه شيان استعالوي. بلکي ددغو شيانو پر خرڅوونکو. رانيوونکو. تجارت کوونکو. جوړوونکو که د خپل ځان لپاره يې جوړوي او که يې د نورو لپاره جوړوي او ددغو نشيي شيانو پر وړونکو او همدارنګه پر هغه چا چي دده لپاره وړل کيږي پر ټولو لعنت ويلی دی

که سړی دغه مسئله تر څېړني لاندي ونيسي نو په ډېره ښه توګه به ورته جوته شي چي د اسلام سپيڅلي دين په دې هکله څومره سخت قانون وضع کړی دی پر دغو ټولو خلکو يې چي پورته ذکر شول د خدای ﷻ لعنت ويلی دی او ددغو خلکو سره يې په آخيري اندازه کرکه او نفرت ښکاره کړی دی. اسلام د نشيي

شیانو د حراموالي اعلان په داسي جامعیت سره کړی دی چي هیڅوک د دغو شیانو د استعمال په هکله بیخي هیڅ تصور هم نه شي کولای

د جناب محمد رسول الله ﷺ د کلام بلاغت ته وګورئ، دی مبارک لومړی ټوله نشیي شیان تر یوه نامه او یوې قاعدې لاندي راولي او بیا د حراموالي حکم باندي کوي:

**کل مسکر خمرٌ وکل مسکر حرام.**

**(ابوداؤد کتاب الاشربه وصحیح مسلم واحمد وترمذی ونسائی)**

**ترجمه**: د هر نشه راوستونکي شي (نوم) شراب دی او هر نشه راوستونکی شی حرام دی.

ومو لیدل چي جناب محمد رسول الله ﷺ ټوله نشه راوستونکي شیان په یوه نامه ونومول یعني هر نشه راوستونکی شی که هغه چرس وي او که هیرویین. تریاک وي او که شراب، مخکي راوتلي وي او که تر دې وروسته راوزي ټول شراب وبلل یعني په اسلام کي د ټولو حکم د شرابو دی، ټوله حرام دي

ښه نو دا چي د اسلام له نظره ټول نشیي شیان شراب ونومول شول یعني د ټولو نوم شراب کښېښودل شو، نو اوس دې خبري ته راشئ چي جناب محمد رسول الله ﷺ د شرابو د حراموالي حکم په کومو سختو الفاظو سره کوي

**قال رسول الله ﷺ لعن الله الخمر وشاربها وساقیها وبائعها ومبتاعها وعاصرها ومعتصرها وحاملها والمحمولة الیه.**

**(ابوداؤد کتاب الاشربة صفحه ۵۱۷)**



**ترجمه**: جناب رسول الله ﷺ فرمایلي دي چي خدای ﷻ پر خمرو (یعني ټولو نشیي شیانو) لعنت وایي او هم پر هغه چا لعنت وایي چي خمر (یعني نشیي شیان) استعمالوي او هم پر هغه چا لعنت وایي چي خمر (یعني نشیي شیان) خرڅوي او هم پر هغه چا لعنت وایي چي خمر (یعني نشیي شیان) رانیسي او هم پر هغه چا لعنت وایي چي خمر (یعني نشیي شیان) د خپل ځان لپاره جوړوي او پر هغه چا لعنت وایي چي خمر (یعني نشیي شیان) د بل لپاره جوړوي او هم پرهغه چا لعنت وایي چي خمر (یعني نشیي شیان) د یوه ځایه څخه بل ځای ته وړي او هم پر هغه چا لعنت وایي چي خمر (یعني نشیي شیان) ده ده لپاره وړل کیږي.

دا خبره اړینه ګڼم چي ووایم: په قرآن شریف کي چي د شرابو د حرمت په هکله کوم آیت نازل شوی دی په هغه کي د خمر لفظ استعمال شوی دی له دې کبله د خمر د حقیقت تعین یعني د خمر د حقیقت معلومول ډېر ضروري کار دی. ځکه چي د یو مهذب قانون تر ټولو مهمه او ستره وظیفه دا ده د کومو شیانو څخه چي دی خلک منع کوي، تر هر څه مخکي باید د هغه کار منطقي حقیقت (definition) یعني د هغه کار ښه تشریح خلکو ته وروښیي دا چي په عربو کي به شراب د مختلفو شیانو څخه جوړېدل او په مختلفو نومونو به یادېدل او د هغو شیانو اثر هم د یو بل سره فرق درلود او د اسلام قانون دا تقاضا درلوده چي هر ډول نشیي شی باید بند کړل شي، هغه که په هر ترتیب جوړ شوی وي او که د هر شي څخه جوړ شوی وي او هر نوم چي ولري فرق نه کوي، ټول باید بند کړل شي، نو له دې وجي ددې قانون په تشریح او ښه وضاحت

کي د انسانيت د مکتب ستر حاکم جناب محمد رسول الله ﷺ داسي وفرمايل

انَّ من العنب خمرا وانَّ من التمر خمرا وانَّ من العسل خمرا وانَّ من البر خمرا وانَّ من الشعير خمرا. (**ابوداؤد کتاب الاشربة صفحه ۵۱۷**)

**ترجمه**: د انګورو څخه هم شراب جوړيږي او د خورما څخه هم او د عسلو څخه هم او د غنمو څخه هم او د وربشو څخه هم

همدارنګه د ابوداؤد بل حديث دی چې فرمايي

قال سمعت (رسول الله ﷺ) يقول ان الخمر من العصير والزبيب والتمر والحنطة والشعير والذرة وانی انهاکم عن کل مسکر.

(**ابوداؤد کتاب الاشربة صفحه ۵۱۸**)

د انګورو. خورماوو. غنمو. وربشو. جوارو او د هر شي د نښتيږلو څخه شراب جوړيږي او زه تاسي د هر نشه راوستونکي شي څخه منع کوم (يعني د هر شي څخه چي نشيي مواد جوړ شي. هغه ټول شراب بلل کيږي او ټول منع او يو ډول حرام دي)

ومو ليدل چي جناب محمد رسول الله ﷺ دا خبره ښکاره کړل چي د ډېرو شيانو څخه شراب يعني نشيي مواد جوړيږي. خو د هر شي څخه چي نشيي مواد جوړ شي هغه حرام دي. ځکه چي جناب محمد رسول الله ﷺ په ډېره واضحه توګه سره خلک پوه کړل چي

انی انهاکم عن کل مسکر. (**ابوداؤد کتاب الاشربة صفحه ۵۱۸**)



يعني زه تاسي د هر راز نشه راوستونکي شي څخه منع کوم، هغه که په هر نامه سره وي او که په هر ترتيب جوړ شوی وي او که د هر شي څخه جوړ شوی وي فرق نه کوي، ټول حرام او منع دي.

د عربو په مختلفو سيمو کي به د انګورو، خورماؤ، غنمو، وربشو او جوارو څخه شراب جوړېدل، نو جناب رسول الله ﷺ په پورتني مبارک حديث کي ټوله شيان هر يو جلا جلا ذکر کړل. ددې لپاره چي د شرابو يو قسم لا هم د قانون څخه دباندي ونه وزي او خلک ددې څخه بده استفاده ونه کړي.

خو دا چي لوی خدای ﷻ د اسلام سپېڅلی دين د يو عالم ګير او نړيوال دين په حيث رالېږلی ؤ، نو دې خبري امکان درلود چي د نړۍ په نورو برخو او يا هم د زمانې په تېرېدلو سره دي نشيي شيان د نورو شيانو څخه هم جوړ شي يعني په نوې بڼه او نوو نومونو دي راووزي او ځيني خلک دي دا وګڼي چي دغه شيان په پورتني حديث يعني په قانون کي شامل نه دي. نو له دې کبله جناب محمد رسول الله ﷺ د نشيي شيانو يو دا راز جامع او کلي تعريف وکړ چي هر قسم نشه راوستونکي شيان پکښي داخل شول داسي يې وفرمايل:

کل مسکر خمرٌ وکل مسکر حرامٌ.

(**ابوداؤد کتاب الاشربه صفحه ۵۱۸**)

**ترجمه**: هر نشه راوستونکی شی شراب دی او هر نشه راوستونکی شی حرام دی.

همدرانکه: د ابوداؤد يو حديث دی:

قال کل مخمر خمر وکل مسکر حرام ومن شرب مسکرا بخست

(اى نقصت) صلا ته اربعين صباحا. (**ابواؤد صفحه ۵۱۸**)

**ترجمه**: جناب رسول الله ﷺ فرمايلي دي: چي هر نشه راوستونكى شى شراب بلل كيږي او هر نشه راوستونكى شى حرام دى او چا چي يو نشه راوستونكى شى استعمال كړ، تر څلوېښتو ورځو پوري يې لمونځ ناقص دى.

د ابوداؤد محشي ليكي چي په بعضي رواياتو كي **لم تقبل له صلوة اى لم يكن له ثواب وان برئ الذمه وسقط القضاء باداء اركانه مع شرائطه** الفاظ راغلي دي (**حاشيه ابوداؤد صفحه ۵۱۸**)

يعني په بعضي روايتونو كي راغلي دي چي څلوېښت ورځي يې لمونځ نه قبليږي، يعني د لمانځه ثواب يې له منځه ځي. كه څه هم چي دده له ذمې څخه د لمانځه اداء ساقطيږي او بيا قضاء نه پر لازميږي. كه چيري د خپل شرائطو او اركانو سره سم اداء كړل شي

قوله اربعين صباح ان المراد صلوة الصبح وهى افضل الصلوات ويحتمل ان يراد به اليوم اى صلوة اربعين يوما.

(**حاشيه ابوداؤد صفحه ۵۱۸**)

يعني دا قول چي "اربعين صباحا" له دي څخه مراد د سهار لمونځ دى ځكه چي دا تر ټولو افضله لمونځ دى او دا احتمال هم لري چي د "صباحا" څخه دي مراد ورځ وي، يعني د څلوېښتو ورځو د لمونځونو ثواب يې له منځه ځي



ليكن په دې صورت كي هم د حيله ګرو خلكو لپاره د حيلي وجوړولو ته لږ موقع لا په لاس ورتله چي هغه هم جناب رسول الله ﷺ په پوره توګه له منځه يووړل. په دې معنى چي د شرابو د حراموالي اصلي سبب چي له دي تعريف څخه يې استنباط كېده هغه نشه وه. ليكن دې خبري امكان درلود چي حيله ګر خلك دي لږ اندازه نشيي مواد استعمال كړي او ودي وايي چي دومره لږ اندازه خو حرام نه دي. ځكه چي لږ اندازه نشيي شيان استعمالول نشه نه راولي. مګر د انسانيت ستر رهبر جناب محمد رسول الله ﷺ دغه بهانه او حيله هم پر ودرول او داسي يې وفرمايل

قال رسول الله ﷺ ما اسكر كثيره فقليله حرام.

(**ابوداؤد كتاب الاشربة ۵۱۸**)

كه تاسي فكر كړى وي ځيني دا راز شيان هم شته چي نشه نه راولي. مګر سره ددې هم په اعصابو كي د "خدر" يعني بې حسى كيفيت پيدا كوي چي دا حالت د نشې ابتدايي مقدمه ده لكه بنګ او داسي نور ډېر شيان چي د تمدن په دې زمانه كي اكثره حيله پلټونكي (حيله جو) خلك دغه ډول مفرحات استعمالوي. له دې كبله حضرت محمد ﷺ دا شيان هم د اسلام په پاك قانون كي د حرامو شيانو په پانه كي وليكل او ددې ټولو شيانو څخه يې خلك په كلكه سره منع كړل او داسي يې وفرمايل

نهى رسول الله ﷺ عن كل مسكر ومفتر. (**ابوداؤد كتاب الاشربة ۵۱۹**)

**ترجمه**: حضرت محمد ﷺ د هر نشه راوستونكي او مخدر شي ممانعت

کړی دی (یعني دغه شیان یې هم منع کړي دي)

لیکن له دې تفصیل او جامعیت څخه وروسته هم دې خبرې امکان درلود چې خلک دې دا راز نشه راوستونکي شیان استعمال کړي چې په عرف او اصطلاح کې پر هغو د خمر اطلاق نه کیږي. لکه په عربو کې چې یو ډول مصنوعي شی ؤ چې هغه شي ته به یې "ناوی" وایه جناب محمد رسول الله ﷺ د هغو ټولو شیانو څخه هم پرده پورته کړل او دا ټول شیان یې په خمریاتو کې داخل کړل او داسې یې و فرمایل

یقول لیشربن ناس من امتی الخمر یسمونها بغیر اسمها.

**(ابوداؤد کتاب الاشربة صفحه ۵۱۹)**

**ترجمه**: جناب رسول الله ﷺ وویل چې زما په امت کې به ضرور ځیني خلک د نوم د بدلولو څخه وروسته شراب استعمالوي

ورونو! په اسلام کې د نشیي او مخدره موادو څخه دومره کرکه او نفرت ښوول شوی دی چې حتی د جهاد اعلان ورسره شوی دی . په ابوداؤد شریف کې راغلي دي چې یو وخت یو صحابي جناب رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چې موږ په یو یخ او سوړ ملک کې استوګنه لرو او سخت کارونه کوو . نو موږ ددې لپاره د غنمو څخه نښتېږل شوي اوبه څښو چې دغه شی په موږ کې د زیار او زحمت او هم د یخنی سره د مقابلې طاقت راپیدا کړي. جناب رسول الله ﷺ ورڅخه وپوښتل چې آیا دغه شی چې تاسې یې خوری نشه راوستونکی دی که نه ؟ هغه ورته وویل هو. (نشه هم راولي)

جناب محمد رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې داسې ده. نو د هغه شي څخه



لاس واخلئ. هغه صحابي ورته وویل چې ګمان نه کوم نور خلک به یې پرېږدي ، جناب رسول الله ﷺ ورته وفرمایل کوم چا که پرې نه ښوول جهاد ورسره اعلان کړئ. ددې حدیث عربي الفاظ په لاندې ډول دي

عن دیلم الحمیری قال سألت النبی ﷺ فقلت یا رسول الله انا بارض باردة نعالج فیها عملا شدیدا وانا نتخذ شرابا من هذا القمح نتقوی به علی اعمالنا وعلی برد بلادنا قال هل یسکر قلت نعم قال فاجتنبوه فقلت فان الناس غیر تارکیه قال فان لم یترکوه فقاتلوهم.

**(ابوداؤد کتاب الاشربة صفحه ۵۱۸)**

ورونو! اوس تاسې فکر وکړئ صحیح قانون دې ته ویل کیږي چې په منع شوو شیانو کې یې اصول داسې وضع کړي دي چې هیڅ راز بهانه او حیله یې نه ده پکښې پرې ایښې، په رښتیا چې الهی قانون دی

## اجتهاد او تقلید:

**پوښتنه**: آیا امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله، امام مالک رحمه الله، امام شافعي رحمه الله، امام احمد بن حنبل رحمه الله د انبیاوو و درجې ته رسېدای شي؟

**جواب**: نه ا هیڅکله نه، څکه چې دغه څلور سره امامان خو امتیان دي، او هیڅ امتي د هیڅ نبي د پښو و خاورې ته لا نه شي رسېدای.

## چې دغه څلور سره امامان ټوله حق دي نو بیا مونږ ولې د یوه امام تقلید کوو او بله خبره دا ده چې ددغو څلورو امامانو څخه مخکې خلکو د چا تقلید کاوه:

**پوښتنه**: چې دغه څلور سره امامان یعني حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله حضرت امام شافعي رحمه الله، حضرت امام مالک رحمه الله او حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله ټوله حق دي، نو بیا مونږ ولې د یوه امام تقلید کوو، او بله خبره دا ده چې ددغو څلورو امامانو څخه مخکې خلکو د چا تقلید کاوه؟

**جواب**: هو! دا صحیح خبره ده چې دغه څلور سره امامان ټوله حق دي، د هر یوه تقلید چې وکړل شي صحیح دی ،خو دا چې مونږ ولې د څلورو سرو امامانو تقلید نه کوو، باید ووایم چې په یوه وخت کې د څلورو سرو تقلید څه



ډول کېدای شي، ته ووایه دا خو امکان نه لري

دوهمه خبره دا ده چې د سره د تقلید ضرورت ولې پېښ شو، دا خو څکه چې که د یو امام تقلید ونه کړل شي، نو ددې ډېره خطره شته چې په ډېرو اجتهادي مسائلو کې به خلک د خپلو خواهشاتو تر اغېزې لاندې راشي او د حق لاره به پرېږدي، یعني په کومه لاره کې چې شخصي دده گټه راتله هغه به غوره کوي.

دا چې ددغو امامانو څخه مخکې خلکو د چا تقلید کاوه باید ووایم چې هغه خو د خیرالقرون دور ؤ، هغو خلکو به د خپلې خوښې پر ځای د صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه پوښتنې کولې. (فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۳۵)

## د امامانو مبارکانو تر منځ ولې اختلاف راتلی؟

**پوښتنه**: د امامانو تر منځ ولې د شریعت په یو کار کې اختلاف راځي. په دې معنی چې د یوه امام یعني امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله په نزد یو کار روا وي او د بل امام یعني امام شافعي رحمه الله په نزد روا نه وي؟

**جواب**: لومړی په دې خبره ځان پوه کړئ چې د ډېرو کارونو په هکله خو قرآن شریف او حدیث نبوي ﷺ په ښکاره او صافو ټکو سره فیصله کړې ده. او زموږ د شریعت ډېره برخه هم همدغه ده، په دغو کارونو کې خو د روا او ناروا کېدلو د هیچا تر منځ اختلاف نه شته، مګر په ځینو کارونو کې بیا د قرآن شریف او حدیث نبوي صراحت نه شته، نو په دغو ځایونو کې بیا مجتهدین راولاړېږي او د خپله اجتهاده څخه کار اخلي، د اجتهاد تر کولو وروسته د روا

او نا روا فیصله کوي، خو دا چې په علم، فهم او قوت اجتهادیه کې فرق یو طبعي او فطري شی دی، نو ددې وجې څخه د دوی په اجتهادي فیصلو کې ضرور اختلاف راځي.

د انسانانو تر منځ دا ډول فرقونه خو یو طبعي او فطري شی دی. نو ځکه په دغو اجتهادي فیصلو کې اختلاف راتلل ښخي یوه ممکنه خبره ده او هیڅوک ددې څخه انکار نه شي کولای، ددې لپاره چې په دغه مسئله ستاسو څه نا څه سر خلاص شي، دوه کوچني مثالونه ستاسو په مخ کې ایږدم.

**لومړی مثال:** جناب رسول الله ﷺ څو کسه صحابه کرام ﷺ و یو ځای ته په یو کار پسې واستول او دوی ته یې هدایت وکړ چې دماځیګر لمونځ به په فلاني ځای کې کوئ، نو صحابه کرام هم را روان شول مزل پر مزل تر دې چې هغه ځای ته لا نه وه رسېدلي چې جناب رسول الله ﷺ ورښودلی ؤ، که ګوري چې په دې وخت کې د ماځیګر لمونځ پر قضا کېدو شو. نو د صحابه کرامو ﷺ په منځ کې اختلاف پیدا شو او پر دوو ډلو ووېشل شول. یوې ډلې ویل چې جناب رسول الله ﷺ خو موږ ته امر وکړ چې د ماځیګر لمونځ به هغه فلاني ځای ته رسوئ، او هلته به یې کوئ، نو که اوس لمونځ قضاء کېږي هم، موږ یې وهغه ځای ته رسوو دا ځکه چې جناب رسول الله ﷺ همداسې راته ویلي دي او دا دده مبارک امر دی.

بلې ډلې بیا ویل چې نه دا سمه خبره نه ده چې لمونځ قضا کوو، د ماځیګر لمونځ باید همدلته وکړو بیا روان شو، ځکه چې د جناب رسول الله ﷺ مطلب خو دا ؤ چې د لمر لوېدو څخه مخکې به تاسې هغه ځای ته ورسېږئ او هلته به



د ماځیګر لمونځ وکړئ، نو دا چې موږ په دې ونه توانېدو چې د لمر لوېدو څخه مخکې و هغه ځای ته ورسېږو او هلته دې د ما ځیګر لمونځ وکړو، نو دا چې اوس دلته لمونځ پر قضاء کېدو دی باید همدلته د ماځیګر لمونځ وکړو

مطلب دادی چې ددغو دوو ډلو تر منځ پر یوه خبره اتفاق رانه غی ځینو پکښې یو نظر او ځینو بیا پکښې بل نظر درلود نو هغه ؤ چې ځینې صحابه کرامو ﷺ د ماځیګر لمونځ دلته وکړ او ځینو د ماځیګر لمونځ قضاء کړ او څه وخت چې هغه ځای ته ورسېدل چې جناب رسول الله ﷺ ورښودلی ؤ، هلته یې د ماځیګر لمونځ وکړ.

څه موده وروسته دغه قصه د جناب رسول الله ﷺ و حضور ته وړاندې شوه، جناب رسول الله ﷺ دواړې ډلې پر حق وبللې او د یوې ډلې رد یې هم ونه کړ، ځکه چې دواړو ډلو خو د خپل خپل فکر او اجتهاد مطابق د جناب رسول الله ﷺ په حکم باندې د عمل کول مقصود وه، که څه هم چې د دوی په منځ کې خو ډېر غټ اختلاف موجود ؤ د جواز او عدم جواز یعني د روا او نا روا اختلاف ؤ. ځکه چې یوې ډلې دلته لمونځ روا باله او بلې ډلې دلته روا نه باله. یوې ډلې دلته لمونځ وکړ او بلې ډلې د ماځیګر لمونځ قضاء کړ. هغه مطلوبه ځای ته چې ورسېده چې جناب رسول الله ﷺ ورښودلی ؤ هلته یې د ماځیګر لمونځ اداء کړ.

د مجتهدینو تر منځ اختلاف هم همدا ډول دی. او هر امام د خپل اجتهادي صلاحیت سره سم د شریعت احکام عملي کوي، نو ښکاره خبره ده چې ددغو امامانو تر منځ به هم په ډېرو مسائلو کې اختلاف رامنځته کېږي، د صحابه کرامو ﷺ دغه اختلاف نه یوازې دا چې جناب رسول الله ﷺ برداشت کړ، بلکې

دغه ته يې رحمت ووايه. که تاسې فکر پر کارواچوئ او سترګې خلاصې کړئ. نو دغه اختلاف به ډېر ژر رحمت په نظر درشي

**دوهم مثال**: که تاسې فکر کړی وي دا هره ورځ پېښېږي چې يوه محکمه دې د يوه ملزم نيول روا بولي او بله محکمه دې د هغه ملزم نيولو ته ضرورت نه حس کوي او د هغه نيول دې ناروا بولي. د دواړو محکمو په مخکې خو د قانون يو ډول کتاب پروت وي. مګر پر دغې خاصې واقعې باندې د قانون په عملي کېدلو کې اختلاف وي. او تر ننه پورې دغه اختلاف هيچا غلط او د عقل خلاف نه دی ګڼلی

څلور سره امامان يعني امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله. امام مالک رحمه الله. امام شافعي رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله زموږ د دين سترې محکمې دي. نو هرکله چې به يوه متنازع فيها او جنجالي مسئله ددغو مبارکو حضراتو و مخ ته وړاندې کړل شول دوی به راولاړېدل د قرآن او سنت په رڼا کې به يې پر دغه مسئله باندې غور. فکر او ژور تحقيق کاوه. تر دې هر څه وروسته به يې په ډېر غور او احتياط سره په دې هکله فيصله کول. نو په دې صورت کې دا هم کېدای شوای چې دڅلورو سرو نظر دې پر يوه خوا تللی وای اوڅلوروسرو دې يو ډول فيصله کړې وای لکه چې ډېر ځله داسې هم شوي دي او دا هم کېدای شوای چې د يوه امام درايې سره سم دې دغه شی روا وای او د بل امام د رايې مطابق دې روا نه وای او د دريم امام په نزد دې مکروه وای. نو دا چې د ټولو رايه په دغه فيصله کې د قرآن او سنت پر دلائلو مبني اوولاړه ده اود څلورو



سرو مبارکو امامانو مطلب حق ته رسېدل دي خو صرف د تګ په لارو کې يې اختلاف دی، نو په دې وجه د څلورو سرو د هر يوه فيصله د ډېر احترام وړ ده. دغه څو ليکې مې ددې لپاره وليکلې چې په دغه مسئله ستاسې څه ناڅه سر خلاص شي، که نه نو دا خو د يوه ځانګړي کتاب موضوع ده

## حق خو صرف يو وي دا څنګه کېدای شي چې داڅلور سره مذهبونه دې ټوله حق وي:

**پوښتنه**: آيا پر موږ باندې د يوې فقهي پابندي واجب ده او که نه. آيا دغه څلور سره فقهي يعني حنفي فقه. شافعي فقه. مالکي فقه. حنبلي فقه ټوله اسلام دی، دا څنګه کېدای شي چې دا دې ټوله حق وي. حق خو صرف يو وي او بله خبره دا ده چې حضرت امام شافعي رحمه الله د امام اعظم حضرت ابوحنيفه رحمه الله د فقهي پابندي ولې نه کوله؟

**جواب**: وروره! پر هر مسلمان باندې د خدای ﷻ او د خدای د رسول ﷺ د احکامو پابندي لازمه ده، کوم چې د قرآن او حديث نبوي څخه معلومېږي، خو دا چې د احکامو د پوره پوهې لپاره د اجتهاد ضرورت شته، او بايد ووايم چې د اجتهاد د صلاحيت په اعتبار سره د علم خاوندان پر دوو ډلو وېشل کېږي: يو مجتهد او بل غير مجتهد دی، پر مجتهد باندې د خپل اجتهاد مطابق عمل کول لازم دی، او د غير مجتهد لپاره بيا د يو مجتهد وطرف ته رجوع کول په کار ده، لکه الله ﷻ چې پخپل کتاب قرآن شريف کې فرمايي:

فاسئلوا اهل الذکر ان کنتم لاتعلمون. (سورة نحل آيت ۴۳)

او همدارنګه جناب رسول الله ﷺ په ابو داؤد کې فرمايي

الاسئالوا اذلم يعلموا فانما شفاء العی السوال.

**(ابوداؤد جلد اول صفحه ۴۹)**

دغه څلور سره امامان مبارکان مجتهدين وه. عوام خلک به په قرآن او حديث باندې د عمل کولو لپاره دغو مجتهدينو ته رجوع کوي. او کوم څوک چې پخپله مجتهد وي. نو د هغه لپاره مجتهد ته رجوع کول روا نه دي. او يو معين مجتهد ته رجوع کول ځکه ضروري دي چې په قرآن او حديث باندې د عمل کولو پر ځای داسې نه وي چې د نفساني خواهشاتو تر اغېزې لاندې راشي. او کومه مسئله چې يې د خپل خواهش سره سمه وي او دده پکښې شخصي ګټه وي هغه عملي کړي. نو که تاسې پخپله د اجتهاد صلاحيت لرئ نو پخپله اجتهاد کوئ. ما چې څه ليکلي دي دا مې د غير مجتهدينو لپاره ليکلي دي **(فتاوی يوسفيه جلد اول صفحه ۳۷)**

مګر هو! فکر مو وي چې هر سړی مجتهد نه شي جوړېدای. ځکه چې دا يوه فطري خبره ده چې د اجتهاد شرائط په هر سړي کې نه شي پيداکېدای. دا چې د اجتهاد لپاره څومره پوهې او بصيرت. ادراک او تقوی ته ضرورت دی دا په غټو کتابونو کې کتلای شئ. ته د نن ورځې وحالاتو ته وګوره بيا فکر وکړه چې د نن سبا په خلکو کې به د اجتهاد شرائط څه ډول موجود شي؟



## يو سړی حنفي مذهبه دی، مګر دی غواړي چې زما مسئله دې په مالکي فقه سره حل کړل شي، نو تاسې ولې دا کار نه خوښوئ حال دا دی چې مالکي فقه هم حق بولئ:

**پوښتنه**: يو سړی حنفي مذهبه دی. مګر دی غواړي چې زما مسئله دې په مالکي فقه سره حل کړل شي. نو تاسې ولې دا کار نه خوښوئ. حال دا دی چې مالکي فقه هم حق بولئ؟ او بله پوښتنه دا ده چې ددغو امامانو و فقهې ته ولې د مذهب درجه ورکول شوې ده. حال دا دی چې پر يو مسلمان باندې خو دا لازمه ده چې صرف د الله ﷻ او د هغه د رسول اطاعت وکړي يعني صرف په قرآن او حديث باندې عمل وکړي؟

**جواب**: وروره! تاسو ډېر ښه سوال کړی دی چې د خپلو شکونو اظهار مو کړی دی. هيڅکله بايد په زړه کې د يوې ديني مسئلې په هکله شک پرې نه ږدئ. ستاسې د پوښتنې په جواب کې بايد ووايم چې د اسلام د دين ډېر کارونه خو داسې دي چې په هغه کې نه د چا اختلاف شته او نه د اختلاف ګنجائش شته. مګر ځينې بيا داسې کارونه هم شته چې د هغو حکم په ښکاره ټکو سره په قرآن او حديث کې نه دی ذکر شوی. نو د دا ډول کارونو په هکله شرعي حکم د معلومولو لپاره وژور علم. پراخه فکر. او د لوړې درجې و ديانت او پرهېزګارۍ ته ضرورت شته. نو بايد ووايم چې دغه څلور سر

او همدارنګه جناب رسول الله ﷺ په ابو داؤد کې فرمايي

الاسئالوا اذلم يعلموا فانما شفاء العى السوال.

**(ابوداؤد جلد اول صفحه ۴۹)**

دغه څلور سره امامان مبارکان مجتهدين وه. عوام خلک به په قرآن او حديث باندې د عمل کولو لپاره دغو مجتهدينو ته رجوع کوي. او کوم څوک چې پخپله مجتهد وي. نو د هغه لپاره مجتهد ته رجوع کول روا نه دي. او يو معين مجتهد ته رجوع کول ځکه ضروري دي چې په قرآن او حديث باندې د عمل کولو پر ځای داسې نه وي چې د نفساني خواهشاتو تر اغېزې لاندې راشي. او کومه مسئله چې يې د خپل خواهش سره سمه وي او دده پکښې شخصي ګټه وي هغه عملي کړي. نو که تاسې پخپله د اجتهاد صلاحيت لرئ نو پخپله اجتهاد کوئ. ما چې څه ليکلي دي دا مې د غير مجتهدينو لپاره ليکلي دي **(فتاوی يوسفيه جلد اول صفحه ۳۷)**

مګر هو! فکر مو وي چې هر سړی مجتهد نه شي جوړېدای. ځکه چې دا يوه فطري خبره ده چې د اجتهاد شرائط په هر سړي کې نه شي پيداکېدای. دا چې د اجتهاد لپاره څومره پوهې او بصيرت. ادراک او تقوی ته ضرورت دی دا په غټو کتابونو کې کتلای شئ. ته د نن ورځې وحالاتو ته وګوره بيا فکر وکړه چې د نن سبا په خلکو کې به د اجتهاد شرائط څه ډول موجود شي؟



## يو سړی حنفي مذهبه دی، مګر دی غواړي چې زما مسئله دې په مالکي فقه سره حل کړل شي، نو تاسې ولې دا کار نه خوښوئ حال دا دی چې مالکي فقه هم حق بولئ:

**پوښتنه**: يو سړی حنفي مذهبه دی. مګر دی غواړي چې زما مسئله دې په مالکي فقه سره حل کړل شي. نو تاسې ولې دا کار نه خوښوئ. حال دا دی چې مالکي فقه هم حق بولئ؟ او بله پوښتنه دا ده چې ددغو امامانو و فقهې ته ولې د مذهب درجه ورکول شوې ده. حال دا دی چې پر يو مسلمان باندې خو دا لازمه ده چې صرف د الله ﷻ او د هغه د رسول اطاعت وکړي يعني صرف په قرآن او حديث باندې عمل وکړي؟

**جواب**: وروره! تاسو ډېر ښه سوال کړی دی چې د خپلو شکونو اظهار مو کړی دی. هيڅکله بايد په زړه کې د يوې ديني مسئلې په هکله شک پرې نه ږدئ. ستاسې د پوښتنې په جواب کې بايد ووايم چې د اسلام د دين ډېر کارونه خو داسې دي چې په هغه کې نه د چا اختلاف شته او نه د اختلاف ګنجائش شته. مګر ځينې بيا داسې کارونه هم شته چې د هغو حکم په ښکاره ټکو سره په قرآن او حديث کې نه دی ذکر شوی. نو د دا ډول کارونو په هکله د شرعي حکم د معلومولو لپاره وژور علم. پراخه فکر. او د لوړې درجې و ديانت او پرهېزګارۍ ته ضرورت شته. نو بايد ووايم چې دغه څلور سره

امامان رحمهم الله تعالی په دغو صفتونو باندي د ټول امت په نزد باندي معروف او مسلّم دي او د ټول امت د دوی پر علم، پراخه فکر، او پرهېزګاری باندي اعتماد راغلی دی، نو ځکه د دوی فیصلې په حیثیت د قانون د شارح منل شوي دي لکه څه ډول چې د سترې محکمې د تشریح قانون مستند وي.

نو دا ډول فکر کول صحیح نه دی چې ګنې خلک دې د الله او د هغه د رسول د اطاعت پر ځای د دغو بزرګانو اطاعت کوي، بلکې صحیح تعبیر دا دی چې د الله ﷻ او رسول ﷺ د حکمونو کومه تشریح چې د غو بزرګانو یعني حضرت امام اعظم ابوحنیفه ﵀، حضرت امام مالک ﵀، حضرت امام شافعي ﵀، او حضرت امام احمد بن حنبل ﵀ کړې ده، دا تشریح مستنده ګڼل کېږي، او د قانون تشریح یو پوه او هوښیار سړی د قانون څخه انحراف او سرغړونه نه بولي. ځکه چې دغه څلور سره فقهې د قرآن او حدیث څخه اخیستل شوې دي او د دوی تابعداري د قرآن او حدیث تابعداري ده. ځکه چې دغو امامانو خو په هغو مسئلو کې اجتهاد نه دی کړی چې په قرآن او حدیث کې یې په ښکاره ټکو سره حکم شوی دی او نه په هغو کې اختلاف شته او نه دوی داسې دي چې د قرآن او حدیث پر خلاف اجتهاد کوي، ځکه چې حضرت امام اعظم ابوحنیفه ﵀ پخپله فرمایلي دي:

**اذاصحّ الحدیث فهومذهبی.** (**ردالمحتار جلد اول صفحه ۴۶**)

یعني کله چې تاسې ته صحیح حدیث ثابت شو، نو په هغه عمل کوئ ځکه چې دغه زما مذهب دی، همدغه قول رسم المفتی او فتاوی دارالعلوم دیوبند هم پخپل لومړي جلد کې را اخیستی دی.



او همدارنګه ردالمحتار په نومړي صفحه کې لیکي:

**قال ابن شحنة اذا صحّ الحدیث وکان علی خلاف المذهب عُمِلَ بالحدیث ویکون ذلک مذهبه.** (**ردالمحتار جلد اول صفحه ۴۶**)

یعني کله چې حدیث صحیح ثابت شي او د حنفي مذهب خلاف وي نو په حدیث به عمل کیږي او دغه حدیث به د امام ابوحنیفه ﵀ مذهب وي، ځکه چې امام ابوحنیفه ﵀ پخپله دغه وصیت کړی دی، نو څوک چې د امام ابوحنیفه ﵀ په وصیت عمل وکړي، هغه د امام صاحب تابعدار دی.

(**عقدالجید لشاولی الله صفحه ۵۲ اوفتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه۵۲**)

همدارنګه امام ابوحنیفه ﵀ فرمایلي دي که چیري زما یو قول د کتاب الله، یا حدیث رسول الله، یا د یو صحابي د قول څخه مخالف راشي نو زما قول پرېږدئ.

همدارنګه امام مالک ﵀ فرمایلي دي:

**لیس احدبعدالنبی ﷺ الاویؤ خذمن قوله ویترک الاالنبی ﷺ** یعني بې له نبي ﷺ څخه داسې څوک نه شته چې ټوله خبرې دې واخیستل شي، بلکې ځینې به یې اخیستل کیږي او ځینې به یې پرېښودل کیږي، مګر د نبي ﷺ ټولې خبرې اخیستل کیږي.

او امام شافعي ﵀ بیا په دې اړوند فرمایي: **اجمع المسلمون علی ان**

من استبان له سنة عن رسول الله ﷺ لم يحل له ان يدعها لقول احد.

**(اعلام الموقعين جلد ۲ صفحه ۳۶۱)**

**ترجمه**: د مسلمانانو پر دې خبره اتفاق دی چې که یو چا ته د نبي ﷺ سنت ورمعلوم شي نو هغه لره حلال نه دی چې یو سړي د قول له وجې د جناب رسول الله ﷺ دغه سنت پرېږدي.

همدارنګه حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمايلي دي: لاتقلدني ولاتقلد مالكًا ولا الشافعی ولا الاوزاعی ولا الثوری وخُذ من حيث اخذوا. **(اعلام الموقعين جلد ۲ صفحه ۳۲)**

**ترجمه**: مه زما تقليد کوئ او مه د مالک رحمه الله او مه د شافعي رحمه الله او مه د اوزاعي رحمه الله او مه د ثوري رحمه الله او اخلئ د هغه ځای څخه چې دوی اخیستل کړي دي.

که یو سړی ووايي چې صحيح ده دا خبره درسره منم چې دغه څلور سره تشريحات مستند دي، خو سوال دادی یو سړی چې په حنفي مذهب دی مګر غواړي چې په مالکي فقه خپله مسئله حل کړي، ولې ددغه کاره څخه منعه کیږي باید ووایم چې ددې دوه علته دي:

**لومړی علت**: دا دی چې د نورو فقهو د پوره تفصيل معلومات زموږ سره نه شته او نه د دوی ټوله کتابونه زموږ سره موجود دي چې موږ د هغو څخه صحيح او راجح مسئله راوباسو، ددې لپاره د نورو فقهو و ماهرينو ته د



رجوع مشوره خو ورکول کېدای شي مګر پخپله (د خپلې کم علمی سره) داسې کار کول د احتياط څخه خلاف خبره ده.

**دوهم علت**: دا دی چې دلته ددغې سیمې پر خلک د حنفي فقهې سره بلد دي، نو که یو سړی د خپلې حنفي فقهې څخه بلې فقهې ته رجوع کوي، ددې خبرې اندېښنه ده چې هغه به د خپلې شخصي ګټې په وجه بلې فقهې ته رجوع کوي، نه د خدای ﷻ او د خدای د رسول د اطاعت لپاره **(فتاوی يوسفيه جلد اول صفحه ۴۰ سره د احقر د يو څه زياتونې)**

**پوښتنه**: آيا يو سړی دا کولای شي چې په يوه يا څو مسئلو کې خپل مذهب پرېږدي او په بل مذهب عمل وکړي مثلاً يو سړی حنفي مذهبه دی خو په يوه يا څو مسئلو کې د بل امام يعني امام شافعي رحمه الله په مذهب عمل وکړي او يا يو سړی شافعي مذهبه دی، غواړي چې په يو څو مسئلو کې په حنفي مذهب عمل وکړي؟

**جواب**: د خپل امام مسلک پرېښودل او د بل امام په مسلک عمل کول په دوو شرطونو سره صحيح دی:

لومړی شرط دا دی چې دده اراده به د نفس غوښتنه نه وي، بلکې ددغه بل مسلک دليل به ده ته زيات قوي او زيات احتياط والا ورمعلومیږي

دوهم شرط: دا دی چې دوه مسلکونه ګډ وډ نه کړي، چې و دغه ته د فقهاوو په اصطلاح کې تلفيق ويل کيږي، بلکې په کوم مذهب چې عمل غواړي، نو د هغه مذهب د ټولو شرطونو به خيال ساتي

# د علماوو او فقهاوو تر منځ ولې اختلاف نه ورکیږي؟

د علماوو تر منځ اختلاف نه کېدل ناممکن دي او په دې هکله امید کوونکی د احسن الفتاوی په قول لوی احمق دی، ځکه چې د علماوو اتفاق صرف په هغه صورت کې کېدای شوای چې په قرآن او حدیث کې د هر سړي په هکله دهغه د هر فعل د هر کیفیت حکم لیکل شوی وای او دا کار نا ممکن دی ځکه چې په دنیا کې انسان غیر محصور دی، که څه هم چې غیر متناهي نه دی، نو د هر سړي غیر محصور افعال او د هر فعل غیر محصور احکام او کیفیات، نو ددې لپاره خو دومره مفصل کتاب نازلول په کارؤ، چې په هغه کې هره جزئیه ذکر وای.

دا خو ښکاره خبره ده چې دا کتاب به دومره پنډ او ضخیم وای چې نه به ددې حفاظت ممکن وای او نه به ددې کتاب د یوه ځایه بل ځای ته نقلول د انسان په قدرت کې وای، او نه به ددې څخه د استعمال کوم صورت موجود وای، ته فکر وکړه په دا دومره زیاتو انسانانو کې به خپل نوم پیدا کول څومره مشکل وای، بیا د دا خپلو دومره زیاتو کارونو د هر یوه حکم پیدا کول به څومره سخت او نا ممکن وای، نو دداسې کتاب نازلول چې د هغه څخه دې نه خو انسان استفاده کولای شوای او نه دې د هغه حفاظت کولای شوای دا خو د الله ﷻ د کلام یو عیب ؤ، او دا خو تاسې ته معلومه ده چې د الله ﷻ هر صفت د هر ډول عیب څخه پاک دی.



نو باید ووایم چې د علماوو او فقهاوو تر منځ اختلاف ورکېدل ناممکن دی او د نا ممکن شي غوښتونکی احمق دی، په قرآن او حدیث کې د جزئیاتو پر ځای کلیات ذکر دي، بیا د کلیاتو څخه هره هره جزئیه را ایستل کیږي او د کلیاتو څخه د جزئیاتو په را ایستلو کې د عقل او فکر څخه کار اخیستل کیږي، نو دا چې د انسان عقلونه سره مختلف دي، له دې کبله په مسئله کې اختلاف پیدا کیږي، ځینې وخت جزئیه هم یوه وي او ددواړو ډلو په منځ کې هم یو ډول کلیات پراته وي، مگر اختلاف په دې کې وي چې دغه جزئیه تر کومې کلیې لاندې راتلای شي.

ددې مثال داسې دی لکه د یو قاضي په وړاندې چې یوه مقدمه پېش کړل شي، په دې کې د مدعي او مدعي علیه د وکیلانو تر منځ اختلاف راځي، حال دا دی چې هغه جزئیه هم یوه ده چې دوی بحث پر کوي او کوم قوانین چې دوی خپلې نظریې ځینې ثابتول غواړي، هغه قوانین هم د یوه حکومت یو ډول قوانین دي او د دواړو ډلو تر منځ د منلو وړ دي، ددې سره سره د دواړو وکیلانو تر منځ داسې اختلاف رامنځته کیږي د مدعي وکیل وایي چې د فلاني قانون په رو سره په دغه جزئیه کې و مدعي علیه ته سزا ورکول په کار ده او د مدعي علیه وکیل بیا دا ثابتول غواړي چې دغه جزئیه تر هغه قانون لاندې نه ده چې د مدعي وکیل یې بیانوي، بلکې د دوهم قانون سره ډېر مناسبه معلومیږي چې د هغه په وجه سره باید مدعي علیه خوشې کړل شي.

مطلب دا دی چې د دوی دواړو تر منځ بحث په دې کې رامنځ ته کیږي چې دغه جزئیه د کومې کلیه فرد دی او کوم قانون ددې سره سمون خوري، که

تاسي په دې مملکتونو کې مقدمې دائرې کړې وي نو درته معلومه شوې به وي چې شپه او ورځ وکیلان په دغو بحثونو کې مصروف وي او دغه وکیلان د حکومت په نزد د اعتبار وړ وي، د دوی پر اختلاف نه خو فریقین اعتراض کوي او نه نور خلک دا بد بولي او نه هم قاضي د دوی پر اختلاف ناراضه کیږي او نه یې حکومت د دغه اختلاف څخه راګرځوي، بلکې د لانبه بحث کولو او د لائلو د بیانولو موقع ورکوي، تر دې وروسته قاضي ګوري د کوم وکیل دلائل چې راجح او د قانون د کلیاتو سره ښه سمون خوري د هغه پر طرف فیصله کوي، مګر د دوهم وکیل څخه نه اجازت سلبیږي او نه د سزا مستحق ګرځي او نه هم بد ګڼل کیږي، بلکې په نورو مقدماتو او د عوو کې بیا د بحث کولو اجازه ورکول کیږي.

همدغه مثال د علماوو او فقهاوو هم دی، دوی ګوري چې فلانی جزئیه د کومې کلیه سره ښه سمون خوري. که په دنیا کې ښه فکر وکړئ دا ډول اختلاف په ډېرو شیانو کې رامنځته کیږي، که تاسي علم العلاج ته وګورئ نو په هغه کې به هم غټ اختلاف په نظر درشي، وګورئ د یوناني، هومیوپیتي او ډاکتري تر منځ په اصولو کې اختلاف شته، دوی د علاج په هره طریقه کې د مرض په تشخیص او د هغو په اسبابو کې او د دوا په ورکولو او پرهېز کولو کې، د دوا په مقدار او د دوا د خوړلو په اندازه کې او د دوا د استعمال په طریقه کې اختلاف لري، که چیرې ښه فکر وکړو د یوې طریقې په دوو ماهرانو کې یعني دوو ډاکترانو او یا دوو طبیبانو کې هم دا ډول اختلاف رامنځ ته کیږي، مګر د دې سره سره دغه اختلاف هیڅوک بد نه بولي او نه د دوی پر دا ډول اختلاف څوک اعتراض کوي، که څوک د دوی دا ډول ژور



اختلاف و هم ویني خو بیا هم هیڅوک خپل علاج نه پرېږدي، بلکې پر کوم طبیب او یا ډاکتر چې یې اعتماد زیات وي په هغه علاج کوي.

د علماوو اختلاف تر دې په ډېره کمه اندازه کې دی، ځکه چې اصول یې یو دي، د دې سره سره دغه اختلاف بد ګڼل کیږي او د دې سره دا هم وایي چې موږ حیران یو چې د کوم عالم خبره ومنو پر دې ځای احسن الفتاوی لیکي:

حقیقت دا دی چې د دین او د علم دین ولور ته توجه کمه ده، د جسماني علاج خو دومره اهمیت زیات دی چې د ډاکترانو د اختلاف سره سره دوی خپل علاج نه پرېږدي، د دې برعکس د باطني امراضو و علاج ته چنداني ضرورت نه ویني، ځکه چې په زړه کې یې د دین سره اړیکې لږ دي

دا مو وا وربدل چې اختلاف راتلل یو لازمي کار دی او د دې ورکېدل یو ناممکن کار دی، نو اوس باید په دې پوه شئ چې اختلاف پر درې قسمه دی.

یو خو دا دی چې د دواړو ډلو د اختلاف وجه به د خدای ﷻ رضاء وي هر یو به دا وایي چې زه چې څه وایم په دې کې د دین فائده ده او د مخالفې ډلې چې کوم نظر دی هغه د دین په تاوان دی، په دغه صورت کې پر دغو دواړو ډلو باندې دغه ډول اختلاف فرض دی، په دغه اختلاف کې به دواړو ډلو ته ثواب رسیږي، که چیرې دغه اختلاف پرېږدي نو ګناه کار به شي ځکه چې هر یوه ته خپله نظریه د دین په ګټه معلومیږي او د مخالف نظریه د دین په تاوان معلومیږي

دوهم قسم هغه دی چې د یوه جانب مقصد رضایي الهي وي او دوهم جانب صرف د اتباع هوا په خاطر اختلاف کوي، مثلاً یو سړی بل سړي ته د لمانځه

تلقین ورکوي او د بدو کارو څخه یې راګرځوي، د نه راګرځېدلو په صورت کې د هغه سره اختلاف لري او بل سړی صرف دده سره په دې مخالفه وي چې ولې یې د بدو کارونو څخه راګرځوي؟ نو احسن الفتاویٰ لیکي چې پر لومړي سړي اختلاف واجب دی او پر دوهم حرام.

دریم قسم هغه دی چې دواړه طرفه په د نفساني خواهشاتو پر بناء اختلاف کوي، دغه اختلاف د دواړو طرفونو لپاره حرام دی او پرېښوول یې واجب دي.

باید ووایم چې د صحابه کرامو اختلاف لومړی قسم اختلاف ؤ.

**(احسن الفتاویٰ جلد اول صفحه ۴۷۴)**

د اختلاف د جواز د شرطونو څخه دوه په دې ډول دي:

۱- د صحیح اختلاف اول شرط دا دی چې ددې سبب به د خدای رضاء وي.

۲- دوهم شرط یې دا دی چې د اختلاف کوونکی نظریه به د مشاهدې خلاف نه وي، مثلاً یو سړی اوښ ښیي چې دا بزه ده او وایي چې زما تحقیق دادی، زه د خپل دیانت او اخلاص په وجه دا فکر کوم، ددې باوجود دغه ډول اختلاف هیڅکله نه شي صحیح کېدای، بلکې دا ډول اختلاف بېخي بې ځایه اختلاف دی. **(احسن الفتاویٰ جلد اول صفحه ۴۷۴)**

## د اولیاوو کرامت حق دی:

کرامت د اولیاوو حق دی، ټول اهل سنت والجماعت پر دې خبره متفق دي چې کرامت د اولیاوو حق دی، الله ﷻ و خپلو مقبولو بندګانو ته پر طریقه د انعام دغه ستردولت چې کرامت او کشف نومیږي ورکړی دی، ټوله اهل سنت



والجماعت پر دې خبره متفق دي چې کرامت حق دی،همدارنګه په قرآن شریف کې هم د دې شواهد او واقعات شته.

خو دې خبرې ته دې ستاسې فکر وي چې کشف او کرامت نه د بزرګۍ او نه د مقبولیت یو نه جلاکېدونکی جزء دی او نه د سړي د ښه والي دلیل دی لکه محققینو چې ویلي دي:

"**الاستقامة فوق الكرامة**" همدارنګه امام غزالي رحمه الله فرمایلي دي چې هیڅکله نبي په معجزه او ولي په کرامت نه پېژندل کیږي، بلکې دوی د خپلو اعمالو او اقوالو څخه پېژندل کېدای شي، یعني دا لازمه نه ده چې خامخا دې د ولي پر لاس کرامت ښکاره شي، بلکې موږ د سړي د اقوالو او افعالو د لیدلو څخه دا ویلای شو چې دغه سړی ښه سړی دی، دا فرق نه کوي چې دده څخه په ټول ژوند کې لا هم یو کرامت ښکاره نه شي، لکه نبراس چې وایي:

**ظهور الكرامة ليس من لوازم الولى.**

**(النبراس شرح شرح العقاید صفحه ۵۵)**

## کرامت څه شي ته ویل کیږي

**پوښتنه** : کرامت څه شي ته ویل کیږي؟

**جواب** : کرامت هغه کار ته ویل کیږي چې د جناب رسول الله ﷺ د یو کامل متبع او پوره پرهېز کاره څخه صادر شي، او دغه کار د قانون د عادت څخه خارج او د باندې وي، نو که چیرې دغه کار د عادت خلاف نه ؤ ، نو دې ته خو

کرامت نه ویل کیږي او یا دغه سړی د نبي ﷺ متبع نه ؤ، هغه هم کرامت نه دی.

«دا ډول سړی چې پرهېزګاره او دینداره نه وي، مګر د عادت خلاف کارونه ځیني ښکاره کیږي د شریعت له نظره د جوګي یا جادوګر مثال لري ځکه چې ډېر ځله دجوګیانو او جادوګرانو څخه خلاف عادت کارونه ښکاره کیږي.

(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۱۵۷)

## بې له تقوىٰ او پرهېزګارۍ او بې له د شریعت د اتباع څخه ولایت او کرامت د امکان څخه لیرې خبره ده

لکه څرنګه چې الله ﷻ د خپل نبي د تصدیق او تائید لپاره دده پر لاس یو داسې ناأشنا، غیر معمولي او خارق عادت واقعات ښکاره کوي، چې دا ډول کارونه نور انسانان نه شي کولای، ددې کار په ښکاره کولو سره یو ډېر کوته ذهنه انسان هم دا درک کولای شي چې هو رښتیا هم دا د الله ﷻ نبي دی، او د الله ﷻ ملګري دده سره ده.

همدا ډول الله ﷻ د خپل یو رښتیني نبي د ځینې نېکو او مقبولو امتیانو پر لاس هم کله نا کله ددوی د عزت او مقبولیت لپاره داسې خارق عادت واقعات ښکاره کوي چې دا پخپله پر دې دلیل دی چې دغه یو مقبول او مقرب انسان دی، باید ووایم چې دا ډول واقعاتو ته کرامت ویل کیږي، او څه ډول چې معجزه د نبي ذاتي او اختیاري فعل نه دی، بلکې د الله ﷻ فعل دی همدا راز کرامت هم د ولي فعل نه دی، بلکې د الله ﷻ فعل دی او الله ﷻ یې په خپله



اراده او اختیار سره د خپل مقبول او نېک بنده پر لاس باندې ښکاره کوي، او بنده صرف ددې مظهر وي، د عقایدو او عرفان په کتابونو کې د کرامت تعریف په دې ډول سره راغلی دی.

هُوَفِعْلُ اللهِ تعالی خَارِقٌ لِلْعَادَةِ يَظْهَرُ عَلٰى يَدِعَبْدٍظَاهِرِصَلَاحُهُ وَتَقْوٰهُ.

ددې مطلب دادی چې کرامت د الله ﷻ هغه غیر معمولي او د عادت خلاف کار دی چې دی یې د خپل داسې بنده پر لاس ښکاره کوي چې د هغه ژوند بالکل په اعلانیه ډول سره د صلاح او تقوىٰ ژوند وي.

ددې څخه معلومه شوه چې بې له تقوىٰ او پرهېزګارۍ او بې له د شریعت د اتباع څخه ولایت او کرامت د امکان څخه لیرې خبره ده.

## ولي څوک دی څه ډول یې پېژندلای شو؟

د اسلامي شریعت، قرآن اوحدیث په اصطلاح کې هغه چا ته ولي ویل کیږي او دده پر لاس کله نا کله د الله ﷻ په اختیار سره غیر معمولي او د عادت خلاف واقعات ښکاره کیږي چې پوره پرهېزګاره، متقي او د شریعت په پوره ډول پابنده وي، بې له پرهېزګارۍ، تقوىٰ او بې له اتباع شریعت څخه ولایت او کرامت هیڅ امکان نه لري، په قرآن شریف کې په صافو ټکو سره فرمایل شوي دي: اَلَاۤ اِنَّ اَوْلِيَآءَ اللهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ. (سورة یونس آیت ۶۳)

**ترجمه**: واورئ خبردار شئ چې بېشکه دوستان د الله ﷻ نه شته هیڅ قسم ببره پر دوی او نه به دوی خپه کېږي، (دخدای دوستان) هغه کسان دي

چې ایمان لري او وي دوی پرهېزګاران (یعني ځان ساتي له ګناهونو او بېرېږي د الله ﷻ څخه).

همدغه د ولي تعریف دی چې الله ﷻ په ښکاره ټکو سره وفرمایه الَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا يَتَّقُونَ. یعني اولیاء الله یا د خدای ﷻ دوستان هغه کسان دي چې ایمان او تقوی ولري، او که غواړئ چې متقیان و پېژنئ نو د سورة بقرې ۱۷۷ آیت ته رجوع وکړئ هلته لوی خدای ﷻ د متقیانو اوصاف بیان کړي دي.

نو که چیرې د داسې نیکو بندګانو پر لاس یو غیر معمولي او د عادت خلاف کار ښکاره شو بس همدا کرامت دی او دا د ده د ولایت او مقبولیت یوه علامه ده او هغه کسان چې په ظاهره متبع شریعت نه وي ژوند او زندګي یې د تقوی او پرهېزګارۍ څخه خالي وي یا په بل عبارت هغه کسان چې تقوی، پرهېزګاري او د شریعت اتباع په اعلانیه ډول نه وي پکښې موجوده، نو د داډول سړي څخه که چیرې یو خارق عادت کار ښکاره شي نو که هغه سحر او فني جادوګري نه وي، نو بیا د بندګانو د ابتلاء او امتحان لپاره د الله ﷻ د طرفه څخه استدراج دی، لکه په احادیثو کې چې د دجال په اړوند راغلي دي چې دی به باران اوروي او مړي به را ژوندي کوي.

د تصوفو په کتابونو کې د حضرت بایزید بسطامي رحمه الله څخه رانقل شوي دي چې ده دا راز فرمایلي دي: لونظر تم الی مَنْ اعطی من الکرامات حتّی یرتقی فی الهواء فلاتغتروا به حتّی تنظرونه کیف تجدونه عندالامر والنهی و حفظ الحدود واداء الشریعة. **(فتوحات مکیه)**



یعني که چیرې تاسې یو سړی ووینئ چې پر لاس یې کرامتونه یعني د عادت خلاف کارونه ښکاره کیږي تر دې چې په هوا الوزي، نو دوکه ونه خورئ یعني داسې نه وي چې صرف د دغو شیانو په لیدلو سره دغه سړی ولی الله او د الله ﷻ مقبول بنده وبولئ، تر څو چې دا مو ښه معلومه کړې نه وي چې دی د الله ﷻ احکام، اوامر او نواهي عملي کوي او که نه او دا مو معلومه کړې نه وي چې د الله ﷻ د مقررو کړو حدودو په باره کې د ده څه طرز عمل دی او آیا پر شریعت پوره پوره روان دی او که نه؟

## د کرامت ظهور د ولایت لپاره شرط نه دی:

د کرامت په هکله یوه خبره دا هم په یاد ولرئ چې د هر ولي څخه د کراماتو ظهور هیڅکله ضروري نه دی، بلکې اکثره اولیاء الله داسې وي چې په ټول عمر کې یو کرامت هم نه شي ځیني ښکاره. بلکې دا هم کېدای شي چې هغه ولي چې هیڅ کرامت به نه وي ځیني ښکاره شوی تر هغه ولي به په رتبه کې ډېر لوړ وي چې ډېر کرامتونه ځیني ښکاره کیږي ځکه چې د فضیلت اصل معیار تقوی ده لکه الله ﷻ چې فرمایي:

إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللهِ أَتْقٰكُمْ. **(سورة الحجرات آیت ۱۳)**

**ترجمه**: بېشکه چې ډېر مکرم او معزز له تاسې څخه په نزد د الله هغه ډېر متقي ستاسې دی.

## د فضیلت اصل معیار تقوی ده

دا ښکاره خبره ده چې د اسلام په مقدس دین کې د فضیلت او برتري اصل معیار تقوی او پرهېزګاري ده، جناب رسول الله ﷺ خپله ګرانه لور حضرت

بی بی فاطمه رضی الله تعالی عنها راوغوښتل او ورته ویې فرمایل چې ای لورې!
زما نوم تا لره هیڅ ګټه نه شي رسولای، دا فکر مه کوه چې ته به په دې خبره خلاصه
شې چې زه د رسول الله لور یم، دا خبره د فکره وباسه زما نوم تالره کومه ګټه نه
رسوي، خپل اعمال دې اصلاح کړه، تا لره ستا اعمال ګټه رسوي، جناب رسول
اللهﷺ به دا خبره خپلو مبارکو بی بی ګانو ته هم کوله، تر دې وروسته جناب رسول
اللهﷺ وفرمایل چې بنی هاشم (یعنی سیدان) پر نورو خلکو کوم فضیلت او برترې نه
لري، ځکه چې ټوله برتري، غوروالی او فضیلت د هر سړي په تقوی او خپل عمل
پورې اړه لري، او همدارنګه قریش پر نورو خلکو کوم فضیلت نه لري، بلکې ټوله
فضیلت د هر سړي په خپل عمل پورې اړه لري، جناب رسول اللهﷺ ددې مبارک
حدیث په آخره کې وفرمایل چې تاسي ټول د یوه سړي او یوې ښځې اولادونه
یاست، نو په تاسي کې یو سړی پر بل سړي هیڅ فضیلت نه لري، ځکه چې د
فضیلت معیار تقوی او پرهېزګاري ده،ددې حدیث ټول عربی الفاظ په دې ډول دي:

عن ابن عباس رضي الله عنهما أنه قال: أقبل نبيّ الله ﷺ من غزاة أو سريّة
فدَعا فاطمةَ رضي الله عنها فقال: "يا فاطمة اشتري نفسک من الله تعالى فإني لا
أُغني عنکِ من الله شيئًا" وقال لِنسْوته مثل ذلک، وقال مثل ذلـک لعِترتِه. ثمّ
قال: "ما بنو هاشم بأولى الناس بأمتي، إنّ أولى الناس بأمّتي المتّقون، ولا قريش
بأولى الناس بأمّتي، إنّ أولى الناس بأمّتي المتقون، ولا الانصار بأولى الناس
بأمّتي، إنّ أولى النّاس بأمّتي المتّقون، ولا الموالي بأولى الناس بأمّتي إنّ أولى
الناس بأمّتي المتقون، إنّما أنتم من رجل وامرأة، وأنتم كجمام الصاع،
ليس لاحد على أحد فضل إلا بالتّقوى. (**رواه القرطبي في الجامع لاحكام**



**القران بهذا اللفظ ،وروى الصحيح البخاري في تفسير سورة الشعراء
وصحيح مسلم في الايمان**)

همدارنګه په یو بل حدیث کې جناب رسول اللهﷺ فرمایې چې نه هیڅ عرب پر
عجم فضیلت لري او نه هیڅ عجم پر عرب فضیلت لري،همدارنګه نه سپین پوستی
پر تورپوستي فضیلت لري او نه تورپوستی پر سپین پوستي فضیلت لري، بلکې
ټول فضیلت او غوروالی د هر سړي پخپل عمل او تقوی پورې اړه لري لکه اللهﷻ
چې فرمایې: اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰكُمْ. (**سورة الحجرات آیت ۱۳**)

**ترجمه**: بېشکه چې ډېر مکرم او معزز له تاسي څخه په نزد د الله هغه ډېر
متقي ستاسې دی.

## د اولیاء الله سره د عناد
## نتیجه د الله ﷻ سره دښمني ده:

دې خبرې ته دې هم ستاسې فکر وي چې د یو ولي منل د ایمان شرط نه دی
لېکن کوم خلک چې واقعي اولیاء الله دي که اوس په دنیا کې موجود وي او یا
مخکې تېر شوي وي د هغوی سره عداوت او بغض او عناد ساتل ډېر بده خبره ده
لکه د صحیح بخاري شریف دا حدیث چې دی:

مَنْ عَادَىٰ لِیْ وَلِیًّا فَقَدْ اٰذَنْتُهٗ بِالْحَرْبِ.(**صحیح البخاري شریف**)

یعني د اللهﷻ ارشاد دی کوم چا چې زما د یو ولي یعني دوست سره دښمني
وکړه ، نو زما د طرفه ورته د جنګ اعلان دی.

نو ددې وجې مور باید د اولیاوو سره ډېره ښه ګزاره او د ادب او عظمت

ژوند وکړو، مګر هو ددې ګنجایش شته چې د ادب او عظمت باوجود په یو خاصه معامله کې مور د دوی د رایې سره اختلاف وکړو، ځکه چې دوی د پیغمبرانو په ډول معصوم او واجب الاطاعت نه دي. (دین و شریعت صفحه ۸۲)

## آیا کرامت د ولي په اختیار کې دی؟

**پوښتنه**: آیا کرامت ښکاره کول د ولي په اختیار کې دی، یعنې چې څه وخت ولي وغواړي چې کرامت ښکاره کړي، ښکاره کولای یې شي او که دده د اختیاره څخه وتلی دی؟

**جواب**: وروره! کرامت د ولي په اختیار کې نه دی لکه نبراس چې لیکي:

ظهور الكرامة ليس من لوازم الولي ولافى استطاعته كل من اراد.

(النبراس شرح شرح العقايد صفحه ۵۵)

همدا رنګه کفایت المفتی لیکلي دي چې کرامت د الله ﷻ د طرفه څخه پیدا کیږي، د پیر او ولي په اختیار کې نه دی. (کفایت المفتی جلد۲ صفحه ۱۰۳)

## آیا هر نا اشنا کار کرامت دی؟

**پوښتنه**: د کرامت صحیح تعریف څه شی دی، آیا هر اعجوبه کرامت دی؟

**جواب**: کرامت هغه کار ته ویل کیږي چې د شریعت د یو پابند چا څخه او د سنتو د یو مکمل متبع ولی الله څخه په ډول د خرق عادت صادر شي، نو کوم څوک چې په مکمل ډول د شریعت پابند نه وي، نو که دغه سړی یو اعجوبه کار ښکاره کړي دا کرامت نه دی، بلکې استدراج، جادو یا مسمریزم و غیره دی. فقط



والله تعالی اعلم. (احسن الفتاوی جلد۲ صفحه ۵۴۹)

## اولیاء الله متصرف او عالم الغیب ګڼل

**پوښتنه**: د اولیاء کرامو (رحمهم الله) ارواح متصرف فی الامور او عالم الغیب ګڼل څنګه دي؟

**جواب**: په دې هکله احسن الفتاوی څه دا راز لیکي: دغه راز عقیده د کفر ده چې په قرآن، حدیث او فقه کې یې پوره پوره تصریح شوې ده، نوموړې فتاوی تر دغې خبرې وروسته د قرآن شریف دا آیاتونه لیکي:

قُلْ لَّآ اَمْلِكُ لِنَفْسِىْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ وَلَوْ كُنْتُ اَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِىَ السُّوْٓءُ اِنْ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ وَّبَشِيْرٌ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ. (سورة الاعراف آیت ۱۸۸)

**ترجمه**: ووایه (اې محمده! دوی ته) چې زه نه لرم واک لپاره د ځان خپل، د رسولو د نفع او نه د دفع کولو د ضرر، مګر هغه څه چې اراده وفرمایي الله ﷻ او که وای زه چې پوهېدلای په غیب باندې نو خامخا حاصل کړې به مې وای ډېر له خیر او نفع څخه او نه به وای رسېدلی ماته کوم تاوان، نه یم زه مګر خو یم وېروونکی او زېری ورکوونکی لپاره د هغه قوم چې مؤمنان دي.

او همدا رنګه په سورة جن کې فرمایي:

قُلْ اِنِّىْ لَآ اَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّلَا رَشَدًا. (سورة الجن آیت ۲۱)

**ترجمه**: ووایه (اې محمده! دوی ته) بېشکه زه مالک نه یم نه توانېږم تاسې لره

په څه ضرر او نه د څه رشد خیر رسولو.

تر دې آیاتونو وروسته نوموړي فتاوی و فتاوی بزازیې ته په حواله کولو سره دغه الفاظ را اخلي: من قال انّ ارواح المشایخ حاضرة تعلم یکفر.

تر دې دلائلو لږ وروسته و بحرالرائق ته په حواله سره زیاتوي: **و منها ان ظنّ انّ المیّت یتصرف الامور دون الله تعالی و اعتقاده ذلک کفر.**

فتاوی قاضی خان او د فقهې نور کتابونه هغه سړی کافر بولي چې په نکاح کې الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ شاهدان جوړ کړي، ځکه چې دغه سړي جناب رسول الله ﷺ عالم الغیب وګڼي، چې دا راز عقیده د کفر ده.

**(احسن الفتاوی جلد اول صفحه ۳۶)**

## بیعت مقصود نه دی، اصلاح مقصود ده:

**پوښتنه**: که یو سړی په خپل ټول ژوند کې د هیچا مرید نه شو، او په دغه حالت کې مړ شو، نو آیا دغه سړی ګناه کاره دی او که نه؟

**جواب**: وروره! بیعت مقصود نه دی، اصل مقصود اصلاح ده، په هر صورت چې دغه مقصود لاسته راځي هغه صحیح دی، علماوو د خلکو د اصلاح لپاره د یو کامل شیخ مرید کېدل هم د دغه مقصود په لاسته راوستلو کې فائده منه ګڼلې ده، نو که یو سړی بې له بیعته د خپل ځان اصلاح وکړي، نو بس دی پخپل مقصد کې بریالی شو او که یو څوک د یو کامل سړي بیعت هم وکړي مګر پخپل ځان کې اصلاح رانه ولي نو دغه سړی ناکامه دی. او بیعت د ده لپاره کومه ګټه نه رسوي.

**(احسن الفتاوی جلد اول صفحه ۵۴۵)**



## د کامل شیخ پېژندل او د هغه علامات:

**پوښتنه**: د کامل شیخ علامات څه شی دي، په څه شي کامل شیخ پېژندل کېدای شي؟ آیا د شیخ او مریدانو لپاره د شریعت اتباع ضروري ده او آیا پر شریعت د تګ کولو څخه ماسېوا هم معرفت حاصلېدای شي؟

آیا د باطن اصلاح او د نفس تزکیه د شریعت د اتباع څخه ماسېوا نه شي حاصلېدای او آیا دغه دواړه شیان د شریعت پر اتباع او پر شریعت باندې پر پوره پوره عمل کولو باندې موقوف دي او که نه. او که یو څوک دا وایي چې شریعت او معرفت دوه جلا شیان دي، نو د دا ډول سړي په باره کې د شریعت څه فیصله ده؟

**جواب**: د کامل شیخ علامات په لاندې ډول دي

۱- دغه سړی به د ژوند په هره څانګه او هره شعبه کې د شریعت پوره پوره تابع او په پوره توګه به متبع سنت وي او خپلو متعلقینو او مریدانو ته به هم په هره معامله کې د پوره پرهېزګارۍ او د سنت د اتباع تلقین او تاکید ورکوي.

۲- د امیرانو او غنیانو پر ځای به صالحان او علماء حق دده و طرفته زیاته توجه لري.

۳- دده سره په ناستې سره به د الله ﷻ یاد، د آخرت فکر او د دنیا سره بې رغبتي پیدا کیږي.

د شریعت د اتباع څخه ماسېوا د نفس تزکیه او د باطن اصلاح، هیڅکله او هیڅکله. په هیڅ صورت هم ممکنه نه ده لکه الله ﷻ چې فرمایلي دي:

**قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ وَ اللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ. (سورة آل عمران آیت ۳۱)**

**ترجمه**: ووایه (اې محمده! دوی ته) که چیرې یاست تاسې چې محبت کوئ د الله سره نو متابعت وکړئ زما چې محبت به وکړي الله له تاسې سره او مغفرت به وکړي تاسې ته د گناهونو ستاسې او الله مغفرت کوونکی دی او ډېر رحم والا دی.

او همدارنگه الله ﷻ فرمایلي دي:

**وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِيْ مُسْتَقِيْمًا فَاتَّبِعُوْهُ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيْلِهٖ.** (**سورة الانعام آیت ۱۵۳**)

**ترجمه**: په تحقیق سره دغه لاره زما ده برابره نو متابعت وکړئ تاسې ددغې لارې او مه کوئ متابعت د نورو لارو (که مو د الله ﷻ د لارې څخه ماسېوا د نورو لارو مطابعت وکړ) نو تار په تار به کړي دغه متابعت تاسې له لارې سمې د الله ﷻ څخه.

پاته شو ددې پوښتنې جواب چې هغه سړی چې معرفت او طریقت د شریعت څخه جلا شی بولي، باید ووایم چې داډول سړی ملحد، بې دینه او زندیق دی، پر اسلامي حکومت دا لازمه ده چې ددغه سړي د قتل حکم وکړي. فقط والله تعالی اعلم. (**احسن الفتاوی جلد ۲ صفحه ۵۴۹**)

کوم سړی چې معر فت او طریقت د شریعت څخه جلا شی بولي ددې نتیجه دا راوزي چې دغه سړی به یوه غټه گناه کوي خو چې ته ورته ووایې چې دغه کار خو په شریعت کې منع دی نو دی به ووایي چې دا کار که په شریعت کې منع دی نو په طریقت کې خو روا دی، او طریقت خو د شریعت څخه جلا شی دی، نو څوک چې دا ډول عقیده لري، دا خو کفر دی.



## شریعت، طریقت، حقیقت او معرفت:

**پوښتنه**: د تصوفو په اصطلاح کې د شریعت، طریقت، حقیقت او معرفت څخه مطلب څه شی دی، آیا دغه شیان د شریعت څخه جلا شیان دي؟

**جواب**: وروره! شریعت د ظاهري او باطني احکامو مجموعه ده، یا په بل عبارت شریعت د ظاهري او باطني احکامود مجموعې نوم دی.

او طریقت صرف باطني احکاموته ویل کیږي، نو له دې وجې څخه طریقت د شریعت څخه جلا شی نه دی، بلکې طریقت د شریعت یوه څانگه یا یوه شعبه ده. دا چې حقیقت څه شی دی، باید ووایم چې د شریعت د ټولو احکامو که ظاهري وي او که باطني د کامل اتباع په وخت کې د ځینو تشریعیه او تکوینیه حقائقو انکشاف کیږي، دې ته حقیقت ویل کیږي.

د شریعت د اتباع او د علومو د انکشاف په وجه سره د الله ﷻ په معرفت او د هغه سره په محبت کې زیاتوب راځي، دې ته معرفت ویل کیږي. الله ﷻ دې موږ ته خپل معرفت او محبت را نصیب کړي. آمین فقط والله تعالی اعلم

(**احسن الفتاوی جلد ۲ صفحه ۵۵۰**)

## د تصوف تعریف

**پوښتنه**: د تصوف تعریف څه شی دی؟

**جواب**: تصوف نوم دی باطن د رزائلو څخه د خالي کولو او فضائلو ته د اراسته کولو، چې ددې کار په کېدلو سره توجه الی الله پیدا کیږي

(**بوادر النوادر صفحه ۷۸**)

په اصطلاح او په عرف کې تصوف د هغه علم نوم دی چې پر هغه په عمل کولو سره د باطن هغه صفايي لاسته راتلای شي چې د هغه په وجه سره انسان د لوی خدای ﷻ په دربار کې مقبول او صاحب، مدارج او مقام گرځي.

**(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۱۵۷)**

په لنډه توگه بايد ووايم چې تصوف د ظاهر او باطن د اصلاح نوم دی.

**(التبليغ وعظ کساء النساء صفحه ۸۱)**

او صوفي بيا حکيم الامت اشرف علی تهانوي رحمه الله په دې ټکو سره موږ ته راپېژني: صوفي زما په نزد باعمله عالم ته ويل کيږي، دا د خلکو کار دی چې په دې کې يې کوم کوم شرطونه اينبي دي (مگر هغه زما په نزد صحيح نه دي).

**(مجالس حکيم الامت صفحه ۲۷۸)**

## عارف چاته ويل کيږي:

په اصطلاح د اهل عرفان کی عارف هغه چاته ويل کيږي چې د حق تعالی ﷻ عبادت په دې وجه کوي چې دی د عبادت مستحق بولي، نه د دې په وجه چې د جنت تر نعمتونو ورسيږي يا د عذابه خلاص شي. **(فرهنگ عميد)**

## د علامه شامي رحمه الله له خولې د علم تصوف تعريف:

لومړی بايد دا خبره روښانه شي چې علم تصوف څه شی دی؟ بايد ووايم چې په دې هکله علامه شامي رحمه الله ښه مانع او جامع تعريف کړی دی او داسې يې ليکلي دي: هو علم يعرف به انواع الفضائل وکيفية اکتسابها، وانواع الرذائل وکيفية اجتنابها. **(ردالمحتار جلد اول صفحه ۴۰)**



يعني تصوف هغه علم دی چې د هغه په حاصلولو سره د ښو اخلاقو ډولونه او د هغو د حاصلولو لارې چارې او همدارنگه د رذيله اخلاقو ډولونه او د هغو څخه د ځان ساتلو طريقې او لارې چارې په معلوميږي.

## بې له تصوفه د فقهي تعارف او پېژندل يوه بې معنی خبره ده:

دا چې تصوف هم د دين يوه داسې اهمه او ضروري څانگه ده لکه فقه او د دواړو په منځ کې ډېر ژور تړاؤ هم شته په دې معنی چې پر فقه باندې عمل بې له تصوفو او پر تصوفو باندې عمل بې له فقهي امکان نه لري او بې له تصوفو د فقهي تعارف او پېژندل په حقيقت کې يوه بې معنی خبره ده.

لږ وروسته به دا خبره درته راشي چې صرف د کتابونو ويلو نوم فقه نه ده، او نه د کتابونو په ويلو سره سړی مولوي کيږي، چې د ټولې دنيا کتابونه يې ويلي وي. خو چې متقي او پرهېزگاره نه وي، دغه سړی نه فقيه دی او نه مولوي ورته ويل کيږي، همدارنگه که يو سړی د فقهي علم ولري او متقي هم وي، خو خدای مه کړه که يو وخت دغه سړي سمه لاره غلطه کړه او پر بله لاره روان شو، بس په همدې ورځ دی د مولوي توب څخه وزي، که څه هم چې هرڅومره ډېر کتابونه به يې ويلي وي.

بايد ووايم چې د تصوف د علم څو نومونه دي چې: علم القلب، علم الاخلاق، احسان، سلوک او طريقت يې ديادوني وړ دي، په حقيقت کې د يوه شي دا ټوله مختلف نومونه دي، په قرآن او په سنت کې ډېر ځله د دې لپاره د "احسان" لفظ استعمال شوی دی، مگر زموږ په زمانه کې د دې لپاره د "تصوف" لفظ ډېر مشهوره دی، په هرحال په حقيقت کې دا ټوله د يوه شي مختلف نومونه دي، په دې

معنی چي لکه څنګه چي زموږ ډېر اعمال د ظاهري اعضاوو سره تعلق لري، همدارنګه ډېر اعمال مو بيا د زړه سره تعلق لري چي هغوی ته "اعمال باطنه" ويل کيږي، نو لکه څنګه چي زموږ ظاهري افعال د شريعت په نظر کي ځيني ښه، فرض او واجب دي او ځيني بيا خراب، حرام او مکروه دي ، همدا ډول باطني اعمال مو هم د قرآن او حديث په نظر کي ځيني ښه، فرض او واجب دي لکه تقوی، د اللهﷻ او د هغه د مخلوق سره مينه او محبت، اخلاص، توکل، صبروشکر، تواضع، خشوع، قناعت، حلم، سخاوت، حياء، زړه سوی او رحم دلي ، ښه وينا او داسي نور ډېر شيان دي چي د قرآن او سنت په رڼا کي فرض او واجب دي، دغو باطني پسنديده او ښو اخلاقو ته "فضائل" او "اخلاق حميده" ويل کيږي.

ددې برعکس ځيني باطني اعمال بيا بد او حرام دي لکه تکبر، عجب، غرور، رياء، حب مال، حب جاه، بخل، بزدلي، لالچ او طمع، دښمني، حسد ، کينه، سنګدلي، بې ځايه يا تر اندازې زياته غصه او داسي نور ډېر بې خونده او بې غيرته شيان دي چي دې ته بيا "رذائل" يا اخلاق رذيله ويل کيږي ددغو خبرو تفصيل د ردالمحتار د اول جلد په ۴۰ صفحه کي راغلی دی.

د فضائلو او رذائلو ټوله تعلق د زړه د احوالو او د باطني کيفيتونو سره دی، مګر که سړی لږ فکر وکړي نو دا خبره ډېره په اسانه توګه ورته ښکاره کيږي چي زموږ دغه قلبي احوال او باطني کيفيتونه په حقيقت کي زموږ د ټولو ظاهري افعالو بنياد او اساس دی، د ظاهري اعضاوو څخه چي موږ کوم ښه يا بد کارونه کوو، دا په حقيقت کي زموږ د باطني اعمالو "يعني فضائلو او رذائلو" نتيجه ده، په دې هکله پوره بحث زماد ابوالمختار په "کتاب الاخلاق" نومي کتاب کي کتلای شئ ،هلته به داهم وګورئ چي احسان او نيکي کول فرض دی ځکه چي دا د خدایﷻ امر دی.



## علم تصوف هم د فقهي د علم په ډول فرض عين دی:

لکه څه ډول چي پر هر نارينه او ښځي د خپلو خپلو حالاتو او مشاغلو تر حده پوري د فقهي مسائل زده کول فرض دي ، مګر د ټولي فقهي په مسائلو کي بصيرت او مهارت پيدا کول او ځان مفتي جوړول پر ټولو فرض عين نه دي، بلکي فرض کفايي دي، په دې معنی که چيري په يوه سيمه کي يو داسي سړی يا ښځه وجود ونه لري چي نور خلک ورته راشي او شرعي مسائل ځيني وپوښتي، نو ددې سيمي د ټولو خلکو (که نر دي او که ښځي) غاړي بندي دي او ټوله د لوی خدایﷻ په دربار کي په دې سره مسئول دي.

د تصوفو د علم هم همدا حال دی په دې معنی که چيري اخلاق حميده په يو چا کي موجود نه وي، د هغو حاصلول او کوم بې خونده خويونه او رذائل چي د يو چا په نفس کي پټېدای شي د هغو څخه ځان ساتل د تصوفو پر څومره علم چي موقوف دي د هغومره اندازې علم حاصلول فرض عين دي او په ټوله علم تصوف کي بصيرت او مهارت پيدا کول چي د نورو خلکو ښه برابره تربيه هم وکړای شي فرض کفايي دي يعني د اخلاقو د پاکوالي او تزکيې کار د ضرورت مطابق د هر مسلمان پر غاړه که نارينه وي او ښځه فرض عين دی او په دې هکله دومره علم حاصلول چي د نورو خلکو ښه تربيه وکړای شي فرض کفايي دی او که په يوه سيمه کي داسي د اخلاقو د علم ماهر څوک وجود ونه لري چي د ځان سره سره د نورو خلکو د اخلاقو تزکيه هم وکړي، په دې سره د ټوله سيمي او ټوله ښار خلک ګناه کاره دي.

**(دغه بحث د ردالمحتار د لومړي جلد په ۴۰ صفحه او د تفسير معارف القرآن د سورت توبه تر ۱۲۲ آيت لاندي هم کتلای شئ).**

# د تفويض او عشق تعريف

**پوښتنه**: د تفويض او عشق تعريف څه شی دی؟

**جواب**: عشق د ايمان د لوازمو څخه دی، د عشق حقيقت تفويض دی، چې خپل ځان والله ﷻ ته وسپاري څه ډول چې غواړي په ما کې تصرف وکړي تکوينًا هم او تشريعًا هم، او هم په هر حال کې راضي شي، همدغه د تفويض حقيقت دی (**تجديد تصوف صفحه ۱۳۶**)

## حقيقي اوربښتنی تصوف د عشق، مينې او محبت يو تل پاته نور او يو ستر قوت دی چې د بنده په زړه کې پيدا کيږي:

حقيقي صوفي هغه څوک دی چې دی پخپل زړه کې د خپل خدای او د هغه د مخلوق سره مينه غښتلی کړی، او د عشق او اخلاص وقوت ته زور ور په برخه کړی، زما په نظر تصوف د مينې او محبت يو تل پاته نور دی، چې د بنده په زړه کې پيدا کيږي او بنده خپله رضاء د خپل خالق په رضا کې فنا کوي، ځکه چې کوم څوک چې د عشق او محبت ولوړ مقام ته پورته شي، د هغه څخه نور خپل ځان ورک شي او خپله رضاء ترک کړي لکه حضرت عبدالرحمن بابا رحمه الله چې د عاشق کېدلو څخه وروسته فرمايي:

چې مې مينه خدای په تا باندې پيدا کړه — ترکه ما په هغه ورځ خپله رضا کړه

حضرت عبدالرحمن بابا فرمايي د عقل له رويه و اسمان ته د انسان خاته



بيخي گران دي، مگر څوک چې عاشق وي هغه ته اسمان لا څه، بلکې د عرش ختل لا بيخي ورته اسانه دي:

و اسمان ته لاس د عقل نه رسيږي
دا خو عشق دی چې په عرش کرسی قدم ږدي

د چا په زړه کې چې د عشق قوت وده وکړي، هغه تر هر چا ښاغلی دی او رياکاره زاهد خو يې د پښو وگرځ ته نه شي رسېدای، څوک چې د عشق منصب تر لاسه کړي هغه نه يوازې تر خپل خدای ځاريږي، بلکې د هغه تر مخلوق هم خپل سر قربانوي لکه عبدالرحمن بابا رحمه الله چې د عاشقانو خوی بيانوي اوځه دا راز فرمايي:

عاشقان د يار تر سپيو هم ځاريږي — گنه ما د رقيبانو څه پرواکړه

په بل ځای کې بيا حضرت عبدالرحمن بابا رحمه الله د سالم او عاشق زړه خواص بيانوي او دا راز فرمايي:

هغه زړه چې عرش الله دی گوره کوم دی
څو دي توان شي د جمله زړونو خدمت کړه

## د نيک عمل ضرورت:

دا چې نيک عمل ته څومره ضرورت دی، په دې هکله عبدالرحمن بابا رحمه الله ډېرې ويناوې کړې دي، او د خلکو پام يې دې خبرې ته را اړولی دی چې بايد د اخرت تر راتلو مخکې د اخرت په فکر کې ډوب شئ او د هغه گران سفر لپاره ښه کافي تياري ونيسئ، ځکه چې دا د عاقلانو او هوښيارانو خلکو کار دی، که دې داسې وکړل نو وروسته د سفر و نيکو پايلو ته سترگې په لاره شه او د جنت اميد پيدا کړه:

باړه وتړه هاله کښت ؤ زراعت کړه — تقوی دار شه هاله طمع د جنت کړه
عاقلان په وړاندې ځي په وروستو گوري — په دنيا کې سر انجام د اخرت کړه

حضرت عبدالرحمن بابا رحمه الله خلکو ته دا خبره ورفکر کوي چي په هغه وخت کي نېک عملونه نه شي کېدای چي خبره ګور ته نژدې شي يعني د همدا اوسه څخه بايد په نېکو عملونو پيل وکړل شي ځکه چي د پيري او سپين ږيرتوب په وخت کي نېک عملونه او د بندګانو خدمت ډېر مشکل دی، بس د همدا اوسه څخه پايڅې وهمدې کار ته را ونغاړه:

سم دلاسه کار هر ګوره ډېر مشکل دی — څو لا نه يې غريب زېرمه د غربت کړه
چي نور خلک ملامت دربانـدې وايي — لا پخوا ترخلکو خپل ځان ملامت کـړه
چي عقبا ته د دنيا پـه اجـر مومـې — خـو همدا عمارت هلتـه عمارت کړه
څـو بـه ګورې دقيامت ؤ ورځو شپو تـه — خوهمداجهان په ځان باندي قيامت کړه

حضرت عبدالرحمن بابا رحمه الله خلکو ته وايي چي مخکي د اخرت تـر حساب او کتاب د خپل ځان لپاره يو ترازو پيدا کړئ او خپل ټوله عملونه په وتلئ:

چي نيـکي بدي په تله کي تـلل شـي — خـود پخپلـه تلـه واخلـه عدالت کـړه

وروسته خلکو ته د دوی د فکر د اصلاح لاره ورښيي او ورتـه وايي چي دا فکر مو اصلاح کړئ چي د يوه زره نېک عمل څخه مو توبه کښلې ده اخلاص ، مينه او محبت خو بيخي پېژنئ لا هم نه، مګر اميدونه مو تر غرونو غټ دي:

دابه نه شي چي ستاخټ اودحق مخ وي — که حق غواړې ته هم مخ په حقيقت کړه
هغه زړه چي عرش الله دی ګوره کوم دی — څودي توان شي دجمله زړونوخدمت کړه
وړاندني هم واړه ستا پـه خـير سړي وو — ته هم پاځه د هغو په خيرهمت کـړه
د دنيا چـاري هـمـه واړه فـانـي دي — باري پورته شه يوبل رنګه حکمت کړه

حضرت عبدالرحمن بابا رحمه الله دا کار هم ډېر غلط بولي چي سړی پخپله په مردارو اوبو کي د سره تر نوکه پټ وي مګر بل ته وايي پام کوه چي بد کار ونه کړې، دی مبارک خو ځکه دا کار ښه نه بولي چي د داسي سړي د نصيحت اثر پر



اوريدونکي نه لويږي ، نو ځکه کنايتًا دا خبره ځان ته منسوبوي او داسي فرمايي:

ای رحمانه اول ته نصيحت واخلـه — دغـه پســه بيا وبل تـه نصيحت کړه

## د استدراج، کشف او کرامت تعريف:

کرامت هغه کار ته ويل کيږي چي د جناب رسول الله ﷺ د يو کامل متبع او پوره پرهېز ګاره څخه صادر شي، او دغه کار د عادت د قانون څخه خارج او د باندې وي، نو که چيرې دغه کار د عادت خلاف نه وي نو دې ته خو کرامت نه ويل کيږي، او يا که چيري د هغه چا څخه چي خلاف عادت کار ځينې صادر شوی وي مګر د نبي متبع نه وي، نو دا هم کرامت نه دی، لکه د جوګيانو، جادوګرانو او داسې نورو خلکو څخه چي کله ناکله دا ډول د عادت خلاف شيان صادريږي. مګر که چيري يو چا د اتباع دعوه خو يې درلوده، مګر پـه حقيقت کې متبع او پرهېزګاره نه ؤ، لکه اهل بدعت يا فاسق او فاجر دا هم کرامت نه دی، بلکې استدراج دی، نونتيجه داشوه چي کرامت هغه کار ته ويل کيږي چي د يو کامل التقوی شخص څخه صادر شوی وي، يعني بدعتي او نافرمانه نه وي. (**تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۱۵۸**)

## د زُهد تعريف:

**پوښتنه** : زهد څه شي ته ويل کيږي؟

**جواب**: زهد د خوندونو د پرېښودلو نوم نه دی محض تقليل لذات کافي دی يعني په لذتونو کې غوټه کېدل ښه نه دي چي د شپې او د ورځې په دې فکر کې وي چي څه شی به پخومه او څه شی به خورمه او څه شی بـه اغوندمه، د ښوښو خوراکونو او ښو ښو جامو پـه فکر کې غرق کېدل او ټول عمر د دغو

شیانو په لاسته راوستلو کې فکر وهل البته د زهد سره منافي او ضد دي، مګر که چیرې بلاتکلف او بلا اهتمام خاص خاص خوندونه لاسته راشي، نو دا خو د حق تعالی نعمتونه دي، ددې په لاس ته راتلو کې شکر کښل په کار دی (**تجدید تصوّف صفحه ۹۱**)

## د حرص تعریف:

**پوښتنه**: حرص څه شي ته ویل کیږي؟

**جواب**: د حرص معنی ده: د نه پیدا کېدلو په صورت کې تلاښ کول او د زړه مدار همداسې جوړول، که چیرې دغه شی په سړي کې موجود شي، نو دا واقعي یو غټ مرض دی (**تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۱۵۸**)

حضرت عبد الرحمن بابا رحمه الله هغو خلکو ته ګوته نیسي چې پخپله ګټه او تاوان نه پوهیږي، دوی پر دنیا باندي خپل دین او ایمان ټوله قربانوي، ددې پر ځای چې د الله جل جلاله پر نعمتونو شکر وکاږي پر منکره کیږي او په شکایت لاس پوري کوي

**بدلوې په دنیا دین ؤ ایمان ولي    نه پوهیږې پخپل سود ؤ په زیان ولي**

**همېشه په خای د شکر شکایت کړې    منکرېږې په عطاء د سبحان ولي**

وروسته دی مبارک پر داسي خلکو ډېر افسوس ښکاره کوي چې خپل قیمتي ګوهر یعني د خپلو سترګو قیمتي اوښکي بې ځایه تویوي یعني تل یې د مال او دولت د لاسته راتللو په وجه سترګي سرې او په اوښکو لندې وي:

**مدام اوښکي تویوې د رزق له غمه    در ګوهر پر بها پلورې ارزان ولي**



د دنیا لپاره خو دي شپه او ورځ پر ځان یوه کړې ده ، مګر چې خبره د اخرت سامان او تیارۍ ته راشي، ته سترګي پر پټي کړې او ړوند ؤ کوڼ شې:

**چې په هر ببګا سامان د هر سبا کړې    کور ؤ کر شوې د محشر په سامان ولي**

ته نه یې خبر چې هیڅ نبات او وابښه د خپل اصلي ځایه څخه نه ښوري، او پر خپل ځای اوبه او هر څه ور رسیږي، مګر ته دې خپل ځان ته وګوره چې د مال او دولت لپاره دې هر څه پرې ایښې دي او نه دا ګورې چې دا حرام دي که حلال، بس په څه ډول چې لاس ته درځي صحیح یې بولې ، ستا یې په دې ښه سر خلاص چې بې ځایه کوښښ کومه ګټه نه لري .دا لکه څوک چې اسمان په ډبرو ولي، نو ته فکر وکړه بې له دې چې ډبره دده پر سر راولوېږي او سر یې ورمات کړي. نور به څه ګټه وکړي ، دی مبارک د داسې کم عقل سړي لپاره مرګ مناسب بولي

چې په هر ببګاه سامان د هر سبا کړې    کور ؤ کر شوې د محشر په سامان ولي

هیڅ ګیاه له ځایه نه خوځي نم مومې    ته د رزق په طلب مرې جهان ولي

چې پخوا تر قضا خپله رضا غواړې    بېهوده په لوټو ولي آسمان ولي

په ژوند ومره چې دمرګ له غمه خلاص شې    آسان کاردي کړې ځان باندي ګران ولي

همدارنګه حضرت عبد الرحمن بابا رحمه الله فرمایي

خدای د رزق په زېرمه، مه هېروه کلک شه    تر سړي د سړي رزق دی مقدم

که ګنې چې په حرص څه زیات شي    زیات به نه شي د یوې ستني تر سیم

ډېر هوا ؤ حرص مه کوه خدای یاد کړه    دی کافي دی د عرب ؤ د عجم

په تا فرض عبادت د خپل ښتن دی    نه لښکرې خزانې ملک ؤ حشم

نوک روټی یوه شړۍ درلره بس ده    نور همه واړه اسراف دی مسلم

له خوراکه غرض قوت لایموت دی    نه چې غوښې غوړي وریجې یا غنم

له پوښاکه غرض خپل سر پټول دي — نـه اطلـس ؤ سـقلات تـاج ؤ علـم
که حرص دربانديٍ زورشي مرگ درياد کړه — دا عـلاج دی دغـه رنـخ لـره محکـم
د لحد د تاريکی علاج بـه څـه کړې — چي ته دلته کي وېربړې پـه تـور تـم
غفلت هيڅ مناسب نه دی د سپين ږيرو — خوب روا نه دی په وخت د صبحدم

## د تکبر تعریف:

**پوښتنه**: د تکبر او ريا تعريف څه شی دی؟

**جواب**: خپل ځان د يو کمال په اعتبار سره دومره لوی گڼل چي دغه وخت يې صرف و خپل کمال او د بل ونقص ته التفات او نظر وي، يا په بل عبارت خپل ځان په دي ډول لوی گڼل چي د بل حقارت پکښې وشي، نو په دي کې دوه جزء شوه يو خو ځان لوی گڼل او بل نورو ته په حقارت کتل، دغه سړی په دي نه پوهيږي او نه يې ودې خبري ته ذهن ځي چي هغه سړی به شايد د خپل کمال په سبب په مجموعي ډول سره تر ما د لوړي درجي خاوند وي، بايد ووايم چي دغه د متکبر حقيقت دی چي حرام او ډېره ستره گناه ده (امداد الفتاوی جلد۵ صفحه ۱۹۲)

## د تواضع تعریف:

**پوښتنه**: د تواضع معنی څه شی ده؟

**جواب**: د تواضع معنی داده سره له دې چي دی څومره صفتونه لري، د نورو په مخکې دا ډول خپل ځان کوچنی گڼل چي تل يې د خپلو نقصاناتو او د بل و کمالاتو ته نظر وي او په ذهن کي يې دا خبره وي چي شايد زه به د خپلو



نقصانونو په سبب سره په مجموعي ډول بانديٍ تر ده کم يم
(امداد الفتاوی جلد۵ صفحه ۱۹۲)

د تواضع حقيقت دا دی چي خپل ځان لا شی او هيڅ وگڼي. او پر نورو ځان لوړ ونه گڼي، نو که چيرې د يو چا تل و خپلو نقصاناتو ته نظر وي، نو شايد چي ددې په اصلاح کې بريالیتوب تر لاسه کړي.

د تواضع معنی دا نه ده چي الله ﷻ چي کوم نعمتونه ورکړی دي. هغه د خپل ځان څخه نفيٍ کړي، بلکې ددې معنی دا ده چي دغه نعمتونه خپل کمال ونه گڼي صرف د خدای ﷻ فضل او رحمت يې وبولي (انفاس عيسی صفحه ۲۷۳)

حضرت عبد الرحمن بابا رحمه الله د هغه چا مقام ډېر لوړ گڼي چي د تواضع خوی يې خپل کړی وي، او د انگورو د تاک مثال ورکوي چي يو وخت د ډېري عاجزۍ او تواضع څخه پر مځکه غزيږي، مگر لږ موده وروسته دومره بريالیتوب تر لاسه کوي چي تر هري درختي يې ميوه خوريږي اوتر ډېرو درختو يې سر پورته کيږي

بالادست به شي هالـه پـه نـورو ونـو — که تعليم د زير دستی واخلي لـه تاکـه

## د عجب تعریف او د حب جاه تعریف:

**پوښتنه**: عجب څه شي ته ويل کيږي؟

**جواب**: په عجب کې صرف يو قيد کم دی يعني په عجب کې بل خوک کوچني، حقير او خوار نه گڼي، صرف خپل ځان لوی بولي (تجديد تصوف)

**پوښتنه**: حب جاه څه شي ته ويل کيږي؟

**جواب**: د حب جاه حاصل دا دی لکه دی چې خپل ځان په خپل زړه کې ځومره لوی ګڼي، نو په دې هکله هم دا کوښښ کوي، چې باید نور خلک هم ما ته په لوی والي قائل شي او تعظیم، اطاعت او خدمت مې وکړي، د دې سرچینه هم تکبر او عجب ده. (**تجدید تصوف**)

## د ریاکارۍ تعریف:

**پوښتنه**: ریا کاري څه شي ته ویل کیږي؟

**جواب**: د ریا حاصل دا دی چې د یو دیني یا د نیوي عمل څخه د خلکو په نظر کې د خپل ځان د لویوالي د لاسته راوستلو لپاره یوه ذریعه جوړه کړي. دا هم د کبر او عجب څخه پیدا کیږي (**تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۱۶۰**)

## د اخلاص تعریف:

**پوښتنه**: اخلاص څه شي ته ویل کیږي؟

**جواب**: اخلاص په لغت کې خالص کولو ته ویل کیږي. مثلاً خالص غوړي هغو غوړو ته ویل کیږي چې بل شی نه وي په ګډ شوي، نو همدارنګه په عبادت کې د اخلاص معنی هم دا ده چې عبادت باید د غیر د عبادت څخه خالي وي یعني په دې کې داسې غرض نه وي ګډ شوی چې د هغه حاصلول شرعًا مطلوب نه وي (**تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۱۶۱**)

حضرت عبدالرحمن بابا رحمه‌الله خو اخلاص ته دومره لوړ مقام ورکوي، تر دې



چې ټول جهان د اخلاص غلام بولي:

ګوره څه بلند مقام دی د اخلاص    چې جهان واړه غلام دی د اخلاص

دی مبارک دا خبره نه مني چې د اخلاص په مخ کې دې کله هم غرونه پیدا شي او دا سفر دې د خنډ سره مخامخ کړي، همدارنګه دی هغه اسلام نه بولي چې د اخلاص په جامه نه وي پوښلی:

که له ځمکې واسمان ته خاته ګران دي    دا سفر په یوه ګام دی د اخلاص

چې خبر کا مخلصان له علم غیبه    دا همه واړه الهام دی د اخلاص

د رواج ؤ رسم عمر مدام نه وي    لکه عمر چې مدام دی د اخلاص

بې اخلاصه حلاوت د اسلام نشته    که اسلام دی خو اسلام دی د اخلاص

څه عجب دی که مستان وي ترې چاپېره    هر ساقي څخه چې جام دی د اخلاص

څه عجب دی که همای په دام کې نښلي    هر صیاد څخه چې دام دی د اخلاص

تر دې وروسته دی مبارک د خلکو پام دې خبرې ته را اړوي چې په دې دنیا کې اخلاص په کار دی، راشئ چې د همدا اوسه څخه لا د اخلاص خوی خپل کړو. پس له مرګه اخلاص نتیجه نه ورکوي په اخیره کې د خپل کلام د شیرین والي وجه هم همدا اخلاص ګڼي:

پس له مرګه به دا مهر ؤ اخلاص نه وي    که اخلاص کړې نن هنګام دی د اخلاص

د رحمن کلام په دا سبب شیرین دی    چې یې هر کلام، کلام دی د اخلاص

## د فنا تعریف:

د فضولو تعلقاتو څخه راګرځېدلو ته فنا ویل کیږي، یعني په دنیا کې چې اوس سړی د کومو شیانو سره څومره تعلق او محبت لري هغومره نه درلودل

بلکې تر ټولو زیات تعلق د الله ﷻ سره درلودل، ددې دا مطلب نه دی چې مسلمان باید د دنیا د خوندونو او نعمتونو سره هیڅ تعلق او علاقه ونه لري، او نه د هیڅ شي سره مینه او محبت ولري، بلکې ددې مطلب دا دی چې مسلمان باید تر ټولو زیات د الله ﷻ سره تعلق او محبت ولري یعنې د الله ﷻ احکام تر ټولو شیانو لوړ وګڼي او ددې په مقابل کې هیڅ شي ته اهمیت ورنه کړي، همدغه د الله ﷻ سره تر هر څه زیاته مینه ده، دا لکه حضرت عبد الرحمن بابا رحمه الله چې هغه چا ته د اعتراض ګوته نیسي څوک چې د خدای ﷻ د احکامو او اوامرو په مقابل کې د بل شي سره زیاته مینه کوي او د خپل لوی خدای ﷻ او دده د مخلوق وپاکې مینې ته یې شا ورګرځولې وي. دی مبارک د داسې سړي مثال چې پخپل زړه کې غلطې مینې ننباسې د کعبې مثال ورکوي چې څوک بتان په ننباسي ځکه چې زړه د خدای ﷻ د مینې کور دی او هغه څوک چې زړه د نفس او شیطان په پیروي ځینې ولاړ شي د هغه چا سره برابروي چې د خنزیر او خبیث په لاس کې قرآن ورکوي. دی مبارک وروسته فرمایي چې وخت ډېر قیمتي دی، پام کوه چې عبث درڅخه ولاړ نه شي

غیري مینې دي په زړه باندي انبار کړې — په کعبه کې ننباسې بتان ولې

زړه د نفس په پیروي درڅخه لاړ شه — د خبیث په لاس دي ورکړ قرآن ولې

چې یوسف د حبشي په بها مومې — د مطلوب په بها نه ښندې ځان ولې

بدله بدو پښېماني کاندي رحمانه — ته په خپلو بدو نه شوې پښېمان ولې

## د مولوي او د عالم تعریف:

**پوښتنه**: مولوي او عالم و څه شي ته ویل کیږي؟

**جواب**: مولوي هغه چا ته ویل کیږي څوک چې مولی والا وي یعنې علم دین هم



ولري، متقي او پرهېزګاره هم وي، د لوی خدای ﷻ څخه هم ډېر بېرېږي، د ښو اخلاقو څښتن هم وي، صرف د عربي ژبې په ویلو یا د کتابونو په زده کولو سره انسان نه مولوي کیږي

عالم ومتقي او پرهېزګاره سړي ته ویل کیږي ځکه چې په مولوي کې د مولی و طرف ته نسبت دی، نو څوګ چې مولی والا شو یعنې الله والا شو، نو په دغه وخت کې دغه سړی مولوي هم دی او د اتباع لائق هم دی خو په کومه ورځ که دغه سړي خپل رنګ بدل کړی او پر بله لاره روان شو، نو په هماغه وخت دی د مولوي توب څخه وځي، یعنې بیا دغه سړي ته مولوي نه ویل کیږي خدای دي وکړي چې د ټوله دنیا کتابونه به یې ویلي وي

(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۱۶۲)

## جهاد اکبر څه شی دی؟

**پوښتنه**: دا مشهوره خبره ده چې صوفیه کرام و مجاهده نفس ته جهاد اکبر وایي آیا د قرآن او حدیث څخه ددې یو ثبوت شته او که نه؟

**جواب**: قال رسول الله ﷺ اعدی عدوّ ک نفسک الّتی بین جنبیک اخرجه البیهقي. (کنوزالحقائق)

وقال ﷺ المجاهدمن جاهد نفسه، رواه الترمذی وصححه واخرج الدیلمی عن جابر رضی الله عنه قال قدم علی النبی ﷺ قوم غزاة فقال قدمتم خیر مقدم قدمتم من الجهاد الا صغرالی الجهادالاکبر مجاهدة العبد هواه

(کنز العمال) والیه اشار العارف الرومی رحمة الله علیه.

| |
|---|
| قد رجعنا من الجهاد الاصغریم |
| با نبی اندر جهاد اکبریم |

وروره ودي ليدل چي جناب رسول الله ﷺ وفرمايل: **المجاهد من جاهد نفسه،** يعني مجاهد هغه څوک دی چي د خپل نفس سره يي جهاد وکړ، نو د صوفيه کرامو دغه خبره چي مجاهده نفس ته جهاد اکبر وايي بالکل صحيح او د قرآن او حديث مطابق ده. ددغو دلائلو څخه ماسپوا هم دا خبره ښکاره ده چي د کفارو سره د جهاد څخه اصل مقصد د دين ساتنه ده، نه د خلکو مسلمانول نو ښکاره خبره ده چي دا خو پر مجاهده نفس او مخالفت هوا باندي موقوفه ده. فقط والله تعالی اعلم.

**(احسن الفتاوی جلد اول صفحه ۵۵۰)**

## دفاسق او گناه کاره سړي پر لاس بیعت کول:

**پوښتنه**: زموږ په سيمه کي دوه بزرگان دي چي دواړه ډېر مريدان هم لري، خو په دوی کي يو نه لمونځ کوي او نه روژه نيسي او شراب هم څښي، قمار هم کوي، تر دې چي نفقه يې هم پر شرعي طريقه برابره نه ده، او دوهم بزرگ چي کوم دی هغه لمونځ او روژه خو ټوله کوي، مگر ددې سره سره رنگارنگ بدعتونه هم ډېر کوي، نو آيا ددغو دوو خلکو پر لاس بيعت روا دی او که نه يعني ددغو دوو بزرگانو مريد کېدل روا دي او که نه؟

**جواب**: وروره تاسې عجيبه پوښتنه کړې ده، له يوې خوا دي دغو خلکو ته چي يو يې فاسق دی او بل يې بدعتي دی بزرگان ويلي دي او له بلې خوا ته په خپله



وايې چي يو لمونځ نه کوي، شراب او قمار هم کوي او نفقه يې لا هم سمه نه ده او دا بل چي دی لمونځ او روژه خو نيسي، مگر رنگارنگ بدعتونه کوي او بيا وايې چي ددغو خلکو سره بيعت جائز دی او که نه

لومړی بايد ته په دې خبره پوه شې چي لمونځ نه کول، روژه نه نيول، زکات نه ورکول او نور فرائض او شرعي احکام نه پر ځای کول، زنا کول، شراب څښل، قمار کول، چرس څکول، حرامه نفقه خوړل او داسې نور بد او ناروا کارونه کول ټول حرام، غټې او کبيره گناوې دي او دغه شيان حلال بلل کفر دی او د بدعت کارونه کول خو تر دې لا هم سخته گناه ده، ځکه چي د کفر او شرک څخه وروسته تر ټولو سخته گناه بدعت دی.

دوهم بايد ته دا الله ﷺ دوستان او د شيطان دوستان سره و پېژنې، دا بايد تاته معلومه شي چي د الله ﷺ دوستان څوک دي او د شيطان دوستان څوک دي او بل بايد د بيعت مقصود وپيژني چي د بيعت مقصود څه شی دی. دا خبره بايد تاته معلومه وي چي د بيعت مقصود اصلاح ده. مشائخو او علماوو و اصلاح ته د رسېدلو يوه لاره بيعت هم ښودلې ده. دا خبره د يادوني وړ ده چي بيعت په خپله مقصود نه دی، بلکې و مقصود ته د رسېدلو لپاره د نورولاروڅخه دا هم يوه لاره ده

نو دا چي شيخ په خپله فاسق او يا بدعتي وي، نو ته فکر وکړه تا به دغه سړی څه ډول وسمې او صحيحې لارې ته رهنمايي کړي، بې له دې چي ته هم ورسره فاسق، بدعتي او بې لارې شې بله به څه گټه ولري، د کفايت المفتي په قول د مريد کېدلو مطلب دا دی چي د يو بزرگ پر لاس دا معاهده وکړل شي چي زه به آينده گناه نه کوم او د تصفيه قلب لپاره به ستا په هدایاتو عمل کوم، د دغه کار نوم بيعت يا مريد کېدل دي **(کفايت المفتی جلد۲صفحه ۱۰۸)**

## پیر او شیخ باید عالم، متقي، متبع سنت او پابند شریعت وي:

پیر او شیخ باید عالم ،متقي، متبع سنت اوپابند شریعت وي لکه شرح عقاید چې لیکي: والولی هوالعارف بالله تعالی وصفاته حسب مایمکن المواظب علی الطاعات المجتنب عن المعاصی. ( **شرح عقاید صفحه ۱۴۵**)

په دې هکله کفایت المفتی پخپل دوهم جلد کې څه دا راز لیکي:

په عام ډول سره ډېر خلک د داسې پیرانو مریدان کیږي چې د هغوی کارونه صریحاً د شریعت خلاف وي مثلاً پیر صاحب لمونځ نه کوي ، د نشې شیان استعمالوي او همدا رنګه نور هم ډېر د شریعت خلاف حرکتونه کوي، خو خلک دوی ته ښه عقیده لري او مریدان کیږي یې، دغه سخته غلطي ده او د دغسې کسانو مریدان کېدل ناروا او نا جائز عمل دی، پیر باید عالم، متقي، متبع سنت او د شریعت پابند وي (**کفایت المفتی جلد ۲ صفحه ۱۰۹**)

## د توبې د بیعت مسنونه طریقه:

کفایت المفتی د توبې د بیعت مسنونه طریقه راښیي او داسې لیکي: د توبې د بیعت مسنونه طریقه دا ده چې مرشد د خلکو څخه پر دې خبره بیعت واخلي. چې دی به د ګناهونو څخه پرهېز کوي او ټوله شرعي احکام به پر ځای کوي. دا هم لازمي خبره ده چې مرشد به په خپله هم د نبوي سنت متبع وي او هیڅ کار به قصداً د سنت خلاف نه کوي، نو که چیرې پیري او مریدي پر دغو شرائطو برابره وه، خو صحیح او روا ده، او که تر دغه شرائطو وتلې وه،مثلاً مرشد په خپله پر شریعت



برابر نه ؤ یعني خلاف شرع کارونه یې کول، او مریدان یې هم پر شریعت د تللو او د سنت پر پیروی نه امر کول، او نه یې د ګناهونو څخه راګرځول، نو په دغه حالاتو کې بیعت او پیري او مریدي ناروا او ناجائز عمل دی

(**کفایت المفتی جلد ۲ صفحه ۱۰۵**)

همدا رنګه شرح عقاید لیکي:

والولی هوالعارف بالله تعالی حسب مایمکن المواظب علی الطاعات المجتنب عن المعاصی. (**شرح عقاید صفحه ۱۴۵**)

وفی شرحه النبراس حتی انه یخرج بالکبیرة واصرار الصغیرة عن الولایة. (**النبراس شرح شرح عقاید صفحه ۲۹۵**)

## آیا بیعت کول لازمي او ضروي دی؟

**پوښتنه**: اورېدلي مو دي چې د یو بزرګ یا شیخ پر لاس بیعت فرض عین دی، که یو چا په خپل ټول ژوند کې د یو مرشد سره بیعت ونه کړی، نو د دغه سړي خاتمه په خطر کې ده، آیا دغه خبره صحیح ده او که نه؟

**جواب**: وروره! تا چې څه اورېدلي دي غلط دي او اورېدلي دي. د یو مرشد سره بیعت کول نه فرض عین دی. نه فرض کفایي او نه هم واجب دی او نه بیعت کول اصل مقصود دی ، بلکې اصل مقصود چې اصلاح ده د هغه لپاره د نورو لارو څخه دا هم یوه لاره ده لکه احسن الفتاوی چې په خپل لومړي جلد کې فرمایي

**بیعت مقصود نه دی، اصل مقصود اصلاح ده، په هر صورت چې دغه مقصود لاسته راتلای شي هغه صحیح دی، علماوو د خلکو د**

اصلاح لپاره د یو کامل شیخ مرید کېدل ددغه مقصود په لاسته راوستلو کې فائده منه ګڼلي ده، نو که یو سړی بې له بیعته د ځان اصلاح وکړي، نو دی په خپل مقصد کې بریالی او کامیابه شو او که یو سړی د یو کامل سړي بیعت هم وکړي، مګر په خپل ځان کې اصلاح رانه ولي، نو بیا خو ناکامه دی، او بیعت هیڅ ګټه نه ده ورته رسولې.

**(احسن الفتاوی جلد اول صفحه ۵۴۵)**

همدارنګه کفایت المفتی په دې هکله څه دا راز لیکي:

لایلزم بیعة الرسمیة فی طریقة من طرق المشائخ نعم تستحب فمن اتی ووفی توفی اجرها ومن لم یات بها وسلک الطریق المستقیم اخذا من تاب والسنة و اداب السلف الصالحین لایخشی علیه سوء الخاتمه.

**(کفایت المفتی جلد ۲ صفحه ۱۰۷)**

**ترجمه**: د طریقت د مشائخو په مروجه سلسلو کې بیعت کول (شرعًا) لازم ی، هو! مستحب دی.

و کوم سړی چې بیعت اختیار کړي او کماحقه عمل په وکړي، نو ددې کار ب ورکول کیږي، او کوم سړی چې بیعت اختیار نه کړي، مګر پر قرآن نت او د سلف صالحینو د آدابو مطابق پر صراط مستقیم قدم کښېږدي ه سړي په هکله د سوء خاتمې هیڅ بېره نه شته.



## آیا په اسلام کې د دنیاوي عیش او ارام څخه منع راغلې ده؟

**پوښتنه**: آیا اسلام د دنیوي عیش او ارام څخه مسلمان راګرځوي او که نه؟

**جواب**: د دنیاوي عیش او ارام حاصلولو څخه اسلام منع نه ده کړې، اسلام صرف دا غواړي چې د شریعت موافق باید عیش او ارام وکړل شي.

**(کفایت المفتی جلد ۲ صفحه ۱۰۷)**

همدارنګه الله ﷻ په دې هکله دا راز فرمایي:

یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحَرِّمُوْا طَیِّبٰتِ مَآ اَحَلَّ اللّٰهُ لَکُمْ وَ لَا تَعْتَدُوْا اِنَّ اللّٰهَ لَا یُحِبُّ الْمُعْتَدِیْنَ. **(سورة المائدة آیت ۸۷)**

**ترجمه**: اې هغه کسانو چې ایمان بې راوړی دی یعني اې مؤمنانو مه حراموئ تاسې پاک لذیذ له هغو شیانو څخه چې حلال کړي دي الله ﷻ لپاره ستاسې او مه کوئ تېری تاسې (له حدودو د الله) بې شکه چې الله نه خوښوي تېرېدونکي له حدودو څخه.

## د عملیاتو، جادو، پیرانانو، نجومیانو او داسې نورو څخه د حاصل شوی علم شرعي درجه او د هغوی حکم:

حکیم الامت اشرف علی تهانوی رحمه الله په تحفة العلماء کې په دې اړوند داسې

لیکي په شریعت کې چې د کوم شي د اثبات لپاره کومې لارې ټاکل شوي دي، د هغو لارو څخه ماسېوا د نورو لارو په ذریعه ویو چا ته د یو شي نسبت کول او یا یو څوک په یو بدکار تورنول روا نه دي، نو دا چې په شریعت کې الهام، خوب او کشف معتبر او دلیل نه ګرځي، نو پر دې بناء باندې ددغو ذکر شوو لارو په وجه یو چا ته د غله نسبت کول یا یو څوک مجرم بلل حرام او سخته ګناه ده

نو کومې لارې چې د یو حکم د اثبات لپاره د شریعت له نظره معتبرې نه وي، د هغو لارو په سبب سره پر یو چاد غله یا داړه مار او یا داسې نورو شیانو حکم کول سخته ګناه ده، نو دا چې الهام، کشف او خوب د شریعت له نظره معتبر او حجت نه دی .نو ددې لارې پر یو چا د غله یا بل شي حکم کول سخته ګناه ده، همدارنګه د سحر. جادو او یا نجومیانو له لارې خو پر یو شي یقین کول، په خاصه توګه بیا د دوی د خبر په وجه یو څوک پر یو بد کار متهم او تورن کول خو دومره سخت حرام دی چې د مولانا اشرف علي تهانوي ﷫ په قول و کفر ته نژدې دی.

د داسې ضعیفو یا باطلو شیانو پر بنا یو چا ته د غله نسبت کول جائز نه دی، د مسلمانانو لپاره اصل مدار علم او عمل دی، نو تاسې فکر وکړئ شریعت چې دغه شیان حجت نه بولي تاسې یې د کومې لارې حجت بولئ

**(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۵۷)**

په سحر او جادو کې که چیرې کفریه کلمې وي مثلاً استعانت بکواکب یا داسې نور ... نو دا کفر دی، دا فرق نه کوي که چیرې په دې سره یو چا ته ضرر ور ورسوي او یا ګټه، او کومې کلمې چې مفهوم یې نه راوځي دا د کفر د احتمال په وجه واجب الاحتراز دي، دا حکم په ټولو تعویذونو او نقشونو او داسې نورو شیانو کې هم دی. **(بدائع صفحه ۷۱)**



## د خوب شرعي حکم:

خوب یا بې هوښې شرعي حجت نه دی. په دوی سره نه غیر ثابت. ثابتیږي او نه راجح مرجوح ګرځي او نه بیا مرجوح راجح ګرځي. ټوله احکام پر خپل حال پاتېږي . باید ووایم چې په مسائلو کې پر خوب باندې اعتماد روا نه دی خوبونو ته څه اعتبار دی. اول خو د خوب حجت کېدل غیر ثابت دي. بیا د هغو صحیح تعبیر په فکر کې راتلل ضروري نه دي خوب د هیڅ حالت علت نه دی د مولانا اشرف علي تهانوي ﷬ په قول خوب یو قسم علامت دی.او علامت کله صحیح خیږي او کله غلط. نو ددې وجې څخه دی چې د کوم شي علامت دی د هغه وحقیقت ته کتل په کار دي

**(افاضات جلد۹ صفحه ۲۰۸، ۲۱۰)**

## د الهام او کشف شرعي حکم:

مکاشفه په حجت او دلیل کې هیڅ درجه نه لري. خو دومره ده که مکاشفه د شریعت خلاف نه وي. نو که چیرې دغه کار پخپله صاحب د کشف یې عملي کړي او یا بل څوک دده اتباع وکړي څه پروا نه لري. روا دي. حضرت تهانوي د تحفة العلماء په دوهم جلد کې تر دې عنوان لاندې داسې لیکي ویل شوي دي چې د الهام په مخالفت سره د څه دنیایي مشکل د پېښېدو امکان ورته شته. مثلاً یا ناجوړه شي او یا بل آفت ورته راشي. همدا خبره په کشف کې هم ده . مګر په آخرت کې هیڅ مؤاخذه نه لري. ځکه چې الهام او کشف کوم شرعي حجت نه دی .نو له دې سببه ددوی مخالفت ګناه نه ده چې په آخرت کې

دي مؤاخذه ولري، او دا خو تاسي ته معلومه ده چې د وحې حکم د دوی څخه جلا دی ځکه چې د وحې په مخالفت سره په آخرت کې مؤاخذه شته

**(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۵۹)**

## کشف، الهام او بشارت څه شی دی؟

**پوښتنه**: کشف، الهام او بشارت څه شی دی او آیا د جناب رسول الله ﷺ څخه وروسته دا شیان ممکن دي او که نه؟

**جواب: د کشف معنیٰ ده**: د یوې خبرې او یا واقعې (پېښې) ښکاره کېدل

**د الهام معنیٰ ده**: په زړه کې د یوې خبرې راتلل

**او د بشارت معنیٰ ده**: زېری او خوشخبري لکه یو ښه خوب لیدل.

پاته شوه دا خبره چې آیا د جناب رسول الله ﷺ څخه وروسته دا شیان ممکن دي او که نه باید ووایم چې هو! د جناب رسول الله ﷺ څخه وروسته کشف، الهام او بشارت ټول ممکن دي، مګر شرعًا دغه شیان دلیل او حجت نه ګرځي او نه ددغو شیانو د قطعي او یقیني کېدو دعوه کېدای شي او نه چاته ددغو شیانو د منلو دعوت ورکول کېدای شي

**(فتاویٰ یوسفیه جلد اول صفحه۳۴)**



## کشف او الهام کېدای شي مګر شرعًا دلیل نه دی:

**پوښتنه**: که یو سړی دا دعوه وکړي چې ماته د کشف په ذریعه خدای ﷻ دا حکم وکړی چې فلاني سړي ته ولاړ شه او فلانی خبره ورته وکړه، نو ددغه سړي په باره کې شریعت څه حکم کوي؟

**جواب**: د نبي څخه ماسېوا ونورو خلکو ته هم کشف او الهام کېدای شي، مګر هغه هیڅ حجت او دلیل نه دی، او نه ددغو شیانو په ذریعه د یو شي حکم ثابتېږي، بلکې دا به د شریعت په ترازو تلل کېږي، که صحیح ؤ د منلو وړ دی او که غلط ؤ نو په هیڅ صورت د منلو وړ نه دی، دا هم په هغه صورت کې دی چې دغه سړی به د نبوي سنت متبع او د شریعت پابند وي او که د شریعت خلاف چلېدی، نو ددغه ډول سړي د کشف او الهام دعوه یو شیطاني مکر دی **(فتاویٰ یوسفیه جلد اول صفحه ۳۴)**

## آیا د حضرت عمرؓ د کشف قصه صحیح ده:

**پوښتنه**: د ډېرو عالمانو څخه مې اورېدلي دي چې یو وخت د اسلام دوهم خلیفه حضرت عمر فاروقؓ د جمعې خطبه ویله په دې وخت کې په شام کې دده فوځ د کافرانو سره جنګېدی، حضرت عمرؓ د خطبې په دوران کې د خپل فوځ مشر حضرت ساریهؓ ته وفرمایل چې ای ساریه غر سنبال کړه.

په دې وخت کې حضرت ساریه ﷺ چې په شام کې د جنګ په دوران کې موجود ؤ او د عسکرو مشرتوب یې کاوه د حضرت عمر فاروق ﷺ رغ واورېدی او غر یې سنبال کړی، په دې ډول د هغه و فوځ ته فتح او بری ورپه برخه شو، آیا دا واقعه صحیح ده او که نه؟

**جواب**: هو، دغه خبره صحیح ده دغه د حضرت عمر ﷺ کشف او کرامت دی دغه واقعه د حدیثو په ځینو کتابونو کې موجوده ده که غواړئ چې ویې ګورئ نو د حیاة صحابه د درېیم جلد و (۵۶۸) صفحې ته ورشئ او یا د الاصابه فی تمیز الصحابه د دوهم جلد و درېیمې صفحې ته ورشئ او یا هم د البدایه والنهایه د اووم جلد (۱۳۱) صفحه وګورئ.

## د تعویذ او جادو شرعي حیثیت:

**پوښتنه**: زموږ کورنۍ د تعویذ په کښلو کې ډېر شهرت لري، په دې وجه زما په ذهن کې دا پوښتنه پیدا شوې ده چې آیا په یو چاد تعویذ په کولو سره پر هغه باندې یو اثر لوېږي او که نه؟

**جواب**: هو! تعویذ ضرور اثر لري، مګر د تعویذ تاثیر هم د الله ﷻ په اجازه او د هغه په حکم سره کیږي. یو چا ته د تاوان د رسولو لپاره چې کوم تعویذونه کیږي، د هغو حکم بالکل د جادو په شان دی. داسې تعویذ کول چې خلکو ته نقصان رسوي حرام او کبیره ګناه ده. بلکې ددې سره د کفر خطره ده.



ما مخکې وویل چې په دې سره ضرور اثر کیږي، ددې داسې مثال دی لکه یو سړی چې پر یو چا مرداري وپاشي، دا کار کول خو حرام او سخته ګناه ده، او دا ډول کار یو ډېر رذیل او بې خونده حرکت دی، مګر پر هغه سړي چې دا مرداري پاشل شوې ده، د هغه کالي او بدن خو ضرور خرابیږي او د هغه بد بویي به ضرور راځي.

نو د یو شي حرامېدل او ګناه کېدل بېله خبره ده او د مرداري اثر ښکاره کېدل یو فطري شی دی، تعویذ که چیرې د یو روا کار لپاره وکړل شي، نو روا دی، په دې شرط چې د ګناه او شرک خبره یې نه وي پکښې لیکلې.

فتاوی یوسفیه لیکي چې د تعویذ د جواز لپاره درې شرطونه دي:

۱- د یو جائز او روا مقصد لپاره به وي، د ناجائز مقصد لپاره به نه وي.

۲- د تعویذ الفاظ به پر کفر او شرک باندې مشتمل نه وي او که چیرې پر داسې الفاظو مشتمل وه چې مفهوم یې نه معلومیږي هغه هم ناروا دي.

۳- تعویذ به موثر بالذات نه ګڼي.

**(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۳۵۰)**

فتاوی یوسفیه لیکي چې هغه تعویذ چې شرکیه الفاظ پکښې لیکل کیږي شرک دی ځکه چې رسول الله ﷺ د هغو تعویذونو په هکله چې د جاهلیت په زمانه کې به لیکل کېدل داسې فرمایلي دي:

من علق تمیمة فقد اشرک. **(مجمع الزوائد جلد ۵ صفحه ۱۰۳)**

**ترجمه**: چا چې تعویذ وتړی بس هغه شرک وکړی.

تر دې وروسته فتاوى يوسفيه ليکي: چې د جاهليت په زمانه کې به کاهنانو د شيطان د مدد الفاظ ليکل.

**(فتاوى يوسفيه جلد اول صفحه ۳۵۱)**

## د حق کار لپاره تعويذ ليکل دنياوي تدبير دى عبادت نه دى:

**پوښتنه**: زموږ په سيمه کې يو بزرګ دى هغه وايي چې تعويذ ليکل د شريعت له نظره ناروا دى ، هغه که دروا کار لپاره وي او که د ناروا ، دغه بزرګ وايي چې نه په قرآن شريف کې دا راغلي دي چې تعويذ په غاړه کړئ او يا يې پر بازو او وږه وتړئ او نه په احاديثو کې راغلي دي، دى وايي چې پر الله ﷻ باندې يقين په کار دى او د ناجوړې په وخت کې دوا استعمالول په کار ده ، آيا ددغه بزرګ خبره صحيح ده او که نه؟

**جواب**: هو دا صحيح ده چې نه په قرآن شريف او نه په حديثو کې دا راغلي دي چې تعويذ په غاړه کړئ ، مګر ستاسې د پوښتنې په جواب کې فتاوى يوسفيه ليکي چې: د قرآن شريف آياتونه ويل او دم کول په احاديثو کې راغلي دي ، د جناب رسول الله ﷺ صحابه کرامو ، او وروسته د صالحانو خلکو همدا عمل پاته شوى دى ، تعويذ هم ددې يو شکل دى ، ددې وجې ددې په جواز کې شک نه شته ، البته د تعويذ حيثيت پېژندل ضروري دي ځيني خلک د تعويذ تاثير قطعي اويقيني ګڼي،داصحيح نه دى، بلکې تعويذ



هم من جمله د نورو تدبيرونو په شان يوعلاج او تدبير دى او ددې مفيد کېدل او نه کېدل د الله ﷻ په اراده پورې اړه لري.

ځينې خلک تعويذ روحاني عمل ګڼي دا ډول خيال لرل هم اصلاح ته ضرورت لري ، روحانيت بېل شى دى او تعويذ وغيره محض دنيوي تدبير او علاج دى ، نو ددې وجې کوم سړى چې تعويذونه کوي ، دغه سړى بزرګ ګڼل غلطي ده، ځينې خلک بيا پر دعاء دومره يقين نه کوي لکه پر تعويذ چې يې کوي دا ډول خلک هم و اصلاح ته ضرورت لري ، دعاءعبادت دى او تعويذ ليکل هيڅ عبادت نه دى ، او د يو نا جائز کار لپاره تعويذ ليکل خو بالکل حرام دى ، او دې خبرې ته دې هم ستاسې فکر وي چې د ناجائز کار لپاره تعويذ ليکونکى او تعويذ اخيستونکى دواړه په ګناه کې سره برابر دي.

**( فتاوى يوسفيه جلد اول صفحه ۳۵۲)**

## جادو کفر دى:

**پوښتنه**: ايا جادو اثر کوي اوکه نه؟

**جواب**: هووروره! جادو چليږي او ددې اثرانداز کېدل په قرآن شريف کې ذکر دي ،مګر جادو کول ګناه کبيره ده، په قرآن شريف کې جادوته کفر ويل شوى دى ، ګويا د داسې خلکو څخه ايمان سلبيږي.

**( فتاوى يوسفيه جلد اول صفحه۳۵۳)**

## که چیرې په یو چا جادو شوی وي ، هغه کولای شي چې یو بزرگ ته رجوع وکړي:

**پوښتنه**: که چیرې په یو چا جادو شوی وي آیا دغه سړی دا کولای شي چې د خپلو مشکلاتو د بیانولو لپاره و هغو کسانو ته ورشي چې د جادو باطل والی یې زده وي لکه بزرگان دین ، آیا دا کار خو به په شرک کې داخل نه وي؟

**جواب**: هوورو ره ! د جادو د ختمېدلو لپاره یو داسې سړي ته رجوع کول چې هغه د جادو په ختمېدلو پوهېږي روا دي ، په شرط ددې چې هغه به د جادو ختمېدل د جادو په ذریعه سره نه کوي ، بلکې د قرآن په آیاتونو سره به یې کوي ، که داسې وکړي نو دا په شرک کې نه راځي .

**(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۳۵۴)**

## توهم پرستي:

په اسلام کې د نحوست (سپیروالي) او بدفالی هیڅ تصور نه شته ، دا محض توهم پرستي ده ، په حدیث شریف کې د بدفالی د عقیدې تردید شوی دی ، تر ټولو لوی نحوست اوسپیره والی پخپله د انسان بدعملونه او دده فسق او فجور دی ، لکه نن سبا چې په مختلفو طریقو سره په هر کور کې شته الاماشاء الله دغه بد عملیانې اونافرمانیانې د لوی خدای ﷻ د قهر او



لعنت موجب جوړېږي ، د هغوی څخه ځان ساتل ضروري دي

**(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۳۵۹)**

## اسلام د سپیره والی قائل نه دی ، سپیره والی پخپله د انسان په بد عملی کې دی:

**پوښتنه**: آیا زموږ په دین کې نحوست او ، سپیره والی لره کوم اهمیت شته او که نه؟ ځینې خلک یوه پښه پر بله پښه اېښودل سپیره ګڼي ، ځینې خلک بیا په ګوتو ټکان کول نحوست او سپیره ګڼي ، او ځینې خلک بیا ارږمۍ کښل سپیره ګڼي ، ځینې بیا وایي چې د فلاني کار لپاره فلانۍ ورځ منحوسه ده ، آیا دا خبرې صحیح دي؟

**جواب**: نه ! وروره دا ټولې خبرې غلطې دي ، اسلام د نحوست او سپیره والي قائل نه دی نو ددې وجې یو کار یا یوه ورځ منحوسه بلل غلط کار دی ، که چیرې سپیره والی وي نو هغه د انسان پخپلو بد عملونو کې دی ، پښه پر پښه اېښودل روا دي ، د ګوتو څخه ټکان ایستل نامناسب دي او که چیرې ارږمۍ راشي نو پر خوله باندې د لاس د اېښودلو حکم دی .

**(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۳۵۹)**

## د نجونو پیدا کېدل منحوس بلل:

**پوښتنه**: په ځینو کورونو کې چې نجلۍ پیدا شي نو خوشالي نه کوي

او که هلکان پیدا شي نو ډېره خوشالي کوي، میټهایي وېشي آیا دا طریقه صحیح ده که نه؟ ځکه چې د هلک او یا نجلۍ پیدا کېدل خو د الله رضاء ده، مګر په کوم کورکې چې نجلۍ پیداشي دوی داداسې ګڼي لکه د دوی پر کورچې یو غم رانازل شو او دا سپیره او منحوس بولي، آیا دا د جاهلیت وطرف ته تګ نه دی چې لوڼې به یې ژوندۍ ښخولې؟

**جواب**: د هلکانو پر پیدا کېدلو خو زیاته خوشالي یو طبعي کاردی، مګر نجونې یا د هغوی مور منحوسه ګڼل او یا هغوی ته په حقارت اوسپکاوي کتل او د هغوی سره ښه سلوک نه کول سخته او کبیره ګناه ده، وروره! جناب رسول الله ﷺ د لوڼو سره پر ښه سلوک ډېر زور اچولی دی او د لوڼو ښه پالنه او تربیه یې وجنت ته د تللو لپاره یوه ذریعه ګڼلې ده چې دغه بحث به پر خپل ځای باندې راشي.

## د ښځو لپاره د مختلفو رنګونو کالي اغوستل روا دي او که نه؟

**پوښتنه**: زموږ مشران د ځینو رنګونو د کالیو اغوستل او یا تور او اسماني رنګ بنګړي په لاسول ښه نه بولي، دوی وایي چې د فلاني رنګ د کالیو په اغوستلو سره مصیبت او غم راځي آیا دا خبره څومره صحیح ده؟

**جواب**: وروره! دا خبره سراسر غلطه ده، مختلف رنګ کالي اغوستل او مختلف رنګ بنګړي په لاسول جائز او روا دي او دا خیال لرل چې فلانی رنګ



کالي اغوستل او یا د فلاني رنګ بنګړي په لاسولو سره مصیبت راځي محض توهم پرستي ده، په مختلفو رنګونو سره هیڅ نه کېږي، په اعمالو سره انسان د الله ﷻ په نظر کې مقبول او یا مردود ګرځي.

(فتاوىٰ یوسفیه جلد اول صفحه۳۵۹)

## د صفرې میاشت منحوس یا سپیره ګڼل:

**پوښتنه**: تاسې وایاست چې په اسلام کې نحوست او سپیره والی نه شته او حال دا دی چې په یو حدیث کې د صفرې میاشت منحوسه بلل شوې ده، دغه حدیث موږ ته هغه وخت را معلوم شو چې یو چا دغه حدیث پر کاغذه لیکلی ؤ او زموږ په سیمه کې یې تقسیم کړ آیا دغه حدیث صحیح دی او که نه؟

**جواب**: وروره! د صفرې میاشت منحوسه او سپیره نه ده، د صفرې میاشت منحوسه او سپیره ګڼل د جاهلیت رسم دی، مسلمانان دغه میاشت "صفرالمظفر" او یا "صفرالخیر" بولي یعني د کامیابۍ او خیر و برکت میاشت، د صفرې د میاشتې د نحوست په باره کې هیڅ صحیح روایت نه دی راغلی، په دې هکله چې کوم کاغذونه ستاسې په سیمه کې خپاره شوي دي هغه بالکل غلط دي. (فتاوىٰ یوسفیه جلد اول صفحه ۳۵۹)

## د محرمې ، صفرې ، شعبان او روژې په مياشت کې واده کول:

**پوښتنه** : ځينې خلک وايي چې څو مياشتې داسې دي چې په هغو کې واده کول منع شوي دي لکه د محرمې مياشت ، د صفرې مياشت ، د شعبان مياشت ، د روژې مياشت او داسې نورې.... زه اوس دا پوښتنه کوم چې د حديثو په رڼا کې دا راته ووایاست چې آيا په دغو مياشتو کې واده کول رشتيا هم ناروا دي او که نه؟

**جواب** : وروره ! دا خبره چې ځينې خلک يې کوي بالکل غلطه ده ، ځکه چې په شريعت کې هيڅ داسې مياشت نه شته چې په هغه کې دې واده کول منع شوی وي . **(فتاوٰی يوسفيه جلد اول صفحه ۳۶۰)**

## د محرمې په مياشت کې څه ډول واده کېدای شي دا خو د حضرت امام حسين رحمة الله عليه د شهادت مياشت ده:

**پوښتنه** : د محرمې ، صفرې او شعبان په مياشت کې څنګه واده کېدای شي ځکه چې دا خو د غم مياشتې دي په دوی کې د حضرت امام حسين ؓ شهادت شوی دی او نورې د غم سترې واقعاتې شوي دي چې د هغو



غم د ټولو مسلمانانو په زړونو کې دی او په مشاهده سره ثابت دي چې په دغو مياشتو کې ودونه کول خامخا د يو غم او تکليف باعث جوړيږي؟

**جواب** : په دغو مياشتو کې واده نه کول پر هغه عقيدې مبني دی چې دغه مياشتې منحوسې بولي ، اسلام هيڅکله ددې نظريې قائل نه دی ، هو دا خبره صحيح ده چې د محرمې په مياشت کې د حضرت امام حسين ؓ شهادت شوی دی ، مګر ددې څخه دا نه لازميږي چې په دې مياشت کې د نکاح عقد منع دی ، او که داسې وي نو بيا خو په هره مياشت کې د دنيا څخه داسې شخصيتونه تللي دي چې هغه تر حضرت حسين ؓ هم ډېر لوړ دي ، نو ددې څخه خو دا لازميږي چې د کال په دوولس سرو مياشتو کې بايد نکاح ونه کړل شي او که داسې نه وي نو د محرمې يا شهادت مياشت د ماتم او د نحوست مياشت ګڼل هم غلطي ده . **(فتاوٰی يوسفيه جلد اول صفحه ۳۶۰)**

## د کوچني او لوی اختر په منځ کې واده کول:

**پوښتنه** : موږ اورېدلي دي چې د کوچني او لوی اختر تر منځ واده کول نه دی په کار ، بلکې د لوی اختر وروسته واده په کار دی ، که چيرې د کوچني او لوی اختر په منځ کې واده وکړل شي نو ناوې او زوم به د خوشالۍ ژوند نه تېروي ، آيا دا خبره صحيح ده او که نه ؟

**جواب** : وروره ! دا بالکل غلطه عقيده ده .

**( فتاوی يوسفيه جلد اول صفحه ۳۶۱)**

## د شپې له خوا جارو وهل:

**پوښتنه**: موږ اورېدلي دي چې په شپه کې جارو وهل ګناه ده، آیا دا خبره صحیح ده او که نه؟

**جواب**: وروره! د شپې له طرفه جارو وهل ما په هیڅ کتاب کې نه دي لیدلي چې دا ګناه ده. **(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۳۶۲)**

## د ماځیګر څخه وروسته جارو وهل او یو چمپل پر بل چمپل اېښودل څنګه دي؟

**پوښتنه**: زموږ مشر وایي چې د ماځیګر د اذان له وروسته جارو وهل نه دي په کار یعني د ماځیګر د اذان وروسته جارو وهل نه دي په کار که چیرې په دې وخت کې جارو ووهل شي مصیبتونه او غمونه راځي، همدا رنګه یو چمپل پر بل چمپل اېښودل نه دي په کار، او همدا رنګه جارو درول نه دي په کار آیا دا خبرې صحیح دي او که نه؟

**جواب**: دا ټولې خبرې د شریعت له نظره بیخي غلطي او هیڅ حیثیت نه لري، د دوی حیثیت توهم پرستي ده.

**(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۳۶۲)**



## د توهم پرستۍ څو مثالونه:

**پوښتنه**: ما ډېر ځله د خپلو مشرانو څخه اورېدلي دي چې د شپې په وخت کې چوټي مه اوبدئ، جارو مه وهئ، نوکان مه پرېکوئ، د چارشنبې په ورځ وربېښتان او نوکان مه پرېکوئ، دوی وایي که چیرې دا شیان وکړل شي نو نیستي راځي، د ډوډۍ خوړلو وروسته جارو مه وهئ، ځکه چې رزق پورته کیږي، آیا دا خبرې صحیح دي او که نه؟

**جواب**: وروره! دا هر څه غلط دي، دا محض توهمات دي، په شریعت کې د غوشیانو لره هیڅ اصل نه شته.

**(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۳۶۲)**

## چپه چپلکه یا بوټ سیده کول:

**پوښتنه**: موږ اورېدلي دي که چیرې په لاره کې چپه چمپل پروت وي، نو د هغه راسته کول په کار دي که چیرې راسته نه کړل شي، نو یو غم راځي آیا دا خبره صحیح ده؟

**جواب**: وروره! هر چپه شی سیده کول ښه کار دی، مګر تاسې چې څه اورېدلي دي، دې لره هیڅ اصل نه شته، دا محض بې ځایه خبره ده.

**(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۳۶۳)**

# استخاره کول حق دی ، مگر فال کتل ناروا دی:

**پوښتنه** : د يو کار کولو څخه مخکې استخاره کول يا فال کتل ددې لپاره چې ددغه کار ښه والی او بدوالی معلوم شي د شريعت له نظره روا دي او که نه؟

**جواب** : د سنت طريقې مطابق استخاره کول سنت ده ، په حديث شريف کې په دې هکله ډېر ترغيب راغلی دی ، مگر فال کتل ناروا دي .

**(فتاوی يوسفيه جلد اول صفحه ۳۶۳)**

# دست شناسي (د لاس نښې کتل) د اسلام له نظره:

**پوښتنه** : آيا د اسلام له نظره دست شناسي يعني د لاس نښې کتل روا دي او که نه ، او همدارنگه ددې کار زده کول او دلاس په ښکاره کولو سره د آينده حال معلومول جائز دي او که نه ؟

**جواب** : نه وروره ! پر دغو شيانو اعتماد کول ناروا دي .

**(فتاوی يوسفيه جلد اول صفحه ۳۶۸)**

د قرآن او حديث په رڼا کې د لاس پر ليکو يقين ساتل روا نه دي .

**(فتاوی يوسفيه جلد اول صفحه ۳۷۱)**



# د دست شناسی گټه خوړل:

**پوښتنه** : ايا پر علم نجوم باندې ليکل شوي کتابونه ويل او بيا د خلکو لاسونه کتل او د دوی حالات معلومول يعني پېش گوياني کول او ددغه کسب گټه خوړل د يو مسلمان لپاره روا دي او که نه ؟

**جواب** : وروره! دا ډول گټه روا نه ده .

**(فتاوی يوسفيه جلد اول صفحه ۳٦۸)**

# پر نجوم باندې اعتقاد کول کفر دی:

**پوښتنه** : ما د خپل زوی لپاره و خپل يو دوست ته د هغه د لور لپاره مرکه ور واستوله ، هغه څو ورځې وروسته ما ته جواب را واستاوه، ويل زما د طرفه څخه انکار دی ځکه چې ما د علم الاعداد او ستورو په حساب سره دا معلومه کړه چې ددوی ستوري نه سره يو ځای کيږي ، نو آيا دغه کار د شريعت له نظره څنگه دی ؟

**جواب** : پر نجوم باندې عقيده ساتل کفر دی .

**(فتاوی يوسفيه جلد اول صفحه ۳٦۸)**

# نجومي ته لاس ورښکاره کول:

**پوښتنه** : زه د لاس د ښکاره کولو سره ډېر شوق لرم ، هر نجومي چې

ووینم لاس ورښکاره کوم اوس دا راته ووایه چې د هغه خبرې و منم او که نه؟

**جواب**: وروره! د لاس د ښکاره کولو شوق خو دې ښځې بې ځایه دی، دا چنداني شوق نه دی چې ته یې لرې، یو خو داچې یو بې مقصده کار دی او د بلې خوا یې گناه ډېره غټه ده، کوم سړی چې په داسې بې ځایه شوق کې اخته شي پر هغه تاسې فکر وکړئ همېشه به پرېشانه وي او د نجومیانو په بې ځایه خبرو کې به یې تل سودا بنده وي.

**(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۳۶۹)**

## لاس ښکاره کول او قسمت معلومول گناه ده او پر دې باندې یقین کول کفر دی:

**پوښتنه**: په لاس کتلو سره چې کوم خلک خبرې ښیي دا تر کومه ځایه صحیح دي. آیا پر دې باندې یقین کول په کار دي او که نه؟

**جواب**: وروره! و دا ډول خلکو ته ورتلل گناه او ددوی پر خبرو یقین ساتل کفر دی، د صحیح مسلم شریف په حدیث کې راغلي دي چې جناب رسول الله ﷺ فرمایلي دي: کوم سړی چې و یو پنډت، نجومي یا قیافه شناس ته ورشي او د هغه څخه یوه خبره وپوښتي، نو ترڅلوېښتو ورځو پورې دده لمونځ نه قبلیږي د مسند احمد او ابوداود په حدیث کې راغلي دي چې نبي ﷺ د دریو خلکو په هکله وفرمایل چې دغه خلک د هغه دین څخه چې پرمحمد ﷺ نازول شوی دی بري دي، ددغو دریو کسانو څخه یې یو هغه سړی یاد کړ چې



یو کاهن ته ورشي او د هغه پر خبرې باندې یقین او تصدیق وکړي.

**(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۳۷۳)**

## آیا د سپوږمۍ او یا لمر د تندر په نیولو یعني توریدلو سره و دوی ته تکلیف رسیږي:

**پوښتنه**: ما اورېدلي دي چې کله سپوږمۍ تندر ونیسي یعني توره شي او یا لمر تندر ونیسي او تور شي، په دې سره لمر او سپوږمۍ ته تکلیف رسیږي، آیا دا خبره صحیح ده او که نه؟

**جواب**: وروره! دا خبره بالکل غلطه ده، نه سپوږمۍ ته تکلیف رسیږي او نه لمر ته. **(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۳۶۴)**

## د لمانځه څخه وروسته د مصلې (جای نماز) یوه څوکه راتاوول:

**پوښتنه**: ځیني خلک چې د لمانځه څخه فارغه شي نو د جای نماز یوه څوکه راتاوله کړي وایي چې که داسې ونه کړل شي شیطان راځي لمونځ پر کوي، آیا دا خبره صحیح ده او که نه؟

**جواب**: وروره! دا خبره بالکل غلطه ده، ځکه چې د شیطان عبادت کول صحیح نه دی، عبادت خو د الله ﷻ د حکم د پر ځای راوړلو نوم دی. تاته نه

ده معلومه چې شیطان د الله ﷻ د حکم څومره غټ نافرمان دی ؟ نو ددې وجې چې شیطان راځي او دلته لمونځ کوي ببخښي بې ځایه خبره ده ، پاته شوه دا خبره چې د لمانځه د فارغېدو وروسته جای نماز راټولول ددې لپاره چې شیطان لمونځ پر ونه کړي د فتاوی یوسفیې په قول بالکل مهمل او بې ځایه خبره ده بلکې د لمانځه د فارغه کېدو وروسته باید په دې وجه مصله یا جای نماز راټول کړل شي چې د لمانځه د فارغه کېدو وروسته خراب نه شي. دا خیال بالکل غلط دی چې که یې زه راټوله نه کړم نو شیطان راځي او لمونځ پر کوي (**فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه۳۷۴**)

## د نظر کېدو حقیقت:

**پوښتنه** : د ډېرو سپین ږیرو څخه مې اورېدلي دي چې فلانی سړی نظر شو، نا جوړه شو یا یې کار او کسب ودرېدی آیا دا خبره حقیقت ده او که نه؟

**جواب** : د صحیح بخاري شریف د (کتاب الطب ،باب العین حق) په حدیث کې راغلي دي چې "العین حق" یعني نظر کېدل حق دی . حافظ ابن حجر رحمه الله د فتح الباري د لسم جلد په ۲۰۴ صفحه کې تر دغه حدیث لاندې د مسند بزار څخه د حضرت جابر رضي الله عنه روایت رانقل کړی دی چې جناب رسول الله ﷺ فرمایلي دي "د قضا او د قدر وروسته ډېر خلک د نظر کېدو څخه مري".

ددې څخه معلومه شوه چې د نظر کېدو څخه ځیني وخت انسان ناجوړه کیږي هم او په ځینې وختونو کې یې دغه ناجوړي د مرگ سبب هم جوړیږي،



نور نقصانات هم پر دې قیاسیږي

په حدیث کې راغلي دي وایې کوم سړی چې یو شي ته وگوري او هغه ده ته ډېر ښه معلوم شي ، نو که چیرې دی "ماشاء الله لا قوة الابالله" ووایي نو هغه نه نظر کیږي .

## آیا انسان و سپوږمۍ ته ختلای شي او که نه:

**پوښتنه** : نن سبا د ځینو خلکو تر منځ دا بحث روان دی ځیني وایي چې انسان سپوږمۍ ته ختلای شي او ځیني بیا وای چې نه شي ختلای، ځیني وایي چې مځکه گردش کوي او ځیني بیا وایي چې نه یې کوي ، موږ راولاړ شوو دغه پوښتنه مو زموږ د مسجد د امام څخه وکړه چې آیا د قرآن او حدیث په رڼا کې انسان سپوږمۍ ته ختلای شي او که نه ، هغه په جواب کې راته وویل چې د قرآن او حدیث له رویه د انسان ختل و سپوږمۍ ته نا ممکن دي. اوس تاسې زموږ په معلوماتو کې اضافه وکړئ چې آیا ددغه امام خبره صحیح ده او که نه ؟

**جواب**: وروره ! ستاسې د سوال په هکله فتاوی یوسفیه څه دا راز لیکي:

**"انسان سپوږمۍ ته پورته شوی دی او د نوي تحقیق مطابق مځکه گردش کوي، ستاسې د مسجد د امام صاحب دا خبره چې د قرآن او حدیث په رڼا کې د انسان سپوږمۍ ته ختل نا ممکن دي بالکل غلطه ده (زما په فکر ستاسې د مسجد امام ته په دې هکله تحقیق نه شته،که چیرې په قرآن اوحدیث کې تحقیق وکړي،نوشاید ډېر ژر به ورته معلومه شي چې ماکومه خبره کړې ده هغه غلطه ده).(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۴۰۰)**

## يو ادنی مسلمان ته کافر يا مشرک ويل خپله دی کافر کوي:

احسن الفتاوی په دې هکله يو ځانګړی باب قائم کړی دی او ويلي يې دي چې تکفير د مسلمان کفر دی. **(احسن الفتاوی جلد اول صفحه ۵۷)**

نوموړي فتاوی لږ وروسته ليکي چې يو ادنی مسلمان ته لا کافر يا مشرک ويل خپله دی کافر کوي او يو څوک چې دا ډول خبره وکړي، مرتد ګرځي ددې لپاره په کار دي چې تجديد د ايمان وکړي، د تجديد د ايمان څخه وروسته تجديد د نکاح هم لازم دی. **(احسن الفتاوی جلد اول صفحه ۵۸)**

عن ابن عمررضی الله عنهما قال قال رسول الله ﷺ ايما رجل قال لاخيه كافر فقد باء بها احدهما (متفق عليه) وعن ابی ذر رضی الله عنه قال قال رسول الله لايرمي رجل رجلاً بالفسوق ولايرميه بالكفر الا ارتدت عليه ان لم يكن صاحبه كذلک. **(رواه البخاري)**

## د کفر الفاظ رانقلول کفر نه دی:

که يو څوک ووايي چې نصاری وايي چې خدايان درې دي، نو په دې سره دغه سړی نه ګناه کاره کيږي، ځکه چې د کفريه الفاظو نقل پخپله په قرآن کی هم راغلی دی او مسلمانان يې روزانه په لمونځونو او د قرآن په تلاوت کی لولي لکه په سورة توبه کی چې راغلي دي وقالت اليهود عزير ابن الله وقالت النصارى المسيح ابن الله. **(سورة توبه ايت ۳۰)**



دا خبره کول چې مسيح عليه السلام يا عزير عليه السلام د خدای جل جلاله زامن دي يقيناً د کفر الفاظ دي، مګر ددې خبرې د ناقلينو لپاره موجب د کفر نه دی.

**(کفايت المفتی جلد اول صفحه ۶۳)**

## که يو سړی نه خوليونی وي او نه نشه وي مګر سهواً يې تر خوله د کفر الفاظ راووزي:

دلته سوال پيدا کيږي که يو سړي نه خوليونی وي او نه نشه وي، مګر سهواً يې تر خوله د کفر الفاظ راووزي آيا دغه کار موجب د کفر دی که نه؟ لکه هغه بله ورځ چې عبدالله جان په داسې حال کې راغلی چې ډېر زيات پرېشانه ؤ. ويل يې چې زما د يوه ملګري څخه په غلطۍ کې د کفر کلمه تر خوله راووتل. وروسته چې يې خپلي خبري ته فکر شو، دومره غمجن شو، زړه يې غوښتل چې دا مځکه سری شوې وای او دی په ننه وتلی وای. عبدالله جان وايي چې وروسته مو په دې هکله د څو علماوو څخه پوښتنه وکړل، په هغوی کې ځينو دا جواب راکړ چې دغه سړی کافر دی، بيرته به ايمان نوی کوي او تر دې وروسته به تجديد د نکاح او دوباره حج کوي، عبدالله جان وايي چې اوس دغه سړی دومره پرېشانه دی حيران دی چې څه وکړي په دې هکله يو شرعي فتاوی راکړئ چې آيا دغه سړی رښتيا هم کافر دی او که نه، ځکه چې ددغه سړي خو نه د کفر اراده وه او نه يې پخپله اراده او اختيار دغه الفاظ ويلي دي؟

وروره! دغه سوال ته کفايت المفتي د اول جلد په ۲۳ صفحه کې داسې جواب ورکوي:

اصل خبره داده چې د بې اختيارۍ ډېر اسباب دي صرف په سکر، جنون او اکراه

وعته کی منحصر نه دي، د اصول فقهی او پخپله د فقهی په کتابونو کي ددغو اسبابو ذکر پر اقتصار، تحدید او حصر باندي مبني نه دي، بلکي د اکثر اسبابو پر ډول باندي دغه شیان ذکر شوي دي، ددې یو دلیل دادی چي د فقهي په ډېرو کتابونو کي په دې هکله ښه تصریح موجوده ده او ویل شوي دي چي فرق نه کوي په هره وجه سره چي عقل مغلوب شي، دغه مغلوبیت موجب د رفع قلم ګرځی الا فی بعض المواقع فیکون الزجر مقصوداً لکه د نشې په حالت کي طلاق ورکول، په دې هکله د فتاوی شامي د دریم جلد ۲۳۹ وګورئ.

فتاوی عالمګیري لیکي: من اصابه برسام او اطعم شیئا فذهب عقله فهذی فارتد لم یکن ذلک ارتدادا وکذا لوکان معتوها او موسوسا او مغلوبا علی عقله بوجه من الوجوه فهو علی هذا کذا فی السراج الوهاج.

**(فتاوی عالمګیري جلد۲ صفحه ۲۵۲)**

په دغه عبارت کي لفظ د "موسوس" او لفظ د "بوجه من الوجوه" قابل غور دی. **(کفایت جلد اول صفحه ۶۳)**

لږ وروسته کفایت المفتی لیکي: د اسباب معلومه یعنی (سکر، جنون، اکراه عته) څخه ماسېوا کبرسنی، ناروغي، د ډېري خوشالی غلبه، د ډېري خوابدی او حزن غلبه هم د عقل او اختیار په زوال کي سبب جوړېږي، نو په کوم ځای کي چي د عقل زوال یا د اختیار زوال راشي، هلته د ردة حکم نه ثابتیږي یعني په دې وخت کي پر یو چا د مرتد حکم نه شي کېدای. **(کفایت المفتي جلد اول صفحه ۶۴)**

درمختار لیکي چي که چیري د یو قریب الموت انسان څخه مختصري یو څو د



کفر کلمې ښکاره شي، نو په دې سره دغه سړی (د شریعت له نظره) معاف ګڼل کیږي او ددغه سړي سره د اموات المسلمینو په ډول معامله کیږي، یعني د نورو مسلمانانو مړو په ډول معامله ورسره په کار ده او ددغه ډول انسان څخه د کفریه کلماتو اظهار د عقل او اختیار پر زوال حمل کیږي وماظهر منه من کلمات کفریة یغتفر فی حقه ویعامل معاملة موتی المسلمین حملا علی انه فی حال زوال عقله انتهی.

تر دې وروسته کفایت المفتی لیکي چي ددغه پورتني عبارت څخه غرض دادی چي د اسباب مذکوره معلومه وو څخه دلته هیڅ سبب نشته بیا هم دلته یو بل یعني شدت مرض یا کلفت نزع روح د عقل د زوال لپاره معتبر ګرځیدلی دی او د مړي سره د مرتد په ډول معامله روانه ده، که څه هم چي د نزع د سخت تکلیف په وجه سره په دغه وخت کي د عقل زوال متصور کیږي لیکن یقیني خو نه دی صرف د تحسیناً للظن بالمسلم احتمال زوال عقل، قائم مقام د زوال عقل وګرځېد.

**(کفایت المفتي جلد اول صفحه ۶۴)**

د صحیح مسلم په روایت کي د جناب رسول اللهﷺ څخه روایت دی چي خدای جل جلاله د خپل ګناهکار بنده په توبه کښلو باندي تر دې ډېر زیات خوشحاله کیږي لکه د یو مسافر څخه چي په ځنګله کي اوښ د خوراک او څښاک د سامانه سره یو ځای ورک شي، دغه مسافر ډېر تلاښ پسي وکړي مګر پیدا یې نه کړي، آخر د اوښ د پیدا کېدلو څخه مایوسه شي او راشي د یوې درختي تر سایې لاندي ډډه ولګوي په دې وخت کي یې سترګي سره ورشي، یو ګړی وروسته چي سترګي خلاصي کړي ګوري چي اوښ سره د ټوله سامانه دده سره ولاړ دی، په دغه روایت کي جناب رسول اللهﷺ

فرمايي چي د ډېري خوشحالی ځخه ددغه سړي تر خولې بې ساخته او بې واره داسي الفاظ راووزي: **انت عبدی واناربک** يعني بې شکه چي ته زما بنده يې او زه ستا خدای يم، جناب رسول اللهﷺ فرمايي چي **اخطأ من شدة الفرح** يعني د ډېري خوشحالی د وجي ددغه سړي د خولې ځخه داسي الفاظ راووزي د حديث عربي الفاظ دادي: **انس بن مالک وهو عمه قال: قال رسول اللهﷺ الله اشد فرحاً بتوبة عبده حين يتوب اليه من احدکم کان علی راحلته بارض فلاة فانفلتت منه وعليها طعامه، وشرابه فايس منها، فاتی شجرة فاضطجع فی ظلها قد ايس من راحلته، فبينا هو کذلک اذهوبها قائمة عنده فاخذ بخطامها، ثم قال من شدة الفرح: اللهم انت عبدی وانا ربک اخطأ من شدة الفرح.** (**مسلم شريف جلد ۲ صفحه ۳۵۵**)

تر دې وروسته کفايت المفتي ليکي چي ددغه حديث ځخه بيخي په ښکاره ټکو سره دا ثابتيږي چي ډېره خوشحالي هم د اختيار د زوال سبب ګرځي.

(**کفايت المفتي جلد اول صفحه ۶۴**).

همدارنګه د حديبيي د صلحي په واقعه کي چي په بخاري شريف کي روايت شوې ده ذکر شوي دي چي کله صلح مکمله شول په دې وخت کي جناب رسول اللهﷺ وصحابه کرامو ته امر وکړ چي سرونه وخروئ او قربانياني حلالي کړئ. نو صحابه کرامو ﷺ د ډېر غم او فرط حزن په وجه سره چي د دوی د غوښتونو او اميدونو خلاف د کعبې پوري ونه رسېدل دومره بې حاله شول چي باوجود ددې چي جناب رسول اللهﷺ مکرر او په بيا بيا ورته وفرمايل، مګر هيچا هم دده مبارک د فرمان او



حکم تعميل ونه کړ، دی مبارک ډېر غمجن شو او د خپلي مبارکي بی بی حضرت ام سليم وخېمې ته يې تشريف راوړ. هغې مبارکي ته د جناب رسول اللهﷺ پريشاني ورمعلومه شول نو يې پوښتني ورځخه وکړې چي څه پېښه ده چي دومره خفه يې، ده مبارک دغه قصه ورته وکړل، وروسته يې مبارکي بی بی مشوره ورکړل چي ته خپل سر وخريه نور چا ته څه مه وايه، ده مبارک هم همداسي وکړل تر خېمې دباندې راووت او سرخروونکی يې راوغوښت او خپل سر يې په وخرايه، وروسته چي کله صحابه کرامو ﷺ دی مبارک د سر پر خريلو وليدی په دې وخت کي د دوی هوښ او حواس پر ځای شول او ټولو يو تر بله سرونه وخريل. ددې مبارک حديث عربي الفاظ په دې ډول دي: **قال رسول اللهﷺ لاصحابه: قوموا فانحروا ثم احلقوا، قال: فوالله ماقام منهم رجل حتی قال ذلک ثلاث مرات، فلما لم يقم منهم احد، دخل علی ام سلمة فذکر لها مالقی من الناس فقالت ام سلمة يانبی الله! اتحب ذلک؟ اخرج ثم لاتکلم منهم احدا حتی تنحربدنک، تدعو حالقک، فخرج فلم يکلم منهم حتی فعل ذلک، نحربدنه ودعا حالقه.**

(**بخاري شريف جلد ۲ صفحه ۳۷۰**)

پر دې موقع کفايت المفتی ليکي چي ددغه روايت ځخه دا خبره ثابتيږي چي ډېر حزن او غم هم موجب د اختيار د زوال جوړيږي، ځکه چي په قصد او اختيار سره د جناب رسول اللهﷺ د حکم نه عملي کول د صحابه کرامو ﷺ وطرفته هيڅ تصور نه شي کېدای (او بې له قصد او اختياره داسي کار د صحابه کرامو ﷺ وطرفته د منسوبولو هيڅ تصور نه شي کېدای). (**کفايت المفتي جلد اول صفحه ۶۵**)

تر دې وروسته کفايت المفتي شاګردانو ته ګوته نيسي او د مثال په توګه يې را

خلي او داسي زياتوي. د تقريري امتحان پر وخت چي د كومو طالب العلمانو لبيعت زيات مرعوب وي هغوی ته دا ښه معلومه ده چي د دوی د ژبي څخه باوجود ادراک او شعور بي له قصده غلط الفاظ راوزي، حال دادی چي د دوی په ذهن کي صحيح جواب موجود وي ليکن د ډېر رعب په وجه سره د دوی خپله ژبه په واک او قابو کي نه وي. **(کفايت المفتي جلد اول صفحه ۶۵)**

همدارنګه جناب رسول الله ﷺ د خپلو ازواج مطهرات يعني خپلو مبارکو بی بی ګانو رضی الله تعالی عنهن په حق کي ځومره عدل کاوه، چي مثال پيدا کول يي امکان نه لري، مګر بيا يي هم فرمايلي دي: **اللهم هذه قسمتی فيما املک فلا تأخذني فيما تملک ولا املک. (ترمذی شريف جلد اول صفحه ۲۱۷)**

يعني ای خدايه زه پخپلو اختياري کارونو کي د برابری څخه کار اخلم ليکن که چيري د بی بی عائشي سره د زيات محبت په وجه بی اختياره زما د زړه ميلان د عائشي وطرفته ولاړ شي نو په دې سره ما مه ګناهګاره کوه يعني په دې سره ما مه نيسه ځکه چي دا زما د اختيار څخه دباندي خبره ده.

تر دې وروسته کفايت المفتي ليکي چي ددې څخه معلومه شول چي د ډېر محبت په وجه سره په بې اختياره توګه که يو کار صادر شي، هغه قابل مؤاخذه نه ګرځي، پاته اطراء ممنوع شول يعني په صفت کي زياته مبالغه دا د ډېر محبت د وجي څخه پيدا کيږي، بايد ووايم چي دا شی تر اختياري حده پوري ممنوع دی، مګر دا هم که چيري تر غير اختياري حده پوري ورسيږي، نو يقيناً مرفوع القلمه ګرځي، همدارنګه د بخاري شريف دا حديث چي فرمايي: **لاتطروني کما اطرت النصاری** الخ په دې مبارک حديث کي د اطراء يعني په صفت کي د زياتي مبالغي



منع راغلي ده، مګر دا ضروري خبره نه ده چي د اطراء سبب دي زيات محبت وي، بلکي جهالت، تعصب، غلط فهمي او داسي نور ډېر اسباب هم موجب د اطراء کېدای شي، نو **نهی عن الاطراء مستلزم نهی عن غلبة المحبة** نه شي کېدای، همدا ډول د محبت غلبه منحصر فی الاطراء الاضطراري نه وي، نو ددې وجي **نهی عن الاطراء مستلزم نهی عن الغلبة المحبة** نه شي ګڼل کېدای، ذکر شوی حديث پر دې خبره ښکاره دلالت کوي چي د محبت غلبه ډېر ځله په غير اختياري ډول د محبوب وطرفته ميلان پيدا کوي او دغه ميلان قابل مؤاخذه نه ګرځي، ځکه چي دا غير اختياري فعل دی او دغه غير اختياري فعل د محبت غلبې منځته راوړی دی.

**(کفايت المفتی جلد اول صفحه ۶۵)**

لږ وروسته کفايت المفتي ليکي چي که د يو سړي تر خوله بي له قصده د کفر کلمه راووزي، وروسته دی ډېر پريشانه شي او ددې خبري د تدارک لپاره درود شريف ووايي او پر دې ډېر افسوس ښکاره کړي، نو ددغه سړي په هکله د بدګمانی هيڅ جواز نشته چي ګويا دغه سړي دغه کفريه الفاظ د خپلي ارادې او اختيار مطابق ويلي دي، او دا خيال کول چي کله ده ته دا معلومه وه چي اوس مهال زما خوله او ژبه په واک کي نه ده، نو سکوت ورته په کار ؤ، نو ده ولي سکوت ونه کړ او د کفر کلمه يي تر ژبه راوايستل، نو دا خو ګويا دغه سړي په قصده د کفر په کلمي سره تکلم وکړ، کفايت المفتي ليکي چي د خلکو دا ډول خيال صحيح نه دی. ځکه چي که دغه سړي په خپله اراده او اختيار سره دغه کلمه ويلې وای، نو بيا ولي وروسته ددې د تدارک لپاره درود وايي او ولي ژاړي او ولي دومره سخت افسوس کوي، دا خبره ممکنه او اقرب الی القياس هم ده چي کېدای شي دده پر زړه يو داسي

حالات طاري شوي وي چې د هغه په وجه سره دده د جوارحو افعال مختل ګرځېدلي وي (**کفايت المفتي جلد اول صفحه ۶۹**)

کفايت المفتي لږ وړاندي ليکي چې که چيري په يو کلام کې څو وجې داسې وي چې د کفر وجوب راولي، مګر يوه وجه يې د اسلام وي يعني منع د کفر راولي، نو مفتي بايد دغه يوه وجه اختيار کړي په کوم سره چې کفر نه عائد کيږي، ځکه چې د اسلام اړخ راجح دی لکه عالمګيري چې ليکي:

اذا کان فی المسئلة وجوه توجب الکفر ووجه واحد يمنع فعلی المفتی ان يميل الی ذلک. (**فتاوی عالمګيري جلد ۲ صفحه ۲۸۳**)

او د مسلمان په حق کې حسن ظن لازم دی لکه چې فرمايي: عن ابن عباس فی قوله تعالی: "يآايها الذين امنوا اجتنبوا کثيرا من الظن" قال: نهی الله المومن ان يظن بالمومن سوء. (**تفسير الدرالمنثورجلد ۶ صفحه ۹۱**)

## د حضرت علي رضي الله عنه د نامه سره ولي کرم الله وجهه ويل کيږي:

**پوښتنه**: مهرباني وکړئ دا راته ووايا ست چې د هر صحابي د نامه سره رضی الله عنه ويل کيږي، مګرد حضرت علي د نامه سره بيا کرم الله وجهه ويل کيږي. ددې څه وجه ده؟

**ځواب**: خوارجو به د حضرت علي رضي الله عنه د نامه سره ډېر بد الفاظ استعمالول، نو ددې وجې اهل سنتو ددوی په مقابل کې دغه د عائيه الفاظ ويل شروع کړل، ددې



معنی داده چې "الله دې دده مبارک مخ روښانه کړي".

(**فتاوی يوسفيه جلداول صفحه ۱۱۰**)

## کامل مسلمان څوک دی؟

**پوښتنه**: کامل مسلمان چا ته ويل کيږي؟

**جواب**: د کامل مسلمان تعريف په خپله جناب رسول الله ﷺ بيان کړی دی:

اَلْمُسْلِمُ من سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِسَانِه وَيَدِه

(**بخاري شريف جلد اول صفحه۶**)

**ترجمه**: کامل او پوخ مسلمان د الله ﷻ ډېر خوښ او محبوب مسلمان هغه څوک دی دچادژبې اولاس څخه چې نورومسلمانان ته تکليف ونه رسيږي

پر دې موقع علامه بدرالدين عيني رحمه الله چې صاحب د عمدة القاري شرح صحيح البخاري دی يو علمي سوال را پورته کړی دی. نوموړی وايي: آيا په پښه د وهلو او تکليف ورکولو اجازت شته او که نه؟ ځکه چې په حديث شريف کې خو يوازې دا فرمايل شوي دي چې کامل مسلمان هغه څوک دی چې دده د ژبې او لاس څخه بل مسلمان ته تکليف ونه رسيږي، دلته خو د پښې په هکله کوم ذکر نشته؟

ددې جواب يې دا ور کړی دی چې د بدن کوم غړي چې په تکليف رسولو کې ډېر په کاريږي، هغه صرف دوه غړي دي چې د ژبې او لاس څخه عبارت دي. ځکه چې پښې او لغتې ته ډېر لږ نوبت ورسيږي، نو څوک چې هغه اندامونه چې کثيرالاستعمال دي يعنې ډېر استعماليږي هغه لکه لاس او ژبه په پوره واک کې راولي او د تکليف رسولو لپاره يې په کار وا نه چوي، نو په پښه باندې تکليف

رسولو او د تکلیف لپاره د پښې او لغتې استعمالولو ته خو بېخي لږ نوبت رسیږي یعني که څوک خپله ژبه او خپل لاس په پوره واک کې راولي نو په دې کې خو په ډېرې اسانۍ سره پرېښه قابو موندل کېدای شي.

یو هندو د حضرت مولانا شاه ابرارالحق ﷫ څخه په دې هکله پوښتنه وکړه ویل آیا مسلمان هغه څوک دی چې دده د ضرر څخه صرف مسلمان محفوظ او وساتل شي ؟ که داسې وي نو په دې صورت کې خو د دې معنی دا ده چې غیر مسلمانانو یعني هندوانو او نورو کافرانو ته ښه تکلیف ور ورسوئ، ځکه چې و هغو ته د ضرر رسولو څخه منع نه ده راغلې؟

ددې سوال په جواب کې مولانا شاه ابرارالحق صاحب﷫ ورته وفرمایل: نه، نه! داسې نه ده بلکې اصلي خبره داده چې د یو مسلمان معامله، راکړه ورکړه او لیدنه کتنه ډېر ځله د مسلمانانو سره صورت نیسي. نو د هغو خلکو تر منځ چې ناسته ولاړه او یو تر بله راکړه ورکړه یې د نورو په پرتله ډېره راځي. که دوی یو تر بله د تکلیف رسولو څخه ځانونه وژغوري او د یو بل سره ښه راکړه ورکړه وکړي او و بل ته د تکلیف رسولو ته زړه ښه نه کړي نو د هندوانو سره خو د دوی راکړه ورکړه او ناسته ولاړه د مسلمانانو په پرتله ډېره لږه راځي، نو دوی خو په طریق اولی او ډېره ښه توګه د مسلمانانو د تکلیف او ضرر څخه په امن او سلامتیا کې راځي. پر دې موقع مولانا صاحب﷫ د یو مثال په ویلو سره دا خبره ښه واضح کوي او وایي لکه دوه لوښي چې په یو ځای کې پراته وي او یو تر بله ډېر سره نژدې وي نو دغه دوه لوښي که د لاس ور وړلو او را پورته کولو په وخت کې سره ټکر ونه خوري او سره ونه موښلي، نو د هغه لوښي په هکله خو بېخي سوال نه پیدا کیږي چې هغه دې د دوی سره ټکر وخوري او د دوی سره دې و جنګیږي، کوم چې د



دوی څخه په لیرې فاصله کې پروت وي البته د جهاد حالت ددې څخه مستثنی دی مګر په عامو وختونو کې چې کله یو غیر مسلم صلح او روغه وکړي یا مسلمانانو ته ضرر ونه رسوي نو په طریق اولی او لومړۍ درجه کې به دوی د مسلمانانو د لاس او ژبې د ضرر څخه خوندي او په امن کې وي ، ځکه چې په عمومي صورت کې د دوی سره معامله او ناسته ولاړه د مسلمانانو په پرتله ډېره لږه کیږي.

علامه عیني پر دې موقع یو بل علمي سوال هم راپورته کوي او څه دا راز لیکي: ایا په ژبه سره هم یو چا ته تکلیف رسیږي دا څنګه کېدای شي چې په ژبه سره دې یو سړی و یو چا ته تکلیف ورسوي؟ ځکه چې په ژبه کې خو هډوکي لا هم نه شته صرف د غوښو یوه نرمه ټوټه ده، آیا په ژبه سره که یو څوک ووهل شي نو ددې په اثر سره به سړی تکلیف محسوس کړي. دا خو امکان نه لري او که ته وایې چې نه داسې نه ده، ددې مطلب دا نه دی، بلکې د ژبې د الفاظو څخه سړي ته تکلیف رسیږي، نو دلته سوال پیدا کیږي چې ولې جناب رسول الله ﷺ داسې الفاظ نه فرمایل: اَلْمُسْلِمُ من سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ اَلْفَاظِ لِسَانِه.

یعني مسلمان هغه دی چې دده د ژبې د الفاظو څخه نور مسلمانان محفوظ او خوندي وي.

ددې سوال په جواب کې وایي چې نه ، داسې نه ده! ځکه چې ډېر ځله بې له الفاظو هم صرف د ژبې له امله خلکو ته تکلیف او ضرر رسیږي، دا د جناب رسول الله ﷺ د نبوت په پوهه کې یو پوره بلاغت څرګندوي، له دې امله ده مبارک ﷺ "مِنْ اَلْفَاظِ لِسَانِه" ونه فرمایل تر څو چې په دې حدیث کې هغه خلک هم ټول شامل شي چې مَنْ اَخْرَجَ لِسَانَهُ اِسْتِهْزَاءً یعني هغه څوک چې د ملنډو او مسخرو

لپاره ژبه راوباسي او شاوخوا يې وښوروي، په دې وخت کې خو دغه سړي د ژبې څخه ښخي هيڅ لفظ نه دی را ايستلی، يوازې ژبه يې راو ايستله او د ښورولو وروسته يې و څغستل

که چيرې تاسې کوچنيانو ته فکر کړی وي ډېر ځله چې ووهل شي او د مقابلې توان ونه لري نو د خولې پيښې وکړي او وځغلي، ځينې وخت لوی خلک هم دا راز عمل تر سره کوي، ژبه راباسي د پسخند وهلو په ډول يې يوه او بل لور ته سره ښوروي نور په خوله هيڅ نه وايي، د پښتنو په اصطلاح کې دې کار ته د خولې پيښې ويل کيږي

و گورئ په نبوي کلام کې څومره بلاغت نغښتی دی اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِسَانِهٖ وَيَدِهٖ يې وفرمايل چې په دې کې هغه ټول خلک هم شامل شي څوک چې يوازې په ژبه سره تکليف رسوي، که څه هم په خوله به هيڅ نه وايي

تاسي فکر وکړئ که يې چيرې مِنْ اَلْفَاظِ لِسَانِهٖ ويلی وای نو صرف په ژبه سره تکليف رسوونکي خلک به د دې مبارک حديث څخه وتلي وای

## ابرار يعني نيکان او فجار يعني بد کاران کوم خلک دي؟

بايد ووايم چې دلته دوې ډلې موجودې دي چې يوې ته ابرار او بلې ته فجار ويل کيږي

**اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِیْ نَعِيْمٍ. (پاره ۳۰ سورة انفطار آيت ۱۳)**

**ترجمه**: بيشکه چې ابرار يعني نيکان خامخا په نعمتونو د جنت کې دي



**وَ اِنَّ الْفُجَّارَ لَفِیْ جَحِيْمٍ. (پاره ۳۰ سورة انفطار آيت ۱۴)**

**ترجمه**: او بيشکه چې فجار يعني بد کاران خامخا په دوزخ کې دي

نو اوس پوښتنه رامنځ ته کيږي چې موږ څه ډول ابرار يعني نيکان جوړېدای شو، او څه ډول د نيکانو او ښو خلکو په کتاب کې زموږ نوم درجېدای شي او آيا د ابرار معنی څه شی ده؟

حضرت خواجه حسن البصري د ابرابر په تفسير کې دا راز فرمايلي دي

**اَلَّذِيْنَ لَا يُؤْذُوْنَ الذَّرَّ. (عمدة القاري جلد اول صفحه ۱۳۲)**

يعني ابرار هغه خلک دي چې ميږي ته لا هم ضرر ونه رسوي

**وَلَا يَرْضَوْنَ الشَّرَّ. (عمدة القاري جلد اول صفحه۱۳۲)**

او همدارنگه ابرار هغه چا ته ويل کيږي چې په نا فرمانۍ خوښ نه وي، نه په خپله گناه خوښ وي او نه د بل په گناه کولو خوښ وي دغه کسان چې ابرار نوميږي څه وخت چې د الله ﷻ نافرماني ووينې خپه او غمجن شي، که خپله گناه کوي او که بل څوک د گناه پر کولو ووينې نو زړه ته يې تکليف رسيږي، دغه د الله ﷻ سره د مينې يو ثبوت دی

که تاسي فکر کړی وي د کوم چا چې د خپل پلار سره مينه او محبت وي نو څه وخت چې دغه سړی خپل ورونه پلار ته د تکليف رسولو په وخت کې ووينې نو سمدلاسه د دې کار په ليدلو سره غمجن کيږي او خپلو ورونو ته وايي چې تاسې څنگه زما ورونه ياست څنگه نه شرميږي، ولې پلار جان ازاروئ او په تکليفوئ يې، نو کوم خلک چې رب ﷻ ناراضه کوي او د رب په نا فرمانۍ اخته وي د هغو د گناهونو په ليدلو سره د مؤمن زړه چې د خدای ﷻ سره مينه او محبت لري غمجن کيږي او ډېره سخته صدمه ويني

شاه عبد الغني صاحب پهولپوري ﷫ فرمايلي دي چې يو ولی الله او د خدای ﷻ دوست روان ؤ، په دې وخت کې يې ناڅاپه يو سړی د ګناه پر کولو وليد، نو سمدلاسه راو ګرځېد، دومره غمجن شو چې د نور تللو توان يې له لاسه ورکړ، راغی پر چارپايي باندې پرېوت، څادر يې پر ځان باندې واچاوه او په ژړا يې شروع وکړل او ويل يې چې های های څومره د افسوس خبره ده نن ورځ زما د الله نافرماني کيږي

وګورئ ورونو! دغو خلکو ته د الله ﷻ دوستان وايي، نن ورځ موږ نه يواځې دا چې ګناه کوو، بلکې پښېماني هم نه پرکوو، همدا حال په ديني ټولنو او خانقاوو کې هم دی، فکر وکړئ که د قيامت په ورځ پوښتنه وکړل شي چې تاسو ته خو الله ﷻ ديني ماحول درکړی ؤ، د نېکو او ښو خلکو په چاپېريال کې اوسېدا ست نو ددې باوجود مو ولې بد معاشيانې او نافرمانۍ کولې؟ ښه فکر کول په کار دي دغې پوښتنې ته به موږ څه جواب ورکوو، بايد موږ په خپلو ګرېوانونو کې سرونه کښته کړو او د خپلو اعمالو او اقوالو په هکله د ځانونو سره حساب اوکتاب وکړو.

بس دا هم د الله ﷻ فضل او کرم دی چې موږ سمدلاسه په عذاب کې نه اچوي، الله ﷻ حليم او کريم دی، هغه موږ ته د توبې کښلو وخت راکوي چې شايد نن به توبه وکاږي، سبا به توبه وکاږي، که چيرې يو انسان الله ﷻ ته ښه په اخلاص توبه وکاږي او پر سجده پرېوزي ،نو ته فکر وکړه د دغه ګناه کار توبه، دده ژړا او زاري، همدارنګه دده د پښېمانۍ د ژړا اوښکې به د الله ﷻ په دربار کې څومره قدر او ارزښت ولري؟ ددې حساب څوک په خوله نه شي کولای، مګر ډېره د افسوس خبره ده چې سره ددې دغه اسانه لېکن ډېر قيمتداره عمل ته څوک نه راوړاندې کيږي، داځکه چې موږ ذوق بايللی دی دخواږه اوترخه په فرق نه پوهيږو،



ښه او بد راته يو شان ښکاري، ګټه او تاوان نه پېژنو، نه يو خبر چې موږ څوک يو او بايد څه وکړو او زموږ د پيدايښ مقصد څه شی دی

حضرت عبد الرحمن بابا ﷫ چې د نن زمانې د خلکو و حالاتو او د دوی و روزګار ته وګوري نو خندا ورشي:

تبسم مي د وګړو په روزګار شي چې له مرګه يې نه وېره نه يې دار شي

دی مبارک وايي چې د نن زمانې خلک وخپلو ځانونو ته خورا هوښياران او د لوړ فکر څښتنان وايي مګر کارونو ته چې يې وګورې حيران به پاته شې چې داسې کارونه خو کوچنيان لا هم نه کوي، وګوره ستا څخه وزېږي بيا ستا په مخ کې مړ شي او دوه متره خاوره پر واوړي ، مګر افسوس دی چې ته لا ددې څخه پند نه اخلې، هره ورځ مړي او جنازې وينې چې ستا په مخ کې تېرېږي، مګر ته پر صحيح لاره يو قدم لا هم نه اخلې او هلته چې کښېنې ځان تر هر چا کامل بولې. ددې پر ځای چې د خدای د مخلوق زړونه وساتې ازاروې يې همدارنګه ددې پر ځای چې د خدای د مخلوق سره احسان وکړې تاوان ور رسوې او يا يې په تاوان خوشحاله کېږې، د حلال او حرام، روا او ناروا تميز خو بېخي پېژنې لا هم نه. اوس ته ووايه آيا انسانيت دې ته ويل کيږي ،دا ته هوښياري بولې:

له ده وزېږي دده په وړاندې ومري لا يې مينه د دنيا په کاروبار شي
که يې هر قدم د مړيو په سرلار وي يو قدم هسې وا نه خلي چې په لار شي

دی مبارک وايي چې پر دغو کسانو د ژوندو نصيحت هيڅ اثر نه کوي، مګر که مړي له قبره راپورته شي او دوی ته نصيحت وکړي کېدای شي چې يو څه تاثير پر وکړي يا په دې معنی چې پر دغو کسانو د ژوندو خبري هيڅ اثر نه کوي مګر اخير به مړي مجبوره کيږي او د خپلو قبرونو څخه به راپورته کيږي

او دوی ته به نصیحتونه کوي:

د ژوندیو نصیحت پرې اثر نه کا　　مګر مړه له قبره پاځي په ګفتار شي

دی مبارک فرمايي چي دا خلک ځکه نصیحت نه اخلي چي دوی خورا اوږده موښلولې ده، د دوی د ناروا مزو او چړچو څخه دا معلومیږي چي د دوی په فکر د دوی عمر تر حضرت خضر ﷺ لا زیات دی:

د امید مزې بې هسي رنګ دراز وي　　چي تر خضره ورته خپل عمر بسیار شي

سپینه ږیره په اوني کي زوی راواخلي　　چي به ما لره سپاهي ؤ منصبدار شي

د خرما زړي نهال کاورته ګوري　　چي داسوری دامبوه به مي په کارشي

هر هر فصل چي ترې ریبي هوسیږي　　چي په کال به راته بل فصل تیارشي

لا يې لپه توخم هم نه وي کرلی　　ناکشته ورځیني طمع د خوروار کړي

په اخیره کي حضرت عبدالرحمن بابا رحمه الله د ډېر نصیحت کولو څخه ستړی کیږي، خو بیا يې بیرته په فکر کي راګرځي چي پر ماخو صرف ویل دي، د خلکو هدایت خو زما کار نه دی:

رحمن څوک دی چي به پند وچا ته وايي　　هدایت د هربنده په کردګار شي

دا خبره په یاد ولرئ څوک چي خپل ګناهونه را په زړه کړي او ددې له امله د الله ﷻ په حضور کې وژاړي او ووايي چې ای ربه! زما ګناهونه معاف کړه، ما وبخښه. ما مه خواروه، ماته سزا مه راکوه، زه کمزوره یم ستا د دوزخ د عذاب توان نه لرم، نور مي توبه ده آینده به ستا نافرماني نه کوم، ستا پر نافرمانۍ کولو ډېر پښېمانه یم، نو په دې وخت کې دده د سترګو اوښکې د شهیدانو د وینو سره برابر وزن لري. وګورئ مولانا جلال الدین رومي رحمه الله



چي په حقیقت پوه شوی دی په دې هکله دا راز فرمايي:

| |
|---|
| که برابر می کند شاه مجید |
| اشک را در وزن باخون شهید |

یعني الله ﷻ د پښېمانۍ و اوښکو ته د الله ﷻ د ببرې څخه راتوی شوو اوښکو ته د شهید د وینو برابر وزن ورکوي، همدارنګه نوموړی حضرت رومي رحمه الله فرمايي:

| |
|---|
| قطرهٔ اشک ندامت درسجود |
| همسری خون شهادت می نمود |

یعني د پښېمانۍ د هغه اوښکو څاڅکي چي په سجده کي د ګناه کارانو د سترګو څخه را تویږي د الله ﷻ په نزد دومره قیمتي دي چي الله ﷻ د خپل رحمت په سبب د شهیدانو د وینو برابر وزن ورکوي لکه جناب رسول الله ﷺ چي فرمايي:

لَيْسَ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَى اللهِ مِنْ قَطْرَتَيْنِ وَأَثَرَيْنِ قَطْرَةِ دُمُوعٍ مِنْ خَشْيَةِ اللهِ وَقَطْرَةِ دَمٍ يُهْرَاقُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ الخ. (**مشکوة کتاب الجهاد صفحه ۳۳۳**)

**ترجمه**: د الله ﷻ په نزد دوه ډوله څاڅکي تر هر څه زیات محبوب او خوښ دي، یو د هغو اوښکو څاڅکي دي چې د الله ﷻ څخه د ببرې په وجه سره د انسان د سترګو څخه راتوی شوي وي او بل د هغه وینو څاڅکي دي چې د الله ﷻ په لاره کې لوېدلي وي.

## یوه غله توبه وکښل نوځکه لوی ولی الله جوړ شو:

دا د حضرت فضیل ابن عیاض رحمه الله قصه ده چې د عرفان نومي کتاب

او دوی ته به نصیحتونه کوي:

د ژوندیو نصیحت پرې اثر نه کا    مګر مړه له قبره پاڅي په ګفتار شي

دی مبارک فرمایي چي دا خلک ځکه نصیحت نه اخلي چي دوی خورا اوږده موښلولي ده، د دوی د ناروا مزو او چړچو څخه دا معلومیږي چي د دوی په فکر د دوی عمر تر حضرت خضر علیه السلام لا زیات دی:

د امید مزې بې هسې رنګ دراز وي    چي تر خضره ورته خپل عمر بسیار شي
سپینه ږیره په اوني کي زوی راواخلي    چي به ما لره سپاهي ؤ منصبدار شي
د خرما زړي نهال کاورته ګوري    چي داسوری دامېوه به مي په کار شي
هر هر فصل چي ترې ربېي هوسیږي    چي په کال به راته بل فصل تیار شي
لا بې لپه توخم هم نه وي کرلی    ناکشته ورخیني طمع د خوروار کړي

په اخیره کي حضرت عبدالرحمن بابا رحمه الله د ډېر نصیحت کولو څخه ستړی کیږي، خو بیا بې بیرته په فکر کي راګرځي چي پر ماخو صرف ویل دي، د خلکو هدایت خو زما کار نه دی:

رحمن څوک دی چي به پند وچاته وایي    هدایت د هر بنده په کردګار شي

دا خبره په یاد ولرئ څوک چي خپل ګناهونه را په زړه کړي او ددې له امله د الله ﷻ په حضور کي وژاړي او ووایي چي ای ربه! زما ګناهونه معاف کړه، ما وبخښه. ما مه خواروه، ماته سزا مه راکوه، زه کمزوره یم ستا د دوزخ د عذاب توان نه لرم، نور مي توبه ده آینده به ستا نافرماني نه کوم، ستا پر نافرماني کولو ډېر پښېمانه یم، نو په دې وخت کي دده د سترګو اوښکي د شهیدانو د وینو سره برابر وزن لري. وګورئ مولانا جلال الدین رومي رحمه الله



چي په حقیقت پوه شوی دی په دې هکله دا راز فرمایي:

که برابر مي کند شاه مجید
اشک را در وزن باخون شهید

یعني الله ﷻ د پښېماني و اوښکو ته د الله ﷻ د ډېرې څخه راتوی شوو اوښکو ته د شهید د وینو برابر وزن ورکوي، همدارنګه نوموړی حضرت رومي رحمه الله فرمایي:

قطرهٔ اشک ندامت درسجود
همسری خون شهادت مي نمود

یعني د پښېماني د هغه اوښکو څاڅکي چي په سجده کي د ګناه کارانو د سترګو څخه را تویږي د الله ﷻ په نزد دومره قیمتي دي چي الله ﷻ د خپل رحمت په سبب د شهیدانو د وینو برابر وزن ورکوي لکه جناب رسول الله ﷺ چي فرمایي:

لَيْسَ شَيْءٌ اَحَبَّ اِلَى اللهِ مِنْ قَطْرَتَيْنِ وَاَثَرَيْنِ قَطْرَةِ دُمُوْعٍ مِنْ خَشْيَةِ اللهِ وَقَطْرَةِ دَمٍ يُهْرَاقُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ الخ. (مشکوة کتاب الجهاد صفحه ٣٣٣)

**ترجمه**: د الله ﷻ په نزد دوه ډوله څاڅکي تر هر څه زیات محبوب او خوښ دي، یو د هغو اوښکو څاڅکي دي چي د الله ﷻ څخه د ډېرې په وجه سره د انسان د سترګو څخه راتوی شوي وي او بل د هغه وینو څاڅکي دي چي د الله ﷻ په لاره کي لوېدلي وي.

## یوه غله توبه وکښل نوځکه لوی ولی الله جوړ شو:

دا د حضرت فضیل ابن عیاض رحمه الله قصه ده چي د عرفان نومي کتاب

Scanned with CamScanner

مصنف محمد نادرایوبي رحمه الله را اخیستي ده او زه غواړم چې دده له کتاب څخه یې سره له یو څه تغیر او تبدیل څخه رانقل کړم، نوموړی تر قصې مخکې د حضرت فضیل ابن عیاض رحمه الله مختصر تاریخ را اخلي، و تاریخ پوهانو ته حواله ورکوي او دا راز لیکي:

زیات تاریخ لیکونکي چې ابن خلکان، ابن قتیبه، ابن الاثیر او ابو النصر البخاري رحمهم الله تعالی هم پکښې داخل دي، دوی حضرت فضیل ابن عیاض اصلاً د تالقان ،مرو ، مرغاب ،ابیورد یا سمرقند څخه بولي، مګر د ډېرو څېړونکو له نظره دی د مرغاب ؤ او په ۱۰۱ ، یا ۱۰۵ هجري قمري کال کې په سمرقند کې زېږېدلی، په ابیورد کې لوی شوی او په کوفه (یعني اوسنی عراق) کې یې د ژوند ډېره برخه تېره کړې ده، ځینو مؤلفینو د حضرت فضیل رحمه الله د ژوندانه لومړنی مرحلې داسې بیان کړې دي، دوی وایي چې دی په ځوانۍ کې غل ؤ او د یو شمېر ملګرو سره یې په لویو لارو کې کاروانونه لوټول.

د حضرت فضیل رحمه الله د بدو عملونو څخه د توبې کښلو یو شمېر علتونه ښوول شوي دي، یو دا چې ده په یو کاروان کې د دوو مسافرو خبرې واورېدلې چې یوه و بل ته ویل: له لارې څخه لیرې باید په خرابو کې منتظر واوسېږو ځکه چې په دې لاره کې فضیل نومی غل په لوټولو مشغول دی، دی د دغو خبرو تر اغېزې لاندې راغی او توبه یې وکښل.

بله قصه یې داسې ده چې ده د یوې ښځې سره مینه درلوده، د کاروانو د لوټولو وروسته چې به ښه او قیمتي شیان په لاس ورتلل و هغې ته به یې په سوغات کې ورکول.

یوه شپه چې غواړي د قیمتي شیانو سره هغې ښځې ته ځان ورسوي او د کلا




تر دېوال ور واوړي، د یو چا آواز یې واورېدی چې قرآن لولي او دغه مبارک آیت تکراروي:

اَلَمْ يَاْنِ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَنْ تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ لِذِكْرِ اللّٰهِ وَ مَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ وَلَا يَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلُ فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْاَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوْبُهُمْ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ۝ (سورة الحديد آیت ۱۶)

**ترجمه**: آیا نه دی راغلی وخت هغو کسانو لره چې ایمان یې راوړی دی چې وویرېږي زړونه د دوی (له جهته) د ذکر (وعید) د الله ﷻ څخه او (له جهته د) هغه شي چې نازل شوی دی له حق څخه (چې قرآن دی) او نه دې کېږي (په سختوالي د زړه کې) په شان د هغو کسانو چې ورکړل شوی ؤ هغوی ته کتاب پخوا له دې څخه، نو اوږده شوه پر دوی باندې زمانه نو سخت شول زړونه د دوی ډېر له دوی څخه فاسقان (او نا فرمانان) دي.

ددې مبارک ایت په اورېدو سره، فضیل نومي غله فوراً توبه و ایستله ، او د دېوال څخه بېرته راکښته شو ، بل روایت بیا داسې راغلی دی وایي: کله چې فضیل نومی غل د یوه کاروان په لوټولو بوخت ؤ په دې وخت کې یې د یوه کوچني ژړا واورېده چې مور یې په قهر ورته وایي: چپ شه مه ژاړه داسې نه دي چې فضیل ستا اواز واوري، تباه به مو کړي.

فضیل چې د کوچني د مور دا خبره واورېده نو پر خپلو بدو عملونو باندې ډېر پښېمانه شو او د ځانه سره یې وویل: زما پر حال افسوس په کار دی وګوره زه و دې درجې ته رارسېدلی یم، چې میندې خپل اولادونه زما د نامه په یادولو بېروي.

د حضرت فضيل رحمه الله د توبې د سبب بل روايت دا هم بيان شوی دی، وايي کله چې د ده ملګرو د کاروان لاره نيولې وه، يوه مسافر د دې لپاره چې خپلې پيسې د فضيل د دارمارانو څخه وساتي، په پټه د کاروان څخه ګوښه شو، هلته ليرې يې يوه غټه خېمه وليدل، دغه مسافر هم سمدستي د هغې خېمې پر لور ور روان شو. دی نه ؤ خبر چې دغه خېمه پخپله د غلو د مشر فضيل ده، دغه مسافر ورغی او هلته يې د يوه سړي څخه چې په ظاهر يې کره وړه د شريعت سره برابر وه، غوښتنه وکړه ويل ورووره، دغه پيسې چې لس زره درهمه کيږي د امانت په ډول يې را وساته داسې نه وي چې غله يې راڅخه لوټ کړي.

دغه سړی چې په خېمه کې ناست ؤ او د هغه مسافر د ښه سړي ګمان پر راغلی ؤ پخپله فضيل ابن عياض ؤ، هغه ورته وويل چې سمه ده د خېمې په هغې بلې خوا کې يې پټې کړه!

د فضيل ملګرو ټوله کاروان لوټ کړ، څه چې په لاس ورغلل هغه يې برابر راوړل او د لوټ شوو مالونو سره يو ځای د فضيل په خېمه ننوتل، هغه مسافر چې د فضيل په خېمه کې يې پيسې پټې کړې وې ډېر خوابدی شو، له ځانه سره يې وويل: چې دا مې څه وکړل دا خو هم د غلو خېمه وه، په لاسي لاس مې خپلې پيسې و غلو ته ور تسليم کړې، نو غريب څه کړې وای، څه يې په وسه پوره وه، هغه ؤ چې پر خپله مخه روان شو. فضيل چې د خېمې څخه مسافر وليدی چې پر خپله مخه روان شو، نو يې ورپسې نارې کړې او ورته ويې ويل چې ای مسافره راشه خپله هميانۍ دې واخله.

مسافر چې د خېمې څخه نارې واورېدې زړه نازړه د خېمې پر خوا راروان شو،



خېمې ته چې راورسېد، د غلو مشر فضيل بن عياض و مسافر ته هميانۍ ونيول او ورته ويې ويل واخله ورووره! خپله هميانۍ دې واخله، مسافر هم راغی په ډېره خوښۍ سره يې هميانۍ واخيستل او پر خپله مخه روان شو.

د فضيل ملګرو چې د خپل مشر دا قصه وليدل نو ډېر حيران پاته شول او فضيل ته يې وويل: چې موږ په ټول کاروان کي نقدې پيسې پيدا نه کړې، او تا ته چې لس زره درهمه تيار په لاس درغلي وه، بېرته دې ولې هغه مسافر ته په لاس ورکړل؟.

فضيل ورته وويل: دې مسافر پر ما باندې د ښه سړي ګمان وکړ، ما هم د لوی خدای ﷻ لپاره چې زما توبه ومنې دا کار وکړی، نور ما د بدو کارونو څخه توبه کښلې ده، بس د همدغه ځايه څخه د حضرت فضيل بن عياض رحمه الله د توبې مرحله شروع کيږي.

د تذکرة الاولياء د کتاب مولف حضرت شيخ فريد الدين عطار رحمه الله فرمايي چې حضرت فضيل رحمه الله د غلو د مشرتوب په وخت کي هم يو څه عادتونه درلودل هغه دا وه چې ښځې او غريبان به يې نه لوټول، بلکې هغو ته به يې بخششونه لا د لاسه ورکول، بل دا چې ده د هغو کسانو نومونه چې ده لوټ کړي وه د تاوان د مقدار سره، ياد داشت اخيستي وه، څه وخت چې يې توبه و ايستله، هغو ټولو ته يې د خپلو ټولو مالونه معاوضه ورکړل او د دښمنانو څخه يې بخښني و غوښتلې او د حضرت امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله د شاګردانو په جمله کي داخل شو، او علوم يې د هغه مبارک څخه حاصل کړل.

نوموړی کتاب ليکي چې د هغه د عصر عباسي خليفه هارون رشيد خپل وزير (فضل برمکي) ته وويل چې: ما يو داسې چاته بوزه چې ډېر پرهېزګاره سړی

وي ، ددې لپاره چې د هغه په صحبت مې زړه نوراني شي.

وزير هم راولاړ شو لومړی يې خليفه هارون رشيد د سفيان عيينه ﵀ وكور ته چې په هغه وخت كي په ښه سړي مشهوره ؤ بوتلی، د دروازې د ټكولو وروسته عيينه ﵀ ږغ وكړ چې : څوك يې؟ وزير فضل برمكي وويل چې: دروازه خلاصه كړه امير المؤمنين را سره دی.

عيينه ﵀ وويل چې : ولې دې زه مخكې نه خبرولم، ددې لپاره چې زه پخپله د امير المؤمنين وخدمت ته حاضر شوی وای ، امير المؤمنين ولې دومره تكليف وكړ؟ كله چې عباسي خليفه دا ډول جواب واورېدی، خپل وزير مكي ته يې وويل چې دا هغه سړی نه دی چې زه يې په لټه كې يم، عيينه ﵀ وويل : هغه سړی چې امير المؤمنين يې د ليدو سره مينه لري ، هغه فضيل بن عياض دی، دوی هم سمدستي د حضرت فضيل بن عياض و كور ته روان شول كله چې دوی د حضرت فضيل بن عياض ﵀ و كورته ورسېدل او دروازه يې ور وټكوله، هغه حضرت ﵀ سوال وكړ چې څوك ياست؟

وزير په جواب كې ورته وويل چې دروازه خلاصه كړه امير المؤمنين را سره دی، حضرت فضيل ﵀ جواب وركړ ويل: امير المؤمنين زما سره څه كار لري او زه د هغه سره څه كار لرم؟.

وزير په جواب كې ورته وويل چې د اولی الامر اطاعت واجب دی، اوس ته غواړې چې ستا په خوښه درشو، او كه په زور درشو؟ حضرت فضيل بن عياض ﵀ په جواب كې ورته وويل: اجازه نشته، خو كه په زور سره راځئ، ستاسو كار دی.



كله چې هارون الرشيد او وزير يې د ده مبارك و كوټې ته داخل شول، د خبرو په ترڅ كې حضرت فضيل ﵀ و هارون الرشيد ته وويل چې: كه غواړې د سبا ورځې د عذاب څخه خلاص شې، نو و سپين ږيرو ته د پلار په نظر، ځوانانو ته د وروڼو په نظر، كوچنيانو تـه د اولادو په نظر او ښځو ته د خور، مور او لور په نظر گوره! د اسلام خاوره ستا تاټوبی دی، او اهل يې ستا د كور غړي دي، د هغو سره داسې رويه وكړه، لكه چې د پلار، ورور او زوی سره يې كوې، حضرت فضيل بن عياض ﵀ زياته كړه چې : د خدای ﷻ او د هغه د جواب څخه وېرېږه! هوښيار اوسه! لوی خدای ﷻ ستا څخه د آخرت په ورځ د هر مسلمان سره ستاد انصاف په باره كې پوښتنه كوي، كه په يو كور كې يو څوك بې مرستې پاته شي، سبا به د مدعي په توگه ستا لمن نيسي.

د ده مبارك د خبرو په اورېدو سره هارون الرشيد په ژړا او بې حاله شو. برمكي وزير و حضرت عياض ﵀ ته وويل: نور بس كړه امير المومنين دي مړ كړې ! ده مبارك په جواب كې ورته وويل چې اې هامانه! چپ سه تا او ستا ټبر دغه سړی هلاك كړ.

هارون الرشيد د دې خبرې په اورېدو سره نور هم په ژړا شو. خپل وزير تـه يې مخ ورواړاوه او ورته يې وويل : تاته خو يې ځكه د هامان په نامه وويل، چې ما فرعون گڼي.

تر دې وروسته هارون الرشيد و حضرت فضيل ﵀ ته د زرو دينارو هميانۍ كېښېښودله، او و يې ويل چې : دا واخله دا مال حلال دی، ځكه چې زما د مور ميراث دی، حضرت فضيل ﵀ دينارونه وا نه خيستل، او ورته ويې ويل چې: زما خبرو و تاته هيڅ گټه ونه كړه، دلته دې ظلم شروع كړی، او بې عدالتي دي وكړه،

زه تا د نجات و لور ته رابولم، او ته ما د ګمراهۍ خواته بيايې، زه وايم هرڅه چې لرې و خپلو مستحقينو ته يې ورکړه، هغه چا ته يې مه ورکوه چې بايد ورنه کړل شي، څه ولاړ شه زما خبرې و تا ته هيڅ ګټه نه لري، دا يې وويل ولاړ شواو دينارونه يې د دروازې دباندې وغورځول.

## ځينې خلک ګناوې کوي او وايي چې خداى ﷻ غفور او رحيم دى:

ددې جواب دا دى چې هو بېشکه چې خداى غفور او رحيم دى، مګر قهار او منتقم هم دى، دا ته په کومه لار وايې چې ستا لپاره به مغفرت خامخا وي، دا خو کېدلاى شي چې ستا سره د انتقام او قهر معامله وکړل شي.

او بله خبره دا ده چې حکيم الامت فرمايي چې د ځينو آيا تو څخه دا معلومېږي چې غفور رحيم د هغه چا لپاره دى چې د تېرو ګناهونو څخه توبه وکاږي او د راتلونکو کارونو اصلاح وکړي لکه په دې مبارک آيت کې چې راغلي دي:

**ثُمَّ اِنَّ رَبَّکَ لِلَّذِیْنَ عَمِلُوا السُّوْٓءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِکَ وَ اَصْلَحُوْٓا اِنَّ رَبَّکَ مِنْۢ بَعْدِهَا لَغَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ. (سورة النحل آيت ۱۱۹)**

**ترجمه**: بيا بېشکه رب ستا (چې دى اې محمده) هغو کسانو ته چې يې کړي دي بدى (ګناه) په جهالت (ناپوهۍ) سره بيا توبه وباسئ وروسته له کولو د هغه (بد عمل) او نېک کړي عمل خپل بېشکه رب ستا وروسته له دغې توبې څخه خامخا لوى مغفرت کوونکى دى ډېر رحم والا (په انعام د اجر او ثواب سره).



## ځينې خلک ګناه کوي او وايي چې اوس څه تلوار دى څه زمانه وروسته به توبه وکاږم:

دغه سړي ته بايد وويل شي چې وروره! دا څه معلومه ده چې ته به نور هم ژوندى يې، کېداى شي چې همدا اوس مړ شې، او يا پر سړک روان يې موټر دې ووهي او مړ شې او که ژوندى هم پاته شې کېداى شي چې پر توبې توفيق پيدا نه کړې دا خبره په ياد ولرئ: څومره چې ګناه ډېرېږي، هغومره د زړه توروالى هم ډېرېږي، ورځ په ورځ د توبې توفيق کمېږي، داسې ډېر شوي دي چې ډېر خلک بې له توبې مړه شوي دي، افسوس دى د هغو خلکو پر حال چې ژر تر ژره توبه نه کاږي او د اينده لپاره خپل اعمال نه اصلاح کوي.

## ډېر خلک بيا وايي چې اوس به ګناه وکړو بيا به بېرته توبه وکاږو:

دغه سړي ته بايد ووايو چې داسې ده نو راشه وروره! يو وار خپله ګوته په اور کې ونيسه بيا ملهم پرې ولګوه، زه يقين لرم چې دا کار به هيڅکله ونه کړې، چې داسې ده نو بيا ډېر د افسوس خبره ده چې څنګه پر ګناه باندې دومره غټې جرئت کېږي، بيا دا راته ووايه چې تا ته دا څه معلومه ده چې خامخا به پر توبه توفيق پيدا کوې، او که دې توبه هم وکښل نو آيا ستا دا فکر دى چې ستا د توبې قبلېدل د خداى ﷻ پر ذمه واجب دي، نه! داسې نه ده، ستا د توبې قبلېدل هيڅکله د لوى خداى ﷻ پر ذمه نه دي واجب او بله خبره دا ده چې ډېرې داسې ګناوې شته چې په توبه نه معافېږي، يعني صرف

توبه کښل د لوی خدای ﷻ په حضور کې کفایت نه کوي بلکې د حقدار څخه معافي غوښتل او د هغه له لوري تاته معافي کول ضروري دي.

حضرت عبد الرحمن بابا رحمه الله هغه څوک چې مسلسله ګناهونه کوي او بیا تش په نامه توبې کاږي د بت سره برابر وي چې په ولاړي او په رونو سترګو خوب کوي:

دانسته ګناه کوې توبې وکاږې  لکه بت هسي په غټو سترګو خواب کړي

دی مبارک د خلکو پام وخپلو ځانونو ته را اړوي او ورته وايي چې بس ته نور وخت تیر دی، پر خپلو ګناهونو توبې وکاږئ او د آینده لپاره ونېکو کارونو ته لاس وروا چوئ او د بندګانو په خدمت لاس پوري کړئ، داسي نه وي چې تاسي د دنیا په عیش وعشرت کي ډوب یاست، په دې وخت کي مرګ درلره راشي او خوله مو وازه پاته شي، دی مبارک وايي چې د سهار په روښنایي باندي د سپوږمۍ د رڼا ګمان مه کوئ هغه به درباندي سهار شوی وي، مګر تاسي به لا د سپوږمۍ د رڼا ګمان باندي کوئ او دا روښنایي به د سپوږمۍ رڼا بولئ، یعني د ګور وغاړي ته به رارسېدلي یاست، مګر ستاسي به لا ورته فکر نه وي، او په خپلو ګناهونو کي به غرق یاست.

په پیرۍ کي چي هوس د میو ناب کړې  بې هوده ګمان په صبح د مهتاب کړې
بې طاعته عنایت له خدایه غواړې  د عتاب پر ځای امید د ثواب کړې
دانسته ګناه کوې توبې وکاږې  لکه بت هسي په غټو سترګو خواب کړې
په هغو غوږو چي ذکرد خدای اورې  بیا سماع په هغو غوږو د رباب کړې
په هغو شونډو چي حمد وثنا وایې  هم هغه شونډي بیا ډوبې په شراب کړې
علم وکړې هیڅ عمل ورباندي نه کړې  لکه طفل هسي لوبې په کتاب کړې
په شپه پروت یې د مغان په میخانه کښې  او د ورځې مخ په لوري د محراب کړې
تمام عمر د دنیا په طلب ګرځې  بیا دخدای په طالبانو ځان حساب کړې



په اخیره کي دی مبارک وايي چې دا فکر مه کوئ چې موږ به خپل بد عملونه د خالقه څخه پټ کړو، لوی خدای ﷻ ستاسي د زړه په رګونو خبر دی د هغه څخه خپل بد عملونه نه شئ پټولای، دا سمه ده چې د هغه د بندګانو څخه به خپل بد شکله مخ پټ کړئ او پر خپلو جنایتونو به پرده وغوړوئ، مګر چې خبره لوی خدای ﷻ ته ورسیږي او ته دلوی خدای ﷻ وحضور ته پېش کړل شې، هلته به څه کوې، هلته خو به ستا یو یو عمل را وسپړل شي او مه دا فکر کوه چې وجنت ته به په دوکه او فرېب سره ننوزم، دا فکر مه کوه ځکه چې د جنت په دروازه کي ستا د بد شکله مخ څخه د جنت دروازه وان نقاب پورته کوي، نو چې نقاب ځیني پورته شو او ستا بد مخ ښکاره کړل شو، بیا هلته ستا ورتګ ممکن نه دی، نو هیله ده که چیري په رښتیا هم هوښیار یې او په سر کي یو څه عقل لرې ظاهر او باطن دي د خیرو څخه پاک کړه او یو واقعي انسان او یو کامل مسلمان له ځانه څخه جوړ کړه.

حضرت عبد الرحمن بابا مبارک فرمايي چې دا سمه خبره نه ده چې د خپل خالق او مالک څخه شرم نه لرې په پټه چې دي څه زړه غواړي کوې یې، مګر د خلکو په وړاندي بیا په ځان د بزرګۍ چپنه واغوندې او د ریا لباس په تن کړې، ځان په اوو غلافو کي پټ کړې او د ځانه څخه سپینه ملائکه جوړه کړې مګر که دي څوک باطن ته نظر وکړي داسي تور وي لکه توره تبۍ.

له خالقه دي نه شرم نه حجاب وي  له رحمانه ګوښې ونیسې حجاب کړې

## ځینې خلک ګناه وکړي او وايي چې دا به مې په تقدیر کې لیکلي وه:

دا خبره ډېره اسانه ده هر کس او ناکس ور څخه ګټه اخلي، دغو خلکو ته باید

وویل شي چې که داسې ده یعني که دې پر تقدیر دا ډول اعتماد وي نو بیا خو په ټولو دنیوي معاملاتو کې هم دا ډول اعتماد په کار دی، یعني که چیرې تا ته یو څوک زباني او یا مالي تاوان در ورسوي نو باید هیڅ بد ورته ونه وایې، بلکې باید ووایې چې په تقدیر کې به مې همداسې لیکلي وه، یعني مجرم ته باید هیڅ سزا ورنه کړل شي او قاضي هم باید نوره استعفی وکړي او ولاړ شي پر کور کښېني، ځکه چې دده نور ضرورت نه شته.

وروره! په دې صورت کې د تقدیر څخه انکار کوئ، چې څوک یوه معمولي خبره درته وکړي برداشت یې نه لرئ او هلته بیا په ګناه کولو کې تر ټولو زیات پر تقدیر ایمان لرئ او وایې چې همداسې به مې په تقدیر کې لیکلي وه.

## ځینې خلک وایي چې مشقت او تکلیف په کار نه دی که مو په نصیب کې جنت لیکلی ؤ، جنت ته به ځو او که دوږخ لیکلی ؤ، دوږخ ته به ځو:

دغو خلکو ته باید وویل شي، ښه! چې داسې ده نو په دنیوي معاملاتو کې ولې هڅې او تدبیرونه کوئ، د خوراک او ډوډۍ لپاره څومره ځغلئ او نه ستړي کېدونکي کوښښونه کوئ، کرئ یې یوې کوئ یې او میده کوئ یې بیا اوړه خیشتوئ او ډوډۍ ورڅخه پخوئ، ګوله ځینې جوړوئ او خولې ته یې وړئ، نو که داسې وي هیڅ مه کوئ، که مو په قسمت کې ډوډۍ لیکلې وه پخپله به ډوډۍ پیدا شي ګوله به جوړه شي او خولې ته به مو ولوېږي، نوکري او مزدوري ولې کوئ، کښت او زراعت ولې کوئ، که د اولاد غوښتنه لرئ نو نکاح ولې کوئ؟

نو دا چې د تقدیر د ثبوت سره د دغه مسبباتو لپاره ځانګړي اسباب غوره کوئ



نو همدا ډول د اخرت د نعمتونو لپاره هم د هغه اسباب یعني صالح عملونه یو ځای کېدل ضروري دي.

## ځینې خلک بیا وایي چې زموږ و صالح عملونو ته الله ﷻ هیڅ اړتیا نه لري، نو د صالح عملونو وکولو ته څه ضرورت دی:

موږ ورته وایو چې هو! دا بېخي صحیح او رښتیا خبره ده چې الله ﷻ د هیچا و عمل ته ضرورت نه لري او نه یې و ده ته کومه فائده رسیږي، پاته چې دا خبره شوه چې ښه! لوی خدای ﷻ ته چې زموږ د عبادت ګټه نه رسیږي او نه دی ضرووت ورته لري نو عبادت او صالح عملونه باید ونه کړل شي. دا غلطه خبره ده.

اصل خبره داده چې په ښه عمل او عبادت کولو کې ستا ګټه ده، ځکه چې عمل خو ستا لپاره ټاکل شوی دی، نه د الله ﷻ د فائدې لپاره، نو الله ﷻ که مستغني دی ته خو مستغني نه یې، ددې خو داسې مثال دی چې یو پوه او مهربانه طبیب که د یو ناروغه سره مهرباني وکړي مفته دوا ور وښیي مګر ناروغه فکر وکړي چې په دې کې خو د طبیب هیڅ ګټه نه شته، مطلب دا دی چې مریض د هغه طبیب دوا و نه خوري، نو ښکاره خبره ده چې په دې کار کې خو طبیب ته هیڅ تاوان نه رسیږي او نه کومه ګټه ور ته رسیږي، بلکې پخپله و مریض ته تاوان رسیږي نا روغي یې نه جوړیږي او که د هغه مهربانه طبیب دوا وخوري نو ناروغي به یې ښه شي او صحت به پیدا کړي.

نو اوس مطلب دا دی که چیرې ته نېک عملونه وکړې تا ته یې ګټه رسیږي او که بد عملونه وکړې تا ته یې توان رسیږي، ستا نېک عملونه نه لوی خدای ﷻ ته

گنهه رسوي او نه ستا بد عملونه خدای ﷻ ته تاوان رسوي، بلکې دا هر څه ستا لپاره دي که ښه کوې او که بد.

## د مستحباتو اهمیت:

د قرآن شریف هر جزء ضروري دی، هیڅ غیر ضروري خبره پکښې نشته، حتی په هغو آیاتو نو کې چې صرف د مستحباتو ذکر پکښې شته. د هغه مضمون هم ضروري دی، که څه هم چې نن سبا ډېر خلک مستحبات ضروري نه بولي او هیڅ اعتبار نه ورکوي.

هو، دا صحیح ده چې مستحبات د عمل کولو په هکله د واجباتو او فرائضو سره برابر ضروري نه دي، مگر ددې څخه انکار نه شي کېدای چې د واجبو په شان د مستحباتو تعلیم هم ضروري دی دا په دوو وجهو:

یو خو په دې وجه چې خلکو ته دا معلومه شي چې دا کار مستحب دی، داسې نه وي چې نا جائز یې وبولي، او یا د فرضو او واجبو درجه ورکړي. یعني داسې یې ضروري و بولي لکه فرض او واجب، چې دا کار هم شرعًا روا نه دی.

دوهم په دې وجه هم د مستحباتو تعلیم ډېر ضروري دی چې د دوی برکات او ثمرات بېخي ډېر دي. که چیرې د مستحباتو تعلیم ورنه کړل شي، نو ضروري خبره ده چې د هغوی سره یې دلچسپي له منځه ځي او که چیرې د دوی په برکاتو او ثمراتو علم راشي، نو هغه ادنی ادنی مستحبات به لا هم حاصل کړل شي.

دا ډېره د افسوس خبره ده چې موږ د دومره قیمتي جواهراتو څخه ناخبره یو. مطلب دا دی چې په قرآن شریف کې د مستحباتو ذکر بې ضرورته نه دی راغلی. د دوی ذکر هم ډېر ضروري دی، ددې قدر هغه چا ته ورمعلومېږي چې د لوی خدای ﷻ او دده د احکامو سره مینه او محبت ولري، ځکه چې د یو رښتیني عاشق



طبیعت جلا وي، رښتیني عاشق د خپل محبوب د خوشالۍ لپاره د یوې ډېرې کوچنۍ خبرې په تلاښ لا پسې وي او چې کله ورته معلومه شي چې زما محبوب په فلانۍ خبره خوشاله کیږي او دا کار زما د محبوب د خوشحالۍ سبب جوړیږي، نو دی ډېر کوښښ کوي چې داسې یو کوچنۍ خبره لا هم ځیني پاته نه شي چې په هغه دې دده محبوب خوشاله کیږي.

که چیرې موږ ته داسې عاشقانه طبیعت حاصل شي، نو هلته به موږ ته د مستحباتو قدر رامعلوم شي، موږ باید دا د لوی خدای ﷻ او د جناب رسول الله ﷺ ډېر غټ احسان وبولو چې زموږ سره یې کړی دی او موږ ته یې داسې ډېر شیان راښودلی دي چې د هغوی په کولو سره د الله ﷻ خوشالي زموږ لاسته راځي.

مگرهو، دې خبرې ته دې ستاسې فکر وي چې په دې هکله غلو، تشدد او ترحد تېرې نه دی په کار ځکه چې ځینې وخت د شریعت د مصلحت په وجه د یو مستحب کار پرېښودل بالکل واجب گرځي لکه فقهاوو چې لیکلي دي. که چیرې په یو مستحب کار سره په عقیده کې فساد راتلی نو ددغه مستحب کار پرېښودل لازم او ضروري دي. (**امداد الفتاوی**)

تر دې وروسته حکیم الامت فرمایي. آیا دا بدعت نه دی چې یو غیر واجب، واجب وبولي آیا دا د بدعت په تعریف کې داخل نه دی؟ په دې هکله پوره بحث به وروسته پر خپل ځای راشي.

## عاشقان ځان ته طبیعت لري:

که چیرې په شریعت کې صرف د ضروریاتو یعني صرف د فرضو او واجبو ذکر وای، د مستحباتو ذکر نه وای، نو ښکاره خبره ده چې په هغه صورت کې

ګنه رسوي او نه ستا بد عملونه خدای ﷻ ته تاوان رسوي، بلکې دا هر څه ستا لپاره دي که ښه کوې او که بد.

## د مستحباتو اهمیت:

د قرآن شریف هر جزء ضروري دی، هیڅ غیر ضروري خبره پکښې نشته. حتی په هغو آیاتو نو کې چې صرف د مستحباتو ذکر پکښې شته. د هغه مضمون هم ضروري دی، که څه هم چې نن سبا ډېر خلک مستحبات ضروري نه بولي او هیڅ اعتبار نه ورکوي.

هو، دا صحیح ده چې مستحبات د عمل کولو په هکله د واجباتو او فرائضو سره برابر ضروري نه دي. مګر ددې څخه انکار نه شي کېدای چې د واجبو په شان د مستحباتو تعلیم هم ضروري دی دا په دوو وجهو:

یو خو په دې وجه چې خلکو ته دا معلومه شي چې دا کار مستحب دی، داسې نه وي چې نا جائز یې وبولي، او یا د فرضو او واجبو درجه ورکړي، یعني داسې یې ضروري و بولي لکه فرض او واجب، چې دا کار هم شرعًا روا نه دی.

دوهم په دې وجه هم د مستحباتو تعلیم ډېر ضروري دی چې د دوی برکات او ثمرات بېخي ډېر دي، که چیرې د مستحباتو تعلیم ورنه کړل شي، نو ضروري خبره ده چې د هغوی سره یې دلچسپي له منځه ځي او که چیرې د دوی په برکاتو او ... علم راشي، نو هغه ادنی ادنی مستحبات به لا هم حاصل کړل شي.

...ره د افسوس خبره ده چې موږ د دومره قیمتي جواهراتو څخه ناخبره یو. ...ب دا دی چې په قرآن شریف کې د مستحباتو ذکر بې ضرورته نه دی راغلی. د ... ذکر هم ډېر ضروري دی، ددې قدر هغه چا ته ورمعلومیږي چې د لوی ...دای ﷻ او ... کامو سره مینه او محبت ولري، ځکه چې د یو رښتیني عاشق



طبیعت جلا وي، رښتینی عاشق د خپل محبوب د خوشالۍ لپاره د یوې ډېرې کوچنۍ خبرې په تلاښ لا پسې وي او چې کله ورته معلومه شي چې زما محبوب په فلانۍ خبره خوشاله کیږي او دا کار زما د محبوب د خوشحالۍ سبب جوړیږي، نو دی ډېر کوښښ کوي چې داسې یو کوچنۍ خبره لا هم ځیني پاته نه شي چې په هغه دي دده محبوب خوشاله کیږي.

که چیرې موږ ته داسې عاشقانه طبیعت حاصل شي، نو هلته به موږ ته د مستحباتو قدر رامعلوم شي، موږ باید دا د لوی خدای ﷻ او د جناب رسول الله ﷺ ډېر غټ احسان وبولو چې زموږ سره یې کړی دی او موږ ته یې داسې ډېر شیان راښودلي دي چې د هغوی په کولو سره د الله ﷻ خوشالي زموږ لاسته راځي.

مګرهو، دې خبرې ته دې ستاسې فکر وي چې په دې هکله غلو، تشدد او ترحد تېری نه دی په کار ځکه چې ځیني وخت د شریعت د مصلحت په وجه د یو مستحب کار پرېښودل بالکل واجب ګرځي لکه فقهاوو چې لیکلي دي: که چیرې په یو مستحب کار سره په عقیده کې فساد راتلی نو ددغه مستحب کار پرېښودل لازم او ضروري دي. (**امداد الفتاوی**)

تر دې وروسته حکیم الامت فرمایي: آیا دا بدعت نه دی چې یو غیر واجب، واجب وبولي آیا دا د بدعت په تعریف کې داخل نه دی؟ په دې هکله پوره بحث به وروسته پر خپل ځای راشي.

## عاشقان ځان ته طبیعت لري:

که چیرې په شریعت کې صرف د ضروریاتو یعني صرف د فرضو او واجبو ذکر وای، د مستحباتو ذکر نه وای، نو ښکاره خبره ده چې په هغه صورت کې

به عاشقان ډېر نارامه وای ځکه چې عاشق صرف په ضروریاتو اکتفاء نه کوي دا خو دوی فرضي منصبي بولي، بلکې دوی غواړي چې د فرضي منصبي څخه ماسېوا نور داسې څه هم وکړي چې د خپل محبوب د نورو په نسبت ورده ته ډېره توجه راوګرځي.

ورونو! زموږ تعلق د حق تعالی ﷻ سره صرف قانوني بڼه اختیار کړې ده. نو ددې وجې موږ مستحبات بې فائدې شیان بولو او د قدر په سترګه نه ورته ګورو، که چیرې زموږ تعلق د لوی خدای ﷻ سره د محبت او مینې تعلق وای. نو هیڅکله به مو یوازې په فرائضو او واجباتو قناعت نه کولای. بلکې ددې سره به د مستحباتو په تلاښ هم پسې وای او د کومې خبرې په هکله چې دا راته معلومه شوې وای چې لوی خدای ﷻ په دې کار خوشاله کیږي. نو د هغه کار و طرف ته به مو په ډېر شوق سره ورځغستلای او د خلکو سره به مو په دې باره کې سیالي کولای او د کوم کار په هکله چې دا راته معلومه شوې وای چې دا کار د حق تعالی ﷻ نا خوښه دی په ځغاسته به ځینې تلای او دا تحقیق به مو نه کولای چې آیا دا کار یې ډېر نا خوښه دی او که لږ. ځکه چې د عاشق لپاره صرف دومره کافي دی چې ده ته دا معلومه شي چې زما د محبوب دا کار نه دی خوښ. دی نور ددې تفصیل نه غواړي چې په کومه اندازه کې یې نه دی خوښ، آیا دومره یې نه دی خوښ چې ددې سزا وهل او بندي کېدل دي. او که یې دومره نه دی خوښ چې زما محبوب صرف ددې څخه مخ ګرځوي او خوښ یې نه بولي.

عاشق ته دا دواړه صورتونه سره برابر دي، عاشق هیڅکله دا نه خوښوي چې زما محبوب دې زما څخه صرف مخ وګرځوي، او د عاشق له خوا د هغه کار کول چې سزا یې بندي کېدل او وهل وي ببخي سوال نه پیدا کیږي.



## د لوی خدای ﷻ سره زموږ په تعلق کې ضعف راغلی دی:

نن سبا زموږ حالت داسې جوړ شوی دی که چیرې د یو کار په هکله دا راته معلومه شي چې دا ګناه ده، نو موږ ته سمدلاسه دا سوال راپیدا کیږي چې آیا صغیره ده او که کبیره یعني غټه ده او که کوچنۍ؟ دا ددې لپاره که چیرې کوچنۍ وي نو کوو یې او که غټه وي نو ځان ځینې ساتو، ددې څخه دا په ډېره ښه توګه سره څرګندیږي چې زموږ تعلق د الله ﷻ سره ډېر ضعیفه شوی دی. که څه هم چې پوره بې تعلقي خو نه ده راغلې مګر ضعف ضرور راغلی دی. ځکه چې دغه سوال کول د تعلق د ضعیفوالي یو ښکاره دلیل دی. دا سمه خبره ده چې د الله ﷻ سره زموږ تعلق شته. بالکل قطع شوی نه دی. ځکه چې دده ډېره ناراضي مو نه ده خوښه. که چیرې دومره تعلق هم نه وای، نو بیا خو ددې سوال ضرورت نه پیدا کېدی چې آیا غټه ګناه ده او که کوچنۍ؟

ددې څخه معلومه شوه چې د غټې ګناه څخه بېرېږو او د خدای ﷻ ډېره ناراضي مو نه ده خوښه. مګر دا چې ډېر تعلق نه ورسره لرو، نو په لږ ناراضي یې سودا نه بندوو او فکر نه په خرابوو.

## نفس تعلق کافي نه دی کمال تعلق مقصود دی:

په دې خبره کې هیڅ شک نشته چې پر نفس تعلق قناعت نه شي کېدای، دا موږ چې یو تر بله کوم تعلقات لرو آیا یو څوک دا راښوولای شئ چې صرف پر نفس تعلق هم قناعت کېدای شي؟ هیڅکله نه! بلکې کمال تعلق مطلوب دی، د مثال په ډول د کوروالا یعني مېرمنې سره چې زموږ تعلق دی دا په ظاهره ببخي ضعیف تعلق دی

يعني صرف په دوو لفظونو چي ايجاب او قبول نوميږي لاسته راځي او په يوه لفظ يعني طلاق سره له منځه ځي، مګر ددې باوجود د خپلې ښځې سره پر نفس تعلق قناعت نه کيږي، بلکې د هر سړي دا غوښتنه ده چې زه دې د خپلې ښځې سره کامل تعلق ولرم، نو ددې وجې صرف پر ضروري حقوقو اکتفاء نه کيږي، بلکې د هغې د خوشالولو لپاره داسې ډول، ډول زېورات او لباسونه تياريږي چې هغه د مېړه پر ذمه واجب نه دي، صرف ددې وجې چې تعلق زيات شي دا کارونه کيږي.

که چيرې مېړه د مابينې سره صرف قانوني علاقه ولري او تر ضروري حقوقو زيات نور څه ونه کړي، نو په دې صورت کې خو هم نفس تعلق باقي پاته کېداى شي، مګر دا خبره يقيني ده چې د تعلق خوند له منځه ځي، بلکې په دې صورت کې د تعلق د پرېکېدلو انديښنه لا هم کېداى شي، د تعلق بقا هغه وخت کېدلاى شي چې د استحکام او لا ښه ټينګوالي لپاره يې تدابير په پام کې ونيول شي. حال دا دى چې د خداى ﷻ سره د تعلق په نسبت دا يو ډېر ضعيف تعلق لا هم دى. مګر ددې ضعف سره سره بيا هم ددې قطع کېدل هيڅوک نه خوښوي، وګوره! ددغه ضعيف تعلق د نه قطع کېدلو لپاره څومره زيات کوښښونه کيږي او مختلف تدابير ورته نيول کيږي.

ښه فکر وکړه دا څومره د حيرانتيا خبره ده چې موږ په داسې ضعيف تعلق کې لا هم پر نفس تعلق قناعت نه کوو، بلکې ددې لپاره چې دغه تعلق قطع نه شي د استحکام ؤلا ښه ټينګتيا لپاره يې فکر وهو او تدابير ورته نيسو، مګر د لوى خداى ﷻ سره پر نفس تعلق اکتفاء کوو، حال دا دى چې د حق تعالې ﷻ سره زموږ دومره قوي تعلق دى چې هيڅ شى نه شي ورسره برابرېدلاى.

ښه نو چې حقيقت دا ډول دى، نو دا څومره د افسوس خبره ده چې موږ د دغه ستر تعلق په مضبوطولو کې هيڅ فکر نه وهو او صرف نفس تعلق کافي بولو، دا



خيال ولې نه کوو چې د تعلق بقاء پر استحکام باندې موقوفه ده، نفس تعلق د بقاء لپاره کافي نه دى، آيا موږ يو وخت د حق تعالى سره د تعلق په ښه ټينګېدو کې فکر کړى دى؟ هيڅکله نه! نو چې داسې ده، ضرور به مولانا رومي رحمه الله موږ ته د اعتراض ګوته نيسي او په دې ټکو سره به مو وحقيقت ته پام را اړوي:

| |
|---|
| اى کـــه صـــبرت نيـــست از فرزنـــدوزن |
| صـــبر چـــون دارى ز ربِّ ذوالمـــنن |

يعني اې سړيه! ولې د خپلې ښځې او اولادونو د خوشالولو په فکر کې غرق يې او هيڅکله ددې فکره څخه نه فارغه کېږې، مګر د خپل مالک او پروردګار د رضاء د لاسته راوستلو څخه تل فارغه ناست يې او صبر دې اختيار کړى دى؟

دا ډېره د افسوس خبره ده چې موږ د کوچني کوچني شيانو څخه صبر نه شو کولاى، مګر نه ده معلومه چې د خداى تعالى ﷻ څخه ولې صبر راغلى دى. دا سمه خبره ده چې د حق تعالى ﷻ سره نفس تعلق هم يو نعمت دى، خو د تعلق پر ضعيفوالي باندې قناعت کول دا ډېر غټ ظلم دى، بايد ووايم چې ځينې خلک خو ښخي پر بې تعلقۍ هم راضي دي، مګر هغه کافران دي، موږ دلته د هغوى څخه بحث نه کوو.

ورونو! موږ بايد هغه څه وکړو چې د لوى خداى ﷻ رضاء لاسته پکښې راځي. زما مطلب دا نه دى چې دا کار بايد موږ يوازې په نفلونو او وظائفو کې ولټوو، بلکې دا کار د خداى ﷻ د مخلوق په خدمت کې هم ډېر ښه لاسته راځي، ځکه چې د خداى ﷻ رضا يوازې د ځان په وړې کولو او نفلي روژو نيولو کې نه شته، بلکې د مسکينانو او فقيرانو په مړولو کې هم لاسته راځي، همدا رنګه چوپ کښېناستل او د لوى خداى ﷻ په فکر او ذکر مشغولېدل عبادت دى، مګر زورورو ته حق ويل او حق بيانول تر دې لا ستر عبادت دى، تاسې فکر وکړئ تسبيح اړول به ډېر ثواب

لري او که په سرو غارمو کې يوې کول او يو مسکين مړول؟ پر جاى نماز باندې قرار کښيناستل به ډېر ثواب لري او که د خداى په لاره کې سترى کېدل؟.

رښتيا ووايا ست آيا د بل په خيرات روژه ماتول به ډېر ثواب لري او که خپل مال د مسکين او فقير سره خوړل، ما خبر کړئ پاک خداى ﷻ د خيرات په اخيستلو خوشاله کيږي او که يې په ورکولو؟

راشئ د خداى ﷻ د مخلوق خدمت وکړو يو مظلوم د ظالم د منګولو څخه خلاص کړو، د يوې کونډې پر سر پوړنى ور واچوو، د يتيم پر سر لاس تېر کړو او اوښکې يې پاکې کړو، د غريب او ناروغ مرسته وکړو، تر څو د لوى خداى ﷻ رضاء لاسته راشي او پر موږ رحم وکړي، يوه پوروړي ته پور ورکړو. د يو ناروغه دارو او درمل وکړو، د خداى ﷻ مخلوق خپل خادمان جوړ نه کړو. بلکې موږ د دوى خادمان ځانونه جوړ کړو، ځکه چې د خداى ﷻ رضاء په خدمت کولو کې لاسته راځي. په دې کې د خداى ﷻ رضاء لاسته نه راځي چې د خداى مخلوق د خپلو ځانونو خادمان جوړ کړو نو که څوک غواړي چې د خداى ﷻ رضا لاسته کړي، بايد د هغه د مخلوق خدمت ته لوستوني راپورته کړي. او که د شيطان رضا غواړي نو بايد په هر صورت چې وي د خداى ﷻ مخلوق د ځان خادمان کړي. نور ستاسي خوښه ده که د رحمن دوستي غواړئ او که د شيطان، دا په تاسو پورې اړه لري.

## د مستحباتو برکتونه

په قرآن شريف کې د مستحباتو ذکر هم راغلى دى، نو بايد ووايم چې د هغو تعليم هم ضروري دى، ځکه چې د هغو برکات او ثمرات بېخي زيات دي مثلاً يو برکت يې دا دى چې ځينې وخت مستحبات د ګناه څخه سړى راګرځوي، ځکه چې هغه سړى چې د تهجد او اشراق پابنده وي دا سړى د هغه



چا په نسبت چې صرف پنځه وخته فرض لمونځونه کوي ډېر د ګناه څخه ځان ساتي او ددې څخه علاوه يو بل خاصيت لا هم پکښې پيدا کيږي چې دى په خلکو کې په تهجد ګزار او ديندار ه سړي سره مشهوره کيږي، چې د هغه په وجه ده ته د ګناه په کولو کې شرم دريږي.

دوهم برکت يې دا دى چې ځينې وختونه د يو مستحب کار په کولو سره الله ﷻ د خپل بنده څخه دومره ډېر راضي کيږي چې حتى دغه مستحب کار يې د نجات ذريعه جوړه شي، په دې هکله دوې قصې زه دلته رانقلوم، يوه د يوه بزرګ قصه ده چې په دې ډول ده:

## د يوه بزرګ قصه:

وايي چې يو وخت يو بزرګ د شپې چې ډېر زيات يخ ؤ يو ځاى ته د يو کار لپاره روان ؤ، که ګوري په لاره کې يوه پيشي ولاړه ده او د ډېره يخه څخه سره ريږدي، ددغه بزرګ پر دې پيشي ډېر زړه وسوځل شو، نو په غيږ کې يې را واخيستله. کور ته يې راوړله او هلته يې په توکره کې ويېچله. کله چې دغه بزرګ وفات شو، نو الله ﷻ دده څخه پوښتنه وکړه چې زما لپاره دې څه شى راوړى دى؟ دغه بزرګ فکر وکړى چې اعمال خو مې ددې قابل نه دي چې د الله ﷻ حضور ته يې وړاندې کړم، مګر الحمدلله زما سره خو د ايمان دولت راسره دى، په دې کې هيڅ ريانه شي راتلاى. نو دغه بزرګ فکر وکړ چې زه بايد د الله ﷻ حضور ته ايمان پېش کړم، هغه ؤ چې الله ﷻ ته يې ووېل: نور اعمال خو مې ددې قابل نه دي چې ستا پاک حضور ته يې وړاندې کړم مګر توحيد مې راوړى دى، ستا سره مې نه څوک په ذات او نه هم په صفاتو کې شريک کړي دي، الله ﷻ دده د خبرې په جواب کې وفرمايل اَتَذْكُرُ لَيْلَةَ اللَّبن. يعني آيا هغه د شيدو شپه دې په ياد ده؟ يوه ورځ تا شيدې

وخښلي وروسته دې پر نس درد شو، نو دې وويل چي شيدو زما پر نس را درد کړ، آيا توحيد دې ته ويل کيږي چي د درد فعل دې د شيدو و طرفته منسوب کړ، پرېښودلم او شيدې دې مؤثرې وبللې حال دا دی چي حقيقي موثر خو زه يم؟

بزرگ چي دا خبره واورېده، نو بېچاره سره ولړزېدی، وروسته الله ﷻ ورته وفرمايل: زه خو دې بخښمه، مگر په داسې شي سره دې بخښم چي د هغه په اړوند تاهيڅکله دا فکر نه دی کړی چي دا به زما د نجات سبب جوړيږي، که ستا په ياد وي يوه شپه چي ډېر يخ ؤ، ستا پر يوې پيشي زړه وسوځل شو او رادې وستله په کور کې دې توده کړه، تا چي زما پر مخلوق رحم وکړ نو زه خو ډېر رحم کوونکی او مهربان يم، څه ولاړ شه بخښلی مې يې.

وگورئ په مستحباتو کې څومره عنايات او برکات شته. په احاديثو کې ډېرې داسې واقعې راغلي دي چي په يو ادنی ادنی کار سره مغفرت نصيب شوی دی.

وروره! څوک چي د الله ﷻ لپاره ښه په اخلاص سره يو کار وکړي هغه که دده په نظر هر څومره ادنا وي، مگر د لوی خدای ﷻ په نزد ډېر غټ مقام ورکول کيږي، ځکه چي خپله اخلاص د لوی خدای ﷻ په نزد تر ټولو غټ عبادت دی. د لوی خدای ﷻ دوستان فرمايي چي اخلاص يو داسې شی دی چي نه سره زر ورسره برابرېدای شي، نه جواهرات او نه بل څه، لکه مولانا عبد الغفار بريالی چي فرمايي:

هغه چاري چي په چا کاندي اخلاص　　نه يې زر کا، نه يې زور، نه يې قصاص

فلک وگوره د لمر له يکرنگئ څه　　په خدمت گرځي همېش لکه رقاص

چي په زور کا فولادي قيد څو توکره　　هغه نه سي د احسان له قيده خلاص

صداقت لکه کوره له تاوه گرمه　　ويلي کيږي يې په دم د زړه رصاص

د معنی بې سعادته بې مخ تور وي　　که په خوله کا څوک خان سعد بن وقاص



بې کرموته انسان هرگز مه وايه　　پر سړو، نه دي حساب هسي اشخاص

په نېکي که څوک غلام زرخريده سي　　بريالی لا تر هغو سي خاص الخاص

## د يوې بدکارې او فاحشې ښځې قصه:

د يوې بدکارې او فاحشې ښځې قصه په احاديثو کې په دې ډول راغلې ده وايي چي يوې بدکارې ښځې وليدل چي په يوه سره غارمه کې يو سپی د تندې څخه ډېر په عذاب دی او پر مځکه باندې سره لغړي، د دې ښځې پر دې سپي زړه وسوځل شو، هلته نژدې د اوبو يو څاه ؤ، مگر دغه څاه نه سلواغه درلوده او نه يې رسی درلوده، ددې لپاره چي دغه ښځه اوبه راوکاږي او سپي په اوبه کړي، نو يې خپل پوړنی را واخيستی ربنکی يې کړی، سره غوټه يې کړی، رسی يې ځيني جوړه کړل، خپله موزه يې د پښې څخه وکښله. دغه رسی يې پورې وتړله او څاه ته يې ورکښته کړل، په دې ډول يې د څاه څخه اوبه راوکښلې او سپی يې په اوبه کړ.

څو ورځې وروسته دغه ښځه مړه شول، جناب رسول الله ﷺ فرمايي چي دغه فاحشه ښځه الله ﷻ په دغه کار سره وبخښله، رښتيا يې ويلي دي چي د الله ﷻ رحمت د مغفرت لپاره قيمت نه. بلکي محض يو بهانه غواړي:

| |
|---|
| رحمت حق بهانه مى جويد |
| رحمت حق بهانمی جويد |

تاسې فکر وکړئ چي الله ﷻ پر حيوان باندې لا په رحم کولو سره دومره خوشاله کيږي، نو د انسان سره په احسان کولو، د هغه د مشکلاتو په رفع کولو، مظلوم د ظالمه څخه په خلاصولو، د يتيم پر سر د لاس په تېرولو او د هغه د اوښکو په پاکولو، د کونډې پر سر د پوړنې په اچولو ناروغ ته د درمل

په ورکولو، د غریب سره په مرسته کولو، د حاجتمند د حاجت په پوره کولو به څومره زیات خوشاله کیږي!

اروابښاد مولانا عبدالغفار بریالی رحمه الله د خلکو فکر دې خبرې ته را اړوي چې د خدای د مخلوق په خدمت لاس پوري کړئ، ځکه چې په همدې کار کې ستاسې ګټه ده. پام کوئ چې د زړونو په ازار اخته نه شئ چې د دواړو جهانو ناکامي به مو په برخه شي، نوموړی مولانا رحمه الله د انسان زړه د عرش سره برابروي او د خلکو ودې خبرې ته پام راګرځوي، چې د یو انسان د زړه ازارول د عرش نړېدل دي. نو که دي د عرش ونړېدلو ته ملا وتړل، ډېر ژر به دي هډونه مات شي. دی مبارک خلکو ته وصیت کوي، چې پام کوئ چې د یو ورور پر زړه تر ټولو تېره توره چې ژبه نومیږي راوا نه خلئ:

ولـــي همېـــشه پـــر کـــړه لار بانـــدي رفتـــار کـــوې
خـــان تـــه دي پـــام نـــسته د خوږمنـــو زړو ازار کـــوې
د عـرش پـه نړېـدو بـه دي اخيـر هډونـه مـات سـي
پر زړه بانـدي د ورور چـي د لغاز پـه تېشې وار کـوې
په هر خاى دي غريب، مسکين هـدف د زېـږ ويلـو دی
تېـز پـه تېـزی ګـډ يـې، پـه چپـه وينـا ګفتـار کـوې
روغ سـړی بـښکاربږې خـو کارونـه د احمـق کـوې
خـــان ملامـــت نـــه بـــولې وبـــدو تـــه تلـــوار کـــوې
څـه شـی دي حاصـل ليـدلی دی پـه زهيرولـو کـي
زيـان دي راتـه وايـه چـي لـه نېکـو څـه انکـار کـوې
خپـل عيبونـه پـټ سـاتې د سـتر پـه بوقچـه کـي
پـاش او بـرملا ولـــي د ورور خفـــي اســـرار کـــوې



وروسته دی مبارک فرمایي چې د انسان د زړه ازار دومره بد شی دی چې دده د زړه د آه په باد سره، ستا د سترو سترو عبادتونو کښتی هلاکېدای شي او د غرقېدو د خطر سره مخامخ کېدای شي:

کښتی د اطاعـت بـه دي د آه پـه بـاد هلاکـه سـي
د ژبي په خنجر چـي تـل پر هـر مظلـوم ګذار کـوې

## قصې او واقعات فی نفسه ډېر تـاثیرلري ، مګـر تـر ځایه پورې فرق لري:

نن سبا دا ډول خلک ډېر دي چې د رحمت واقعات واوري، بیا نو د عمل ضرورت نه حس کوي، یعني نېک عمل ته کوم ضرورت نه ویني، باید ووایم چې ددغو حکایاتو مثال د باران په ډول دی. باران پخپل ځان کې یو ډېر نرم او لطیف شی دی، مګر ددې اثر په ځای پورې تعلق لري، که چیرې عمده، همواره او خوړه مځکه وه نو تاسې به ووینی چې پر دغې مځکې به رنګارنګ سره او زرغونه ګلان راشنه شي او که بې کاره او بې خونده مځکه وه، نو د باران په کېدو سره به لا پسې بې خونده شي لکه شیخ سعدي رحمه الله چې فرمایي:

بـاران کـه درلطافـت طـبعش خـلاف نيـست
در بـاغ لالـه رويـد و درشـوره بـوم خـس

همدا ډول د رحمت واقعات اورېدل پر مختلف المزاجو خلکو مختلف اثر اچوي، کوم خلک چې غیر سلیم الطبع وي هغه دا فکر کوي چې الله ﷻ چې پر دومره کوچني شي سړی بخښي، نو بیا د صالح عمل کولو څه ضرورت دی او کوم خلک چې سلیم الطبع وي هغه بیا د رحمت د واقعاتو په اورېدلو سره تر مخکې لا

زيات د طاعت او عبادت لپاره ځانونه کمربسته کوي.

ځيني وختونه خو بې له سزا معافي ورکول د زړه خاوندان دومره ډېر شرمنده کوي چې اندازه نه شته. که چيرې يو څه سزا ورکول شوې واى، دوى دومره نه شرمنده کېدل. هغه خلک چې عقل او فکر ولري او يقينًا د سالم زړه خاوندان وي دوى که چيرې يو غټ جرم وکړي او يو څوک يې مفت معاف کړي دا دوى د خپل ځان حلالېده بولي، او وايي چې دغه سړي نور زه ګټلى يم، د زړه خاوند چې يو غټ جرم وکړي او بيا يې يو څوک معاف کړي، دى دومره شرمنده شي، زړه يې غواړي چې دا مځکه چاودلې واى او دى په ننوتلى واى.

يقيناً هغه خلک چې صحيح المزاجه او د صحيح فکر خاوندان وي. او هغه څوک چې د خداى ﷻ سره يې د محبت تعلق وي، دغه کسان چې د رحمت واقعات واوري، تر پخوا يې لا زيات پر طاعت او عبادت شوق راشي، هغه مريى ډېر بد او د کښنتې رتبې څښتن دى چې يو غټ جرم وکړي، مګر بادار يې بې له سزا ورکولو معاف کړي، خو دى ددې پر ځاى چې وشرمېږي او بل وخت داسې کار ونه کړي، نور پر جرائمو زورورشي، د بادار د معافۍ څخه بده استفاده وکړي، او په غټو غټو نافرمانيو کې تر پخوا لا زيات ډوب شي، او شريف دى هغه سړى چې يو غټ جرم وکړي، مګر بادار يې بې له سزا ورکولو معاف کړي، او دى په دې کار سره دومره وشرمېږي چې په ټول ژوند يې نه هېرېږي، او د تل لپاره د خپل بادار په مخکې سترګې و نه لري.

نو ددې وجې موږ ويلاى شو هغه سړى چې د رحمت د واقعاتو په اورېدلو سره په عمل کې کوتاهي راولي سقيم المزاج دى، دا ډول سړي ته په کار دي چې د خپل فکر اصلاح وکړي او د الله ﷻ سره د مينې او محبت تعلق پيدا کړي.



# د لوى خداى ﷻ د رحمت

# څخه نااميده کېدل نه دي په کار:

د انسان هغه وخت پر طاعت زړه کښېني چې د مخکنيو ګناهونو د ختمېدلو اميد يې وي او چې کله يې دا اميد ختم شي يعني دايي په فکر کې وروګرځي چې زما ګناهونه د معافۍ وړ نه دي نو بيا يې فکر له سره ووځي او چې څه يې زړه غواړي کوي يې. لکه هغه ناروغه چې دائمي ناروغي ولري، هر څومره دواوې چې وکړي مګر بيا هم ښه کېږي نه، نو دغه سړى مايوسه کېږي. او بيا هيڅ دوا نه خوري. که څه هم چې هغه دوا به دده دناروغۍ د علاج لپاره اکسير وي، مګر دا چې دى د خپلې ناروغۍ څخه مايوسه شوى دى. نو ځکه يې هيڅ دوا ته زړه نه کېږي.

همدا رنګه هغه کسان چې ګناهونه لږ کوي. د ګناه په کولو سره ډېر پرېشانه کېږي او هغه کسان چې ګناوې ډېرې کوي د ګناه په کولو سره ډېر نه پرېشانه کېږي. ځکه چې دغه سړي ته يو ډول بې حسي پېښه ده، ځيني وخت بيا انسان د ډېرو ګناهونو په کولو سره مايوسه شي او دا فکر وکړي چې زما د ګناهونو معافي نه شي کېداى، چې داسې ده نو بيا په خوندونو او ګناهونو کې ولې کمي راولم. بس دغه سړى د زړه د اخلاصه ګناهونو ته لاس ور واچوي، تر دې چې د مرګ وخت يې راشي لا توبه نه کاږي، که چيرې په دې وخت کې و ده ته وويل شي چې توبه وکاږه، دى په ښکاره ډول سره انکار کوي او وايي چې دومره ډېر ګناهونه په يوه توبه څنګه معافېداى شي؟

همدارنګه د شيخ الاسلام شاګرد حافظ ابن قيم رحمه الله ليکلي دي چې يوه سړي ته د مرګ پر وخت د کلمې ويلو وويل شوه، هغه بالکل انکار وکړ او ويې ويل چې زما و ګناهونو ته يوه کلمه څه شى ده؟ زما ګناهونه دومره زيات دي چې په زرو کلمو

17

ویلو هم نه شي معافېدای.

وګورئ دغه مایوسي دی تر دغه اندازې را رسولی دی چې اوس غټ غټ ګناهونه بښه د زړه د اخلاصه کوي او ښکو کارونو ته یې هیڅ زړه نه کېږي، وروښوا د خدای ﷻ د رحمت څخه مایوسي کفر ده، ځینې وخت ډېر ګناهونه آخر انسان ما یوسه کړي او تر کفره یې ورسوي، الله ﷻ دې هر مسلمان د دغسې حالت څخه وساتي، آمین.

## خوف او رجا یعني بیره او امید:

د یونان په فلسفیانو کې دوې ډلې تېرې شوې دي چې له دغو دوو ډلو څخه یوه ډله د ژړېدونکو او بله د خندېدونکو فلسفیانو په نوم یادېږي لومړۍ ډله هغه ډله ده چې د هرې واقعې څخه د نا امیدۍ او مایوسۍ نتیجه اخلي، دې ډلې ته ټوله دنیا یوه توره تیاره او د اغزو څخه یو ډک میدان ښکارېږي او بله ډله بیا هغه ده چې هغې ته بیا دنیا بې د عیش او آرام څخه بل شی نه ښکارېږي

د لومړۍ ډلې تعلیم دادی چې چپ او سېږئ او په ژوندانه کې ځان د مړو په صورت او شکل کړئ، دا ځکه چې د ژوندانه وروستی پړاو هم دادی. او د بلې یعنې دوهمې ډلې مفکوره بیا داده چې خورئ، چښئ، خوشحاله اوسئ او د سبا د غم هیڅ فکر مه کوئ

په اخلاقي لحاظ دا دواړې مفکورې د ترمیم وړ دي، که پر لومړۍ نظریې یقین وکړل شي، نو په دې صورت کې به د انسان ټولې قواوې د کار څخه ولوېږي او په انسان کې به د هیڅ کار د تر سره کولو اهمیت او قابلیت پاته نه شي او ځوک چې بیا په دوهمه عقیده باور لري هغه به بیا د غفلت په جامه مست او سرشار شي، او د ښو او بدو تمیز به پکښې بیخي پاته نه شي



د اسلامي تعلیم لاره ددې دواړو کوخو په منځ کې تېره شوې ده. اسلامي تعلیم له یوې خوا بیا بیا د دنیا د فنا او زوال قصې اوروي، دا په دې لحاظ چې د انسان زړه د غفلت په دغه جام مست او سرشار نه شي او له بلې خوا انسان دې کار ته نه پرېږدي چې د خدای ﷻ د رحمت څخه مایوس او نا امیده شي.

اسلام دا تعلیم ورکوي چې د ژوندانه تر وروستي وخته پورې د خدای ﷻ په تکیه ژوندون کوئ، په اسلامي شریعت کې د خدای څخه نا امیدي د کفر سره برابره شوې ده، اسلامي تعلیم د یو مسلمان زړه دې خبرې ته بیخي نه پرېږدي چې هغه دې د ډېر زیات مشکل په وخت کې هم د خدای ﷻ د هیلې څخه نا امیده شي، په قرآن مجید کې حضرت ابراهیم ﵇ ته د ملائکو په ژبه وویل شول:

قَالُوْا بَشَّرْنٰکَ بِالْحَقِّ فَلَا تَکُنْ مِّنَ الْقٰنِطِیْنَ قَالَ وَمَنْ یَّقْنَطُ مِنْ رَّحْمَةِ رَبِّهٖۤ اِلَّا الضَّآلُّوْنَ. (سورة الحجر آیت ۵۵- ۵۶)

**ترجمه**: وویل (ملائکو ابراهیم ته) چې زېری کړی دی موږ تاته په حقه سره، نو مه کېږه ته له جملې د نا امیدانو څخه، وویل (ابراهیم چې زه نه یم نا امیده، ځکه) چې نه نا امیده کېږي د خپل رب د رحمت څخه (هیڅوک) مګر (یو) هغه کسان چې ګمراهان دي.

د پورتني آیت په تفسیر کې حضرت شاه ولی الله دهلوی ﵀ لیکي: د الله ﷻ د عذاب څخه نه بېرېدل او د الله ﷻ له فضله نا امیده کېدل دواړه د کفر خبرې دي.

همدارنګه لوی قرآن د حضرت یوسف ﵇ په قصه کې د حضرت یعقوب ﵇ کلام را اخلي چې وخپلو زامنو ته خطاب کوي او دا راز فرمایي: وَلَا تَايْئَسُوْا مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ اِنَّهٗ لَا یَایْئَسُ مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ اِلَّا الْقَوْمُ الْکٰفِرُوْنَ. (سورة یوسف آیت ۸۷)

**ترجمه**: او د خدای د فیض څخه مه ناامیده کېږئ، (ځکه چي) د خدای د فیض څخه هغه څوک ناامیده کیږي چي کافران دي یعني د الله ﷻ د ذات او صفاتو څخه منکر دي

## ددې آیت په تفسیر کي تفسیر کابلی څه دا راز لیکي:

یعني د الله ﷻ د مهرباني او فیضه څخه ناامیده کېدل د کافرانو دود او طریقه ده چي هغوی دده د لوی رحمت او کامل قدرت څخه صحیح معرفت نه لري، د یو مسلمان کار دا وي چي که د غرونو د ډېرو په اندازه مایوسه کوونکي حالات هم ورپېښ شي، خو بیا هم د الله ﷻ د رحمت امیدوار اوسي او د امکان تر حده په کوښښ کي بې همتي او بې زړه توب نه کوي.

وګورئ الله ﷻ په خپل لوی کتاب قرآن کي وخپلو ګناه کارانو بندګانو ته په څومره مینه خطاب کوي:

**يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰى اَنْفُسِهِمْ لَاتَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا اِنَّهٗ هُوَالْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ. (سورة الزمر آیت ۵۳)**

**ترجمه**: ای زما (هغو) بندګانو! چا چي اسراف کړی دی په نفسونو خپلو (یعني هغه چا چي پخپله پر خپلو ځانونو ظلم کړی دی) د الله د رحمت څخه مه ناامیده کېږئ، (ځکه چي) الله ستاسي ټول ګناهونه دربخښي، بېشکه چي الله ﷻ ښه بخښونکی دی (د ګناهونو) او ډېر رحم والا دی (په انعام د اجر او ثواب سره).

له دې کبله حضرت محمد ﷺ په احادیثو کي انسانانو ته تل ددې خبري تاکید کړی دی چي د خدای د رحمت څخه مه ناامیده کېږئ، ده مبارک ویلي دي چي پاک خدای ﷻ فرمایي چي "زه د خپل بنده د ګمان ترڅنګه اوسېږم" یعني څه ډول چي



بنده زما په هکله ګمان کوي، زه د هغه لپاره هم هغه شان کېږم.

**(جامع ترمذی کتاب الزهد باب فی حسن الظن بالله)**

په دې باره کي د اسلام د عقیدې صحیح آینه دار او ترجمان دا مقدس آیت دی:

**اَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ اٰنَآءَ الَّيْلِ سَاجِدًا وَّقَآئِمًا يَّحْذَرُ الْاٰخِرَةَ وَيَرْجُوْا رَحْمَةَ رَبِّهٖ قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الَّذِيْنَ يَعْلَمُوْنَ وَالَّذِيْنَ لَايَعْلَمُوْنَ اِنَّمَا يَتَذَكَّرُ اُولُوا الْاَلْبَابِ. (سورة الزمر آیت ۹)**

**ترجمه**: آیا هغه څوک چي طاعت او عبادت کوونکی وي په ساعتونو د شپې کي، سجده کوونکی وي او ولاړ اوسیږي (او) بېرېږي (له عذابه) د آخرت او امید لري د خپل رب د رحمت (آیا دغه سړی داسي دی لکه هغه څوک چي بې فرمانه وي)، ووایه (ای محمده!) آیا سره برابر دي هغه کسان چي پوهیږي (یعني خاوندان د علم دي) د هغو کسانو سره چي نه پوهیږي (یعني جاهلان وي بلکي برابر نه دي) بېشکه همدا خبره ده چي پند اخلي خاوندان د خالصو عقلونو

## د پورتني آیت په تفسیر کي تفسیر کابلی یو څه زما احقر د زیاتوب سره دا راز لیکي:

یعني آیا هغه بنده چي د شپې خوب او ارام پرېږدي او د الله ﷻ په عبادت اخته وي، کله دده په حضور کي لاس تړلی درېږي، کله پر سجده ورته لوېږي، له یوه اړخه دده زړه د آخرت له ویرې بې قراره وي او له بله اړخه د الله ﷻ رحمت او مهرباني ته امیدوار وي آیا ددغه نېک بنده سره هغه بدبخته انسان برابرېدای شي چي ذکر یې ددې سورت په نورو آیاتونو کي تېر شوی دی چي د غم او مصیبت په

وخت کي الله ﷻ ته ناري وهي، خو څه وخت چي مصيبت او غم له ده څخه پورته شي، (نو هر څه تري هېر شي تر دي چي) الله ﷻ هم تري هېر شي؟ هيڅکله دغه دوه کسان نه شي سره برابرېدای، همدارنګه لکه پوه او ناپوه چي نه شي سره برابرېدای او د دوی دوو په منځ کي هم بېخي زيات فرق شته، مګر په دغو خبرو هغه څوک پوهېدای شي چي غور او فکر لري، يعني چي لوی خدای ﷻ ورته عقل او پوهه ورکړې وي، يعني د مسلمان په زړه کي بايد دا دواړه کيفيتونه سره يو ځای او ملګري وي، يو د ګناهونو او تقصيرونو د مواخذې او پوښتني بېره، دوهم د خدای د رحمت د اميد هيله.

د خدای ﷻ د غضب څخه بېرېدل او د هغه و رحمت ته هيله او اميد لرل همدا شی د اسلام تعليم دی، دا ځکه چي دغه بېره انسان و غفلت، بېباکی او بې شرمی ته نه پرېږدي او له بله اړخه بيا اميد انسان و مايوسه کېدلو، غمجن توب او زړه ماتېدلو ته نه پرېږدي، له دې کبله د يو مسلمان زړه تل د بد انجام څخه په بېره کي وي لېکن له بلي خوا د توقعاتو څخه هم ډک وي، همدې مطلب ته قرآن مجيد اشاره کوي او د ايمان خاوندانو ته فرمايي:

وَتَرْجُوْنَ مِنَ اللهِ مَالَا يَرْجُوْنَ. (**سورة النسآء آيت ۱۰۴**)

**ترجمه**: اوتاسي د خپل خدای څخه هغه هيله او اميد لرئ چي کافران يې نه لري.

همدا هغه ذهني فرق دی چي د مشکلاتو په وخت کي د يو مؤمن او د يو کافر په زړه کي پيدا کيږي، کافر د خپل هر کار او عمل جزا په دنيا کي غواړي او چي دغه جزا په دنيا کي په لاس ورنه شي، نو زړه يې مات او نااميده شي، همدارنګه کافر کاميابي يوازي مادي کاميابي ګڼي او چي هغه په لاس ور نه شي، نو غمجن او نااميده شي، لېکن که د يو مؤمن ظاهري او د دنيامادي کاميابي په برخه نه شي،



نو سره ددې هم د هغه زړه په دې خبره ډاډه او خوشحاله وي، چي ما خو ښه او نېک کار وکړ، که په دنيا کي ددې بدله را نه کړل شي، نو په آخرت کي خو ما ته ارومرو ددغه نېک کار جزا راکول کيږي، يعني که د دنيا کاميابي مي په برخه نه شوه، هيڅ پرواه نه لري، مګر د خدای ﷻ رضا او ثواب خو به په هر حال زما په برخه شي، دا د همدې يقين نتيجه ده چي مسلمانانو ته يې په هر نېک کار کي جرئت او زړه ورتيا ور په برخه کړې ده، چي مسلمانانو ته يې بې د کوم مادې غرض څخه په اخلاص د کار کولو تعليم ورکړی دی.

همدا سبب دی چي د مسلمانانو څخه ماسېوا د دنيا په نورو قامونو کي ډېر خلک په يو کار کي د ناکامی او نااميدی په صورت کي خپل ځانونه وژني او دا کار تقريبًا د نړی په ډېرو قامونو کي رواج لري، په هندوستان کي د هندوانو د ښځو د ځان وژلو ډېر واقعات په اخبارونو کي ليدل کيږي او د اروپا او امريکې غوندي متمدنو ملکونو کي د لږي ناکامی او نااميدی په اثر ځان وژل يو عادي کار ګرځېدلی دی، مګر په يو پوخ مسلمان کي د ډېرو سختو مشکلاتو په وخت کي هم د نااميدی دغه جذبه نه پيدا کيږي او د خدای ﷻ د فضل او کرم څخه د يو کامل مسلمان هيله او اميد په هيڅ صورت نه قطع کيږي، که سرمايه داره او شتمن وي که غريب، روغ وي او که ناروغ، د اولاد خاوند وي او که بې اولاده، کامياب وي او که ناکام، خو دی په هيڅ حالت کي د خدای د رحمت څخه اميد نه قطع کوي او په هر ډول مشکلاتو، ناروغيو، بېوزليو، ناکاميو او نورو وختونو کي په ډېر همت سره د خدای رحمت ته اميدوار وي.

مسلمان پر دې خبره يقين لري چي زما په مذهب يعني اسلام کي کفر

اونا اميدي دواړه يو ډول دي او پر دې خبره يقين لري چي زما د دې نيک کار بدله په آخرت کي ارومرو راکول کيږي، ځکه چي دده د خدایﷻ دده سره دا وعده ده:

**اِنّی لَااُضِیعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنکُم مِّنْ ذَکَرٍ اَوْ اُنثٰی.**

**(سورة آل عمران آيت ۱۹۵)**

**ترجمه**: بېشکه زه نه ضائع کوم عمل د هيچا، له تاسي څخه که نارينه وي او که ښځه.

## ددې آيت په تفسير کي تفسيرکابلی دا راز ليکي:

يعني نارينه وي او که ښځه زموږ په دربار کي د هيچا خواري او تکليف نه ضائع کيږي، هر څوک چي يو کار وکړي، د هغه ګټه به تر لاسه کوي، (ځکه چي) دلته عمل شرط دی.

## طاعات هم يو حد لري:

په ظاهره چي ګورې دا ښه خبره معلوميږي چي يو څوک ووايي چي طاعات چي څومره ډېر کيږي، ښه کار دی يعني د طاعاتو لپاره هيڅ اندازه ټاکل نه ده په کار. مګر جناب رسول اللهﷺ دغه حقيقت ډېر ښه درک کړی دی او فرمايلي يې دي چي د طاعاتو لپاره هم يو اندازه شته، تر دغې ټاکلې اندازې پورې محمود دی او که تر دې اندازې زيات شي نو ښه نه دی او ددې څخه بد اثر پيدا کيږي. ددې داسې مثال دی چي د ناروغ لپاره خو دوا کول ښه کار دی، مګر د دوا لپاره هم يو اندازه شته، يعني که چيرې تر اندازې زياته وخوړل شي



نو نه يوازې ښه نه ده ، بلکې ډېر بد اثر کوي او نتيجه يې مضرره را وځي، د مثال په توګه يو ډاکتر يا يو طبيب و ناروغ ته دده د علاج په نيت لس ګولۍ ورکړي او ورته ووايي چي روزانه يوه يوه ګولۍ خوره، مګر ناروغ ددې پر ځای چي د ډاکتر په خبره عمل وکړي او روزانه يوه ګولۍ وخوري، را ولاړ شي ټولې لس سره ګولۍ په يوه وار وخوري، نو ښکاره خبره ده ددې پرځای چي ناروغي يې جوړه شي او صحت پيدا کړي، لا به په زحمت شي، همدغه حال د طاعاتو دی، د دوی لپاره هم يو حد او اندازه شته ، که څه هم چي في نفسه خو طاعات بيخي ښه شيان دي. مګر کوم چي روحاني طبيبان دي لکه حضرت انبياء کرام عليهم الصلوة والسلام او د دوی تابعداران، دوی ومونږ ته دا راښودلي دي چي طاعات هم د دوا په شان دي لکه د هرې دوا لپاره چي يوه اندازه مقرره ده که چيرې تر دې مقررې اندازې زياته استعمال کړل شي نو د ګټې پر ځای نقصان کوي ، همدارنګه د طاعاتو لپاره هم درجات ټاکل شوي دي چي تر دغه اندازې مفيد دي او که تر دې زيات شي مضر دي، لکه خوف الهٰی يعني د خدای ﷻ څخه ېره ، دا يو ډېر غټ طاعت دی چي په نصوصو کې ددې کار د اختيارولو په هکله هرځای حکم شوی دی. مګر جناب رسول اللهﷺ ددې لپاره هم يو حد او اندازه بيان کړې ده لکه په يوه دعاء کي چي يې فرمايلي دي: **اَللّٰهُمَّ اِنّا نَسْئَلُکَ مِنْ خَشْیَتِکَ مَاتَحُوْلُ بِهٖ بَیْنَنَاوَبَیْنَ مَعَاصِیْکَ.**

يعني اې الله! موږ ستا څخه دومره خوف او ېره غواړو چي زموږ او د ګناهونو په منځ کي حائل او پرده شي.

په دې دعاء کي جناب رسول اللهﷺ موږ ته دا راښيي چي د خوف طبعي هره درجه مطلوب نه ده، بلکې صرف دومره مطلوب دی چي د خدایﷻ د نافرمانۍ څخه سړی را وګرځول شي.

## په طاعاتو کې د اندازې د مقررولو په هکله یو مصلحت:

دا په تجربه سره معلومه شوې ده چې خوف طبعي تر اندازې زیاتېدل مضر او تاواني دی، د دا ډول سړي هر وخت د الله ﷻ وقهر ته نظر وي، دی هیڅ بدکار د معافی لائق نه بولي، او د عظمت الهي په وړاندې ده ته خپل هیڅ عمل قابل قبول په نظر نه ورځي، نو ددې وجې ده ته د نجات هیڅ امید نه وي پاته. په نتیجه کې دغه سړی د لوی خدای ﷻ د رحمت څخه مایوسه کیږي، او دا خو تاسې ته معلومه ده چې د خدای ﷻ د رحمت څخه مایوسي کفر ده، نو اوس تاسې فکر وکړئ جناب رسول الله ﷺ په دې راز څومره ښه پوهېدلی دی. که نه نو کوم سړی دا ویلای شي چې کثرت طاعت هم مضر او تاواني کېدلای شي، مگر قربان شم تر خپل گران او خوږ نبي جناب رسول الله ﷺ چې داحقیقت یې ډېر ښه درک کړی دی او خلکو ته یې ورښوولي دي چې ځینې وخت د بیرې او خوف غلبه د مایوسی سبب جوړیږي، الله ﷻ په دې هکله فرمایلي دي:

وَلَا تَايْئَسُوْا مِنْ رَّوْحِ اللهِ اِنَّهُ لَايَايْئَسُ مِنْ رَّوْحِ اللهِ اِلَّاالْقَوْمُ الْكٰفِرُوْنَ. (سورة یوسف آیت ۸۷)

**ترجمه**: او د خدای د فیض څخه مه نا امیده کېږئ، (ځکه چې) د خدای د فیض څخه هغه څوک نا امیده کیږي چې کافران دي یعنې د الله ﷻ د ذات او



صفاتو څخه منکر دي.

نو ددې وجې جناب رسول الله ﷺ د خوف او بیرې په غوښتنه کې دغه قید ولگاوه چې **مَاتَحُوْلُ بِهٖ بَيْنَنَاوَبَيْنَ مَعَاصِيْكَ** یعنې موږ دومره (خوف) غواړو چې زموږ او د گناهونو تر منځ حائل او پرده شي.

## د اهل دنیا او اهل الله په منځ کې فرق:

اهل الله چې کوم دي، هغوی د خپل ذات یا خپل لاس، پښې او د خپلو ټولو متعلقاتو حفاظت او ساتنه د نوکر په ډول کوي، د مالک په ډول یې نه کوي. موږ خوراک کوو د نس د ډکېدو لپاره، مگر دوی خوراک کوي د حکومتي او دولتي ماشین د حفاظت لپاره، و گورئ الله ﷻ فرمایلي دي

**لَاتَقْتُلُوْٓا اَنْفُسَكُمْ** یعنې خپل ځانونه مه وژنئ.

الله ﷻ موږ د خودکشی او ځان وژنې څخه منع کړي یو ددې څه وجه ده؟ ددې وجه داده چې زموږ ځانونه دا ډول نه دي چې وغواړو څه ډول تصرف پکښې وکړو، پکښې کولای یې شو، نه داسې نه ده، بلکې موږ ټوله د الله ﷻ ملک یو، نو ددې وجې الله ﷻ پخپل شي کې دده بې له اجازې د تصرف کولو څخه منع کړي یو، نو په دې وجه دا حکم شوی دی چې

| |
|---|
| اِنَّ لِجَسَدِکَ عَلَيْکَ حَقٌّ |
| وَاِنَّ لِنَفْسِکَ عَلَيْکَ حَقٌّ |
| وَاِنَّ لِعَيْنِکَ عَلَيْکَ حَقٌّ |

یعني ستاسې جسم پر تاسو حق لري او ستاسې نفس پر تاسو حق لري او ستاسې سترګې پر تاسو حق لري.

نو ددې وجې هیچا ته دا حق نه شته چې د نامردۍ دوا وخوري او نامرد شي او یا په خپلو سترګو کې مورچک واچوي او ړوند شي، ځکه چې دده ټول بدن د الله ﷻ ملک دی، دده ملک نه دی، نو دی څه حق لري چې د بل په ملک کې دا راز تصرف وکړي؟ نو له دې سببه اهل الله خپل ځان یو حکومتي او دولتي شی بولي او په ډېره ښه طریقه یې حفاظت کوي.

عام خلک ددې وجې یخې اوبه څښي چې د یخو اوبو خوند واخلي، تنده یې لیرې شي او طبیعت یې برابر شي، مګر عارف او ولی الله بیا ددې وجې یخې اوبه څښي چې د لوی خدای ﷻ شکر اداء کړي او د هغه حمد ووایي.

## د جناب رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷺ تابعینو او نورو حضراتو رحمهم الله تعالی د تقوی او پرهېزګارۍ په هکله یو څو ښتینې قصې:

لومړی باید ووایم چې دلته قصې رانقلول صرف ددې لپاره نه دي چې په معلوماتو کې زیاتوب راشي، بلکې ددې اصلي مطلب دادی چې موږ دا قصې ووایو او په اخرت کې فکر ووهو او بالاخر د اخرت فکرمندان راځخه جوړ شي، په خوراک، څښاک او د نعمتونو په استعمالولو کې د حساب او کتاب فکر وکړو، خپلو عملونو ته ژوره کتنه وکړو، او د الله ﷻ بېرې ته په زړه کې ځای ورکړو، د اخرت د لارې د اسانۍ په هکله فکر وکړو او د الله ﷻ څخه



غوښتنه وکړو چې موږ پر صراط مستقیم برابر کړي او بالاخر اخرت مو په خیر کړي.

## لومړی د جناب رسول الله ﷺ په هکله یوه قصه:

د حضرت ابو سعید خدري ﷺ څخه روایت دی چې جناب رسول الله ﷺ وفرمایل چې: زه په دنیا کې څنګه د مزې او خوند ژوند تېر کړم. حال دا دی چې اسرافیل ﷺ شپېلۍ په خوله کې نیولې ده او د الله ﷻ و حکم ته یې د انتظار غوږونه ایښي دي او په دې هکله منتظر دی چې کله به و ده ته د الله ﷻ له طرفه د شپېلۍ د وهلو حکم وشي او دی به فوراً (سمدستي) شپېلۍ ووهي. **(ترمذي)**

مطلب دادی چې شپېلۍ به فوراً وهل کیږي. دا نه ده معلومه چې څه وخت به حکم کیږي. نو ددې وجې څخه په دې فاني دنیا کې مزې او چړچې کول مناسب کار نه دی. ځکه چې دنیا په یو دم فناء کیږي او هر څه به ګډوډ کیږي. نو زموږ لپاره په کار دي چې هر وخت د الله ﷻ و طرف ته متوجه شو.

حضرت عبدالرحمن بابا ﷺ خلکو ته وصیت کوي چې په دنیا زړه مه تړئ. دنیا د زړه تړلو شی نه ده. وګورئ په یوه ورځ کې په زرګونو زرګونو خلک مري. او هم په یوه ورځ کې تر دې زیات نور پیدا کیږي. نه ددې درک معلومیږي چې څو کسان نړۍ ته راغله او نه بیا ددې درک معلومیږي چې څو کسانو د نړۍ څخه سترګې پټې کړې.

**که ترې ولوښته شاهان وُسلطانان    هیڅ نیمګړی په چا نه شو دا جهان**

که هزار هزار فناه شي په يـودم کي — بيا پيـدا شي په يـو دم کي هـزاران

د رفـتن دامـدن حسـاب يـې نشتـه — لـکـه بحـرچي بهـيـږي بـې پـايـان

ته فکر وکړه په دنيا بـه سړی څنګـه زړه وتړي د جنـاب رسول الله ﷺ په ډول خلک تر دې دنيا تېر شول، مګردنيالا هماغسي ولاړه ده، د ډېره غمه څخه نه ده خرابـه شوې، نو چي دا ډول عالمونه لا تر خاورو لاندي کيږي، نو زما او ستا غونډي د خوارانو پـه مرګ بـه څه اسمان راونړيږي او مـوږ نو څه پخه راوړې ده، چي نه به مرو او نه به تر خاورو لاندي کيږو:

پېغمبر غونډي صاحب تر دنيا تېر شو — دا دنيا ويـرانـه نـه شـوه پـه هجران

چي داهسي عالَم لاندي شه ترخاورو — د چا ياد دي ما ؤ تا غونډي خواران

که غلبېل کړم د تمامي دنيا خـاوري — بيا بـه نـه مـومـم دارا ؤ شاجـهـان

داسي کسان تر دې دنيا تېر شول چي نوم او نښان يې په ټوله نړۍ کي خپور شوی ؤ. که دي دا خبره وزړه ته نه لويږي، ورشه د خپل پلار او نيکه وهديرې ته ، هلته به د ډېرو مشهورو مـشهورو خلکو قبرونه ووينې چي اوس يې نو هډونه لا خاوري شوي دي او پر سر يې په منو منو خاوري پرتې دي

بوی د نام ؤ د نشان يې پاتي نه شو — چي دعـوه يې کړه د نـام ؤ د نشـان

کـه دروغ وايـم تـه ورشـه نظر وکړه — د خپـل پلار ؤ د نيکه پـه ګورستان

تـه ښـه فکـر وکـړه هغـه شونډي چي تـه بـه يـې پـه ډېـره مينـه ښکلولې او ستا دواړي ستر ګي به يې په ډېره مينه او خورا شفقت سره مچولې، نن ورځ خاوري دي ، نن ورځ د هغو خلکو څخه چي تا ته به يې پـه قربان قربان ويل او ته به يې د زړه ټوټه وې او د سترګو نور به يې وې، يو هم نشتـه نن ورځ داسي



څوک نشته چي پر تا دي يو وار هم د قربان ږغ وکړي او پخپله غېږه پوري دي وموښلوي:

چي بېې ته په دواړو سترګو ښکلولې — ګوره څـه شوې هغـه خولې هغه لبان

چي مدام يې په قربـان قربـان بللې — اوس دي غـږدربـانـدي وکاچي قربـان

د رحمن وسوزان شعر ته حـيران يم — چي يې اور بل شوی نه دی په ديوان

همدارنګه حضرت عبدالرحمن بابا رحمه الله بې له خدايه په بل څه پوري زړه تړل ښه کار نه بولي او داسي فرمايي:

چي په نور څه پـوري زړه تړې بې خدايه — څه پوهېږې چي په خای کړې که بې خايه

دا خونشتـه چي بـه تـل تـر تـلـه پـايـې — کـه بـيـا پـايـې خـو تـر سلـو کـالـو پـايـه

کـه دې سل کالـه شي عمر خو به تېر شي — دغـه پـسـه بيا بـه څـه کـړې راتـه وايـه

سم لـه لاسه چاري نه شي مـرد هغه دی — چي بـيدار وي وغـلـيـم وتـه لـه ورايـه

تـه پـه اصل کي سړی يې خـاروي نـه يې — د چـارپـايـه چـاري مـه کـوه دو پـايـه

مرتبـه بـه دي د مچ ؤ د مـېږي شـي — زړه پـه غـوړو غـوښـو مـه تـړه همـايـه

موږ بـه نـه شـې تـه پـه حرص بـې قناعته — ای پـه تخت د اورنګزېب نـاسـتـه ګـدايـه

وړانـدي سـرای لـره تـوښـه تـړه رحمـانـه — څو سفر دي کړی نـه دی لـه دې سرايه

## د جناب رسول الله ﷺ په هکله دوهمه قصه:

د حضرت ابوحجيفه رضي الله عنه څخه روايت دی چي جنـاب رسول الله ﷺ ته صحابه کرامو رضي الله عنهم عـرض وکـړ ويـل يـا رسـول الله ﷺ پـر تـا بانـدې د زوړتيـا ، ضعف او کمزورۍ آثار ښکاره شوي دي

جناب رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: زه سورة هود او داسې نورو سورتونو پـه کومو کې چې د قيامت د حالاتو او د لوی خدای جل جلاله د عذابونو ذکر راغلی دی

زوړ او ضعیفه کړم.

په بل روایت کې راغلي دي چې حضرت ابوبکر صدیق ﷺ ورته وویل: چې یا رسول الله ﷺ ته ضعیفه شوې یې او ډېر کمزوره معلومېږې؟ جناب رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې زه سورة هود، سورة واقعه ، مرسلات ،عَمَّ يَتَسَآءَ لُوْنَ او اِذَاالشَّمْسُ كُوِّرَتْ ضعیفه کړې یم. **(ترمذي شریف)**

ځینو حضراتو جناب رسول الله ﷺ په خوب ولیدی او دا پوښتنه یې ځینې وکړه چې په سورة هود کې کومه خبره ده چې پر تا یې دومره تاثیر وکړ او ته یې دومره ضعیف او کمزوره کړې؟ جناب رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: ولې په سورة هود کې دغه آیت نه دی راغلی چې الله ﷻ فرمایي:

**فَاسْتَقِمْ كَمَا اُمِرْتَ . (سورة هود آیت ۱۱۲)**

**ترجمه**: نو مستقیم او ثابت اوسه لکه چې حکم کړی شوی دی تاته.

جناب رسول الله ﷺ وفرمایل چې زه ددغه آیت په وجه کمزوره او ضعیفه شوم، ځکه چې زه ددې څخه بېرېږم چې ما به د الله ﷻ حکم پوره پوره نه وي چلولی او داسې نه وي چې الله ﷻ مي ددې کار په سبب ونیسي.

سبحان الله! د دواړو جهانو د سردارجناب حضرت محمد مصطفی ﷺ د الله ﷻ څخه د وېرې دغه حال دی، تاسې فکر وکړئ جناب رسول الله ﷺ هغه مبارک شخص دی چې دده په وجه به هر څه بخښل کیږي یعني په میلینونو میلینونو انسانان به دده مبارک په وجه بخښل کیږي، وګورئ دی مبارک لا ددې خبري څخه وېرېږي چې مابه د الله ﷻ



پوره پوره حق نه وي اداء کړی او دی مبارک وایې چې داسې نه وي چې الله ﷻ مي په دې کار ونیسي.

زموږ حال وګوره چې د سره تر نوکه پورې په ګناهونو کې پټ یو او که بیا هم یو نیک عمل وکړو بیا نو ددې ثواب د الله ﷻ پر ذمه واجب بولو، پخپلو ګرېوانو کې نه ګورو او نه د خپلو ځانونو سره حساب او کتاب کوو چې موږ څه کړي دي او څه کوو او د څه لپاره پیدا شوي یو.

حضرت عبدالرحمن بابا رحمه الله خلکو ته مرګ ورپیادوي او د خلکو پام ودې خبري ته را اړوي چې باید اخرت هیڅکله هیر نه کړی. ځکه چې مرګ یو داسې شی دی چې کله یو ځلي درلره راشي نور ټول غمونه به دې هیر شي همدارنګه خلکو ته وصیت کوي چې په غشي تر زخمي کیدلو مخکې د مرهمو تیاري ونیسئ او دا داسې مرهم دي چې یو وار سړی زخمي شي بیا په ډېر قیمت هم لاس ته نه ورځي، مګر تر زخم کېدو له مخه دغه مرهم تاسې ته بیخي مفت په لاس درځي یعني په دې دنیا کې د اخرت لپاره توښه نیول ډېر اسانه دي او بیخي مفت سړي ته د اخرت نېکۍ په لاس ورځي خو چې څه وخت اخرت راشي بیا چې هر څه وکړې او ځان مړ کړې څه په لاس نه درځي.

چې له مرګه بې پروایې په هردم — دغه هسې غم دې هیر دی په کوم غم
نور همه واړه غمونه به دې هېر شي — که یو ځل دربالندي راشي دا ماتم
چې زخمي یې سبا نه مومې په بیعه — مفت مونده شي نن ساعت هغه مرهم
د مرهمو تیاري درلره بویه — چې لا نه یې داجل په تېغ کړم
ددې لاري تله، څه هسې اسان نه دي — مشکلات دي په هر دم په هر قدم
که دې وېره شي له ظلمه له ستمه — ته هم مه کړه په هیچاباندې ستم

که امیدلرې له رحمه له کرمه — ته هم بویه په هر چا باندي کرم
له هر چا سره چي کړې هغه به مومې — د هیڅ توخم مېوه نه درومي برهم
اوس ستا رضا نېکي کړې که بدي کړې — نېک ؤبد دي دواړه کښل شي په قلم

په اخره کي حضرت عبدالرحمن بابا ؒ موږ ته پېغور راکوي چي بس دی نور به څه وخت سمېږئ، وګورئ مار لا تر تاسي ښه دی چي خپل غار ته ننوزي سره سم شي بیا ننوزي مګرد افسوس خبره ده تاسي دادی د ګور غاړي ته راورسېدا است لا سړي نه سواست، همدارنګه دی مبارک خلکو ته دا هم ورپه یادوي چي تول ورځ د دنیا لپاره لیوني اوسرګردانه په سروغارمو کي ګرځې. نه ستړی کېږې خو پر دوه رکعته نفلو مو ملا ماته وي:

مار چي سوړي لره ورشي ګوره سم شي — ته د ګور په غاړه راغلې نه شوې سم
حم قامت ددنیا کار کړې عمر واړه — او په دوه رکعته نفله نه شوې خم
خان پخوا تر هغه وژاړه که مرد یې — چي په تا باندي ژړا کا نور عالم
نور عالم چي په تا ژاړي انصاف وکړه — بې انصافه ته په څه یې خوښ خورم

ای رحمانه لکه ته چي په خدای ګرم یې
بل به نه وي په جهان کښي هسي ګرم

## د جناب رسول الله ﷺ په هکله دریمه قصه:

حضرت عبدالله بن عباس ؓ فرمایلي دي چي جناب رسول الله ﷺ بولي وکړلې ( وروسته یې سمدستي ) تیمم وواهه، ما عرض ورته وکړ چي یا رسول الله ﷺ اوبه خو تاسې ته نژدې دي ( یعني د تیمم په وهلو کې ولې دومره تلوار کوئ ) جناب رسول الله ﷺ په ځواب کې راته وفرمایل چي: ما ته دا څه را معلومه ده چي (اوس به څه پېښېږي) شاید د اوبو ترځایه ونه رسېږم (نو



ددې وجې و اوبو ته تر رسېدلو پورې تیمم وهم- **(شرح السنة)**

رښتیا هم چي په حقیقت کې د مرګ هیڅ درک نه شته چي څه وخت به راځي همدا اوس به راځي او که څه مده پس، ښه! چي داسې ده نو د مومن سره ښایي چي هر وخت د آخرت په فکر کې و اوسي او خپل اعمال سمدستي صحیح کړي او د یوه ګړي لپاره پخپل ګرېوان کي سر کښته کړي او د خپلو اعمالو سره حساب او کتاب وکړي، غټ غټ امیدونه او په دنیا پورې زړه تړل د مومن سره خوند نه کوي.

لکه حضرت عبدالرحمن بابا ؒ چي خلک وخپلو ډېرو بدیو ته متوجې کوي او د خلکو فکرونه دې خوا ته راګرځوي چي دنیا او هر څه تېر دي باید د اخرت لپاره تیاري ونیسو او همدارنګه خلکو ته وصیت کوي چي سبا بیا پر تېر ساعت پښېمانه یاست ، نو همدا اوس لا خپل اعمال سم کړئ او مه دا فکر کوئ چي موږ به تل تر تله ژوندي او ځوانان یو ، بلکي همدا اوس اوس د اخرت لپاره فکر کول په کار دی او د هغه جهان لپاره توښه برابرول په کار دي:

په ځواني کي بد دماغه بد ګمان یې — چي پیري درباندي در شي بیا ناتوان یې
که په دا دي زړه ښه کیږي دا خو نشته — چي به هم تر ډېره ژوی هم به ځوان یې
چي بې خدایه زړه ترې په نور څه پوري — هم په خدای هسي باورکړه چي ناتوان یې
هسي رنګ دي وهغه جهان ته شاکړه — ګویا تل به مستقیم په دا جهان یې
هومره سردي وخپل خدای ؤته ټیټ نه دی — لکه ټیټ په لور د خان ؤدسلطان یې
یوه شپه په طاعت نه شې رونولاى — هره شپه په مال ؤ ملک پسي پاسبان یې
په تسبیح دي تانده ژبه وچ لرګی شي — پوچ ګویي لره بلبل غوندي ګویان یې
ولمانځه ته چي لمر خیږي هاله پاځې — په قلبه پسي په نیمه شپه روان یې

اودا سـه لـره کـوزه اخـيستـی نـه شي    چـي پـه لـواو پـه لـور ورشـي پهلـوان يې
پښيماني تر پښيماني لا پخوابويه    نه هغه چي بيا په تېر ساعت پښيمان يې
د هلک په څير به لاس اچوې اور ته    نه خبر پخپل بهبود نه په نقصان يې
چي وبل ته نصيحت کا خان يې هېر وي
نور څوک نه دی هغه ته عبدالرحمان يې

## د جناب رسول الله ﷺ په هکله څلورمه قصه:

حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمايي چي يو وخت جناب رسول الله ﷺ پر بوريا باندې بيده ؤ. څه وخت چي را پورته شو. په بدن مبارک کي يې د بوريا نښانو نه کښېښتلي وه. په دې وخت کي ما عرض ورته وکړ چي يا رسول الله ﷺ! حکم راته وکړه. چي زه ستا د ارام لپاره سم شيان دربرابر کړم. وګوره په مبارک بدن کي دي د بوريانښانونه کښېښتلي دي

جناب رسول الله ﷺ په ځواب کي راته وفرمايل چي د دنيا سره زما څه تعلق دی؟ زما او د دنيا بس داسې مثال دی لکه يو مسافر چي پر لارې روان وي تر درختي لاندې وسايې ته يو ګړی کښېني او بيا ولاړ شي او پر خپله مخه روان شي (**احمد و ترمذي**)

يعني دا دنيا زموږ لپاره صرف په لاره کي د يوې درختې په شان ده چي تر لاندي يې د يوه ګړي لپاره مسافر کښېني او بيا بېرته راولاړيږي. او پر خپله مخه ځي ددې لپاره د درختې تر سايې لاندې کښېني چي د سفر لپاره اماده شي نو تاسې فکر وکړئ د دومره لږ وخت لپاره به څوک تر درختي لاندې پوخ بلډنګ تعمير کړي او څوک به دلته د يوه ګړي لپاره پوست بستر هوار کړي او



په مزو او چړچو کي به غرق شي، څوک چي دنيا ته راغلي دي هغه د آخرت لپاره په سفر روان دي، آخرت د دوی منزل دی، نو و اصل مقصود منزل ته د رسېدو څخه مخکي ارام کول د ناپوهانو کار دی، څوک چي په لاره کي آرام کوي، خدای خبر دی چي منزل ته به څه وخت او څه ډول ورسيږي که پر لاري شپه شول او شرمښانو وخوري هم هيڅ شک نشته؟

حضرت عائشي (رضی الله تعالی عنها) فرمايلي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل ويل: دنيا د هغه چا کوردی چي کور نه لري (يعني چا چي د دنيا څخه خپل کور جوړ کړ، بس همدا دده کور دی، بل کور ده ته په لاس نه ورځي) بيا يې وفرمايل چي دنيا دهغه چا مال دی چي دی نور مال ونه لري او په دنيا هغه څوک نه مړيږي چي عقل نه لري (**احمد و بيهقي**)

همدارنګه حضرت عبدالرحمن بابا رحمه الله د دنيا چاري فاني بولي او د خوب ؤخيال مثال ورکوي او له بلي خوا مجازي معشقو ته ګوته نيسي او وايي چي په دوی کي هيڅ وفا نشته، ځکه چي دی وايي چي ما په دوی باندي په زر واري تجربه کړې ده، اوس دا راته يقيني شوې ده چي په دوی هيڅ باور نه دی په کار:

د دنيا چاري فاني دي مرد هغه دی    چي خبر شي په ثواب ؤ په وبال
د دنيا چاري په مثل خواب ؤ خيال دي    څوک به څه کا اعتماد په خواب ؤ خيال
لکه مال ؤ ملک په خوب کښي ورڅرګند شي    خوچي ويښ شي نه يې ملک وي نه يې مال
لکه خګ چي د اوبو په سر ليده شي    که يې واخلي هيڅ ور نه شي په چنګال
لکه دود چي غرونه غرونه څرګنديږي    تار په تار شي په يوه نري شمال
لکه يخ چي د سړو په زور شي جمع    هيڅ يې نه وي د افتاب په مخ مجال

پـه يـوه ساعـت يـې ساز بيـا يـې ويران کا — خـاوري خـتـمي دي پـه لاس کـې د کـلال
دمجـاز پـه مـعشـوقـو کـې وفـا نـشـتـه — مـا هـزارخـلـه وکـتـلـې دی دافـال
اعتماد يې په شادۍ ؤ پـه غم مـه کـړه — نـه يـې هـجرپـه قـرار دی نـه وصال
لـکـه مـالـکـه چي څوک کـښيږدي پـه اوبو کې — زه هـم هـسي سـرزده يـم پـه وصـال
چـي دمـرګ وتـاخت ؤ باخت ته نظر وکړم — صـورت ويـنـم دمـيـږي پـه خـيـر پـايـمـال
کـه وصال مي د يار بيا موند هاله سيال يم
کـنـه نـه يـم زه رحـمـان دهـيـچـا سيال

## د جناب رسول الله ﷺ په هکله پنځمه قصه:

حضرت اسيد بن حضير ؓ روايت کوي چي يو انصاري چي د مذاقي طبيعت خاوند ؤ يعني مسخراچي طبيعته ؤ په يو مجلس کې ناست ؤ او د خلکو په مخکې يې د خندا خبرې کولې، جناب رسول الله ﷺ (مذاقاً او د مسخرو په ډول) په دغه صحابي يو لرګی جګ کړی.

دغه انصاري و جناب رسول الله ﷺ ته وويل: چي تاسو په ما کې لرګی جګ کړی، پر ما ظلم وشو، راشه چي بدله درڅخه واخلم، جناب رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ويل: راشه! بدله واخله، انصاري ورته وويل: چي تا خو جامه اغوستې ده او زما پر بدن جامه نه وه (يعني پوره بدله هغه وخت اخيستلای شم چي ستا پر بدن هم جامه نه وي) جناب رسول الله ﷺ چي دا خبره واورېده نو سمدستي يې د خپلې جامې (لمن) راپورته کړل، څه وخت چي جناب رسول الله ﷺ د خپلې جامې (لمن) راپورته کړل دغه انصاري سمدستي په جناب رسول الله ﷺ پورې و موښتی او دده ملا مبارکه يې ورمچوله، تر دې وروسته يې و جناب رسول الله ﷺ ته عرض وکړ، ويل يا رسول الله ﷺ په دې



ډول سره ما غوښتل چي ستا د مبارکې ملا د مچولو موقع په لاس راشي.

(ابوداؤد شريف)

دا خو ښه خبره ده چي انصاري صحابي بدله نه اخيسته، بلکې دده د مبارک بدن سره يې ځان موښلاوه او د مقدس بدن د مچولو موقع يې لاس ته راوستله، مګر دا خبره د يادولو وړ ده چي جناب رسول الله ﷺ د بدلې ورکولو لپاره تيار شو، د خپلې جامې لمن يې پورته کړل او پوره پوره بدله ورکول يې ضروري وبلل، امت ته په کار دي چي د آخرت په هکله فکر وکړي او پر چا که يوه زره هم ظلم وکړي نو بايد فوراً هغه راضي کړي يا بدله ورکړي او يا معافي ځيني وغواړي، په آخرت کې د بدلې ورکولو څخه په دنيا کې بدله ورکول ډېر ښه کار دی.

## د صحابه کرامو ؓ په هکله څو قصې:

**لومړی قصه**: حضرت ابوبکر صديق ؓ چي کله خليفه شو، نو د بيت المال څخه دده لپاره د کاله څخه دوه نيم زره درهمه تنخوا مقرره شول، په دې پيسو باندې ده خپله ګزاره کوله، يوه ورځ يې کوروالا يعني د حضرت ابوبکر صديق ؓ بي بي و ابو بکر صديق ؓ ته وويل چي: خوږو خوږو ته مې شوق شوی دی، زړه مې غواړي چي خواږه پاخه کړم او ويې خورو.

حضرت صديق ؓ ورته وفرمايل چي ماته چي د بيت المال څخه څومره تنخوا راکول کيږي، زه تر هغه زياتې پيسې د بيت المال څخه نه شم را اخيستلای، که غواړې چي ښه خواږه پاخه کړې، نو هره ورځ زما د تنخوا څخه

لږ لږ پیسې گرځوه، هر وخت چې پیسې برابرې شوې، وروسته به ښه خواږه پاخه کړو.

کور والا یې هم همداسې وکړل، څو ورځې وروسته چې یې یو څه پیسې برابرې کړې نو یې ښه خواږه پاخه کړل او راېې وړل د خپل مېړه یعني حضرت ابوبکر صدیق په مخکې یې کښېښودل. په دې وخت کې حضرت صدیق ؓ پوښتنه ځینې وکړه ویل دا راته ووایه چې روزانه دې څومره پیسې بچتولې او ساتلې؟ هغې یو خاص اندازه پیسې ورو ښودلې؟

تر دې وروسته حضرت صدیق ؓ و بیت المال ته خط واستاوه او په خط کې یې د بیت المال ومسئول ته ولیکل چې د آینده لپاره زما د تنخوا څخه دومره اندازه پیسې کمې کړئ، ځکه چې بې له خوږو او ښو خوراکونو هم گزاره کېدلای شي.

وگورئ د خدای ﷻ د واقعي د دوستانو دغه حالات دي، دا ځکه چې د دوی مطلب د دنیا عیش او عشرت نه دی، بلکې د دوی د خوراک مطلب قوت او لایموت دی او دلته په دنیا کې د ژوند مقصد یې د اخرت د سفر لپاره تیاري نیول دي، د خدای ﷻ د دوستانو له نظره هغه سړی چې په حلال او حرام نه پوهیږي او د روا او ناروا فرق نه شي کولای، تر شیطان لا یو په زره بد گڼي، لکه حضرت مولانا عبدالغفار بریالی چې فرمایي:

چې حلال ځ حرام نل نغاړي په نس     دا نغاړل به دي آخر مات کړي اودس
نه یو تېغ د قناعت له تا بهر سو     نه په عمر درځه واورېده سو بس
چې د حرص پردسترخوان یې اوړی بدسي     وخورک تې رجوع نه کیږي واپس
تعجب دی تا ته هر څو چې تمبه سي     لا هنوز دي اشتها سي یو په لس



له ازله چې دي لوږه ده په برخه     موږ به نه سې مگر ودي خوږ نفس
د عبرت سترگي دي ووزه مگر ړوندیې     د اجل اوربه دي دود کړي لکه خس
بریالیه د اصلاح امکان یې نسته
نامکنه هر گز نه راخي په وس

## د صحابه کرامو ؓ په هکله دوهمه قصه:

لومړی باید ووایم چې حضرت ابوبکر صدیق ؓ تر نبیانو وروسته په اتفاق سره تر ټولو انسانانو افضله او غوره دی. او په محمدي امت کې به تر ټولو مخکې ابوبکر صدیق ؓ و جنت ته دا خلیږي. (**مشکوة شریف**)

یو وخت حضرت ابوبکر صدیق ؓ و یوه باغ ته ولاړی که گوري چې هلته په باغ کې یو حیوان د یوې درختې تر سایې لاندې ناست دی. حضرت ابوبکر صدیق ؓ چې دغه حیوان ولیدی، نو یې یوه اوږده ساه وکښله او ویې فرمایل: ای حیوانه! ته څومره په مزه کې یې! خوراک او څښاک کوې او د درختو تر سایو لاندې پرې وزې مگر په آخرت کې ستا سره هیڅ حساب او کتاب نه کیږي، کشکې ابوبکر هم ستا په ډول وای. (**تاریخ الخلفاء**)

## د صحابه کرامو ؓ په هکله دریمه قصه:

حضرت ابوبکر صدیق ؓ یو مریی درلودی، پر دغه مریي یې اېښې وه چې ماته روزانه دومره اندازه پیسې راگټه نو ر ته فارغه یې، مریي هم همداسې کول، هره ورځ چې به یې پیسې ورته راوړلې نو ابوبکر صدیق ؓ به پوښتنه ځینې وکړل چې دا پیسې دې څه ډول گټلې دي؟

یوه ورځ د پخوا په شان مریي ډوډۍ ورته راوړله او د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ په مخکې یې کښېښودله، ده مبارک سمدستي یوه ګوله ځینې پورته کړل او ویې خوړله، په دې وخت کې یې مریي پوښتنه ځینې وکړه چې صاحبه! هره ورځ به دې زما څخه دا پوښتنه کوله چې دغه شی دې په کومه ذریعه سره ګټلی دی، مګر نن دې هیڅ پوښتنه ونه کړه دا څه وجه ده؟

حضرت ابوبکر صدیق ﷺ ورته وفرمایل چې نن ډېر سخت وږی وم، نو ځکه دغه خبره راڅخه هېره شوه چې دا در څخه معلومه کړم چې دا پیسې دې په څه شي او څه ډول ګټلې وې، څه اوس راته ووایه دا پیسې چې ډوډۍ دې پې راوړه په څه شي دې ګټلې وې؟

مریي یې ورته وویل: چې د جاهلیت په زمانه کې زه په یوه کلي کې تېرېدم هلته یو سړی ناروغه ؤ، ما پر دغه ناروغه سړي یو منتر ووایه او دم مې پر وکړ، هغوی ددې په عوض کې زما سره د یو شي راکولو وعده وکړل، نن چې زه پر هغه لاره تېرېدم، نو دا چې د هغوی په کور کې واده ؤ او ډېره ډوډۍ یې پخه کړې وه نو ما ته یې هم په هغه عوض کې یو څه ډوډۍ راکړه، دا دی ما هم راوړه او ستا په مخکې مې کښېښودله.

حضرت صدیق اکبر ﷺ چې دا خبره واورېده، نو یې ودغه مریي ته وفرمایل ویل: دا خو دي ماته زما د بربادولو شی راکړ زه دي تباه او برباد کړم، داسي شی دي ما ته ولي راکاوه چې هغه زما د بربادۍ سبب جوړیږي، دا خو دي زهر په ما وخوړل، تر دې خبرې وروسته یې و خپلې خولې ته ګوتې واچولې او د قی وهلو کوښښ یې کاوه، مګر هغه ګوله چې د ډېرې لوږې په حالت کې یې



خوړلې وه راونه وتله، په دې وخت کې یو چا ورته وویل: چې د اوبو په ذریعه قی وهل کېدای شي، نو دی مبارک هم راولاړ شو، یوه غټه پیاله یې د اوبو ډکه کړل، لږ لږ یې څښلې، چې آخر یې نس د اوبو څخه ډک شو او قی یې وواهه، تر دې چې هغه ګوله هم راووتله.

په دې وخت کې یو چا عرض ورته وکړ چې الله ﷻ دې پر تا رحم وکړي تا د یوې ګولې په وجه سره څومره تکلیف برداشت کړی، حضرت ابوبکر صدیق ﷺ ورته وفرمایل چې: ما د جناب رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي چې "کوم بدن په حرامو سره پرورش کړی وي د هغه بدن لپاره د دوزخ اور ډېر مناسب دی" زه ببرېدم چې په دغه ګوله سره زما د بدن یو غړی پرورش ونه کړي.

رښتیا هم چې مال او دولت ډېر د مصیبت شی دی، دوې پوښتنې د مال او دولت په هکله کیږي او له پوښتنه داده چې مال او دولت دي په څه ډول ګټلی ؤ، دوهمه پوښتنه دا ده چې چیرې دې خرخ کړی، نو څوک چې پرهېزګاران وي هغه دواړه اړخه په نظر کې نیسي او کوم خلک چې د خدای ﷻ څخه نه ببرېږي هغه بیا ددې هیڅ پروا نه لري، د پښتو ژبې خوږ ژبی شاعر او عارف بالله عبدالرحمٰن بابا رحمه الله هغه سړی چې د حلال او د حرام پروا نه لري د حیواناتو سره مشابه کړی دی او څه دا راز فرمایي:

په روا په ناروا کله پوهیږي
و چارپای ته څه روا څه ناروا

همدارنګه اروابناد مولانا عبدالغفار بریالی بیا د خلکو په مغزو کي فکر

پیدا کوي او ورته وایي چي که مو د حرام او ناروا فرق نه کاوه او تل مو و نس ته وراچول ، نو ستاسي یې په دې ښه سر خلاص چي دغه کار به مو آخر اودس در مات کړي او د هلاکت سبب به مو شي لکه چي فرمایي:

**چــي حــلال ؤ حــرام تــل نغــاړې پــه نــس**
**دا نغــاړل بــه دي آخــر مــات کــړي اودس**

## د صحابه کرامو رضي الله عنهم په هکله څلورمه قصه:

د حضرت علي کرم الله وجهه دا عادت ؤ چي کله به د لمانځه وخت راغی، نو بدن به یې رېږد واخیستی او مخ به یې تک ژړ شو، یو وخت یو چا پوښتنه ځیني وکړل چي ولې پر تا دغه حالت راځي؟

ده مبارک په ځواب کي ورته وفرمایل چي: دا د هغه امانت د اداء کېدلو وخت دی کوم چي الله ﷻ پر اسمانونو، پر مځکي او پر غرونو راکښېنته کاوه، هغوی ددې تحمل ونه کړای شو، او ددې څخه عاجزه شول، مګر ما یې تحمل وکړ یعني انسان یې تحمل وکړ، نو اوس به ګورو چي زه یې په پوره ډول سره اداء کولای شم او که نه؟

## د صحابه کرامو رضي الله عنهم په هکله پنځمه قصه:

حضرت ابو حجیفه رحمه الله فرمایلي دي چي یو وخت ما په غوښو کي د ډوډۍ توتې پخې کړې او ومې خوړلې وروسته ولاړم او د جناب رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر شوم، د جناب رسول الله ﷺ په مجلس کي ماته ټېغونه راغلل، نو جناب رسول الله ﷺ راته وفرمایل چي: یَاهٰذاکُفَّ مِنْ جُشَائِکَ (ای



صاحبه! خپل ټېغ بند کړه) ځکه چي په دنیا کي تر ټولو زیات نس ډکوونکی سړی به د قیامت په ورځ تر ټولو زیات وږی وي **(حاکم وبزار)**

حضرت ابو حجیفه رحمه الله تر دې وروسته ټول عمر په ماړه نس ډوډۍ ونه خوړله او پر لږ خوراک سر ببره یې لا دا هم وکړل چي صرف یو وخت به یې خوراک کاوه، سهار چي به یې ډوډۍ وخوړله، ماښام به یې نه خوړله او چي ماښام به یې وخوړله نو بیا به یې سهار نه خوړله. په یوه روایت کي راغلي دي چي حضرت ابو حجیفه رحمه الله د خپل ځان په هکله فرمایلي دي

**فَمَا مَلَئتُ بَطْنِي مُنْذُ ثَلاَثِيْنَ سَنَةً. (الترغیب والترهیب)**

یعني د جناب رسول الله ﷺ دغه خبره چي ما واورېدله. تر دېرشو کلونو پورې مي خپل نس نه دی ډک کړی یعني په ماړه نس مي ډوډۍ نه ده خوړلې

وګورئ حقیقي عاشقان دغو خلکو ته ویل کېږي. چي د جناب رسول الله ﷺ خبره یې څه ډول عملي کول. افسوس زما او ستا پر حال دی. چي ځانونه مسلمانان بولو. مګر عمل مو څه ډول دی

اصل خبره داده چي دا خلک حقیقي عاشقان وه. د لوی خدای او د هغه د رسول سره یې اخلاص او صداقت درلود په موږ کي اخلاص او صداقت کم شوی دی. حضرت عبدالرحمن بابا مو ودې خبري ته متوجې کوي چي اخلاص او صداقت خپل کړئ نو به کامیاب شئ ځکه چي همدا د کامیابی شی دی په آخره کي خلکو ته وایي که چیري د اخلاص په لاره کي تاواني سوا ست هغه د چا خبره زه په تاوان درسره شریک یم بلکي ددې کار ټول تاوان مو زه پر غاړه

اخلم او ستاسي تر پور زه ځان لاندي کوم:

| |
|---|
| هر چي ستا پـه لار قـدم د راستـی کیـږدي |
| کـه یـې زیـان وي زه رحمـان یـې پـوروړی |

حضرت عایشې (رضی الله تعالی عنها) فرمایلي دي چې نبي کریم ﷺ د تشریف وړلو څخه وروسته به تر ټولو مخکې په امت کې دا مصیبت پیدا شي چې په ماړه نس به ډوډۍ خوري، اونس ډکېدل څکه مصیبت دی، چې کله خلک په ماړه نس ډوډۍ وخوري، نو د هغوی بدنونه پنډیږي او زړه یې ضعیفه کیږي او پر دوی نفساني خواهشات غلبه کوي. **(ترغیب عن ابن ابی الدنیا)**

څومره بختور دي هغه خلک چې د آخرت د وږي کېدو څخه د ځان ساتلو لپاره په دنیا کې په لږ خوراک راضي وي.

## د حضراتو تابعینو او نورو حضراتو (رحمهم الله) قصې:

حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله د دوهم خلیفه حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه د زوی حضرت عاصم لمسی ؤ، دغه حضرت ډېر پرهېزگاره، دینداره، د لوی خدای ﷻ څخه بېرېدونکی او د آخرت لوی فکر مند ؤ.

د سلیمان بن عبدالملک څخه وروسته دی مبارک د مسلمانانو خلیفه وټاکل شو، د سیرت په کتابونو کې دده د تقوی او د لوی خدای ﷻ څخه د وېرې په هکله ډېرې عجیبې قصې راغلې دي، څه وخت چې ده مبارک ته خلافت وروسپارل شو، نو ژړل یې او ویل یې چې ماته ډېر غټ مسؤلیت راوسپارل شو، حیران یم چې په آخرت کې به څنگه نجات پیدا کړم، دده د



کورو الا یعني دده د بې بې بیان دی دا وایي کله چې ده مبارک ته خلافت وروسپارل شو او خلکو دده سره بیعت وکړ، تر دې وروسته چې کله دی کورته راغی، نو ږیره یې په اوښکو باندې لنده خشته وه، ما چې دا حالت ولیدی نو ډېره وارخطا شوم او دده څخه مې پوښتنه وکړه چې خیر خو دی څه پېښه ده؟

ده راته وفرمایل چې خیریت د کومه ؤ؟ زما پر غاړه د ټول امت بار واچول شو، زه بېرېږم او پر دې خبره ژړا راځي چې د قیامت په ورځ چې زما څخه لوی خدای ﷻ د دوی په هکله پوښتنه وکړي زه به څه جواب ورکوم زه ددې خبري څخه بېرېږم چې د خدای ﷻ د مخلوق د نه خدمت له وجې به تباه او برباد شم، نو چې ما ته هر کله دغه فکر راپیدا شي سم دستي مې سترگو ته ژړا جگه ودریږي. **(تاریخ الخلفاء)**

د حضرت عمر بن عبدالعزیز په مخکې چې به کله یو چا د مرگ ذکر وکړی، نو دی مبارک به سره ولړزېدی او حالات به یې بدل شول. حضرت عطار وایي چې حضرت عمر بن عبدالعزیز به هره شپه غټ غټ عالمان راغونډتل او د آخرت او د مرگ خبرې به یې سره کولې، په دې حالت کې به ده مبارک دومره ژړل لکه د یو چا په مخکې چې جنازه پرته وي.

د خلافت د ورسپارلو څخه مخکې دی مبارک ډېر چاغ او ډېر تروتازه ؤ مگر دا چې د خلافت د ورسپارلو څخه وروسته به تل دی مبارک د آخرت په فکر کې غرق ؤ، نو څکه په دې وخت کې دومره ډنگر شو چې د بدن هر هډوکی یې جلا جلا معلومېدی.

یوه ورځ دده یوه مریې دده مبارک و ښځې ته شکایت وکړی چې هره ورځ

د دال د خوړلو څخه نور نو زه تر پزې راغلې یم ، اوس مې نو ښېخي د ډېر دال د خوړلو څخه خوا ګرځي، د حضرت عمر بن عبد العزیز محترمې مېرمنې په خواب کې ورته وفرمایل چې: ستاسې امیر المومنین هم ستا په شان هره ورځ دال خوري. (**تاریخ الخلفاء**)

ولید بن سائب ویلي دي چې ما د عمر بن عبد العزیز څخه پورته بل داسې سړی نه دی لیدلی چې تر ده مبارک دي د الله ﷻ څخه ډېر خوف ولري، دده مبارک ښځې محترمې فرمایلي دي چې دده د خلافت په زمانه کې دده دا حالت ؤ چې د دباندې څخه به راغی نو سر به یې پر سجده کښېښودی او دومره به یې وژړل چې د ډېرې ژړا په حالت کې به خوب ورغی او بیده به شو، څه وخت چې به یې سترګې رونې کړې بیا به یې په ژړا شروع وکړه.

(**تاریخ الخلفاء**)

## د حضرت عمر بن عبدالعزیز رضي الله عنه دوهمه قصه:

د حضرت عمر بن مهاجر بیان دی چې یو وخت حضرت عمر بن عبد العزیز و سېبو ته شوق وشو، دده مبارک د اکا زوی و ده ته د تحفې په توګه یو سېب ورواستاوه ، ده مبارک دغه سېب راواخیستی او ددغه سېب د خوشبویي یې ډېر صفت او ستاینه وکړل، او خپل غلام ته یې وویل: چې ورشه دغه سېب چې چا را استولی دی هغه ته یې بېرته ورووړه، زما سلام ورته ووایه او ورته ووایه چې ستا تحفه ماته راورسېدله، زما ډېره خوښه شوه ستا یې کور ودان، (اوس زه غواړم چې ستا په خدمت کې یې په ډول د تحفې درواستوم)



د حضرت عمر بن عبد العزیز غلام چې دده مبارک دا خبره واورېدل نو یې و حضرت عمر بن عبد العزیز ته وویل: چې ای امیر المومنین! دا خو یو تحفه ده چې ستا د اکا زوی درته را استولې ده، ددې اخیستل څه پروا لري او تحفه قبلول خو یو روا کار دی ځکه چې جناب رسول الله ﷺ هم تحفه قبلوله؟

حضرت عمر بن عبد العزیز ورته وفرمایل چې د جناب رسول الله ﷺ لپاره تحفه وه، مګر زما لپاره رشوت دی (ځکه چې جناب رسول الله ﷺ ته خلکو صرف د هدیې په نیت سره ورکوله او ما ته یې بیا په دې نیت سره راکوي چې زما څخه یو کار واخلي. (**تاریخ الخلفاء**)

## د حضرت امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه قصه:

یو وخت حضرت امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله ټوله شپه د سورت یٰس دغه مبارک آیت وایه او ژړل یې: وَامْتَازُوا الْيَوْمَ أَيُّهَا الْمُجْرِمُونَ.

(**سورة یٰس آیت ۵۹**)

**ترجمه**: او (وبه ویل شي چې) را جلا شئ نن ورځ ای مجرمانو.

په آیت شریف کې را غلي دي چې د قیامت په ورځ به و مجرمانو ته دا حکم کیږي چې په دنیا کې خو تاسې ټوله یو ځای اوسېدا ست، مګر نن تاسې د نېکو خلکو څخه راجلا شئ، ځکه چې ستاسې ځای جلا دی او د نېکانو ځای جلا دی.

په حقیقت کې هم چې دغه حکم څوک واوري، نو چې څومره وژاړي هم لږ دي، ځکه چې هیچا ته دانه ده معلومه چې زما شمار به په مجرمانو کې راځي

او که په نېکانو کې.

## د حضرت امام زین العابدین رحمة الله علیه قصه:

يو وخت حضرت امام زين العابدين رحمه الله لمونځ کاوه، په دې وخت کې دده مبارک کور اور واخيست د محلې خلکو د اور د وژلو لپاره ځغاستې وهلې، مګر ده مبارک خپل لمونځ کاوه، تر لمانځه وروسته چې خلکو په دې هکله پوښتنه ځینې وکړل، ده ورته وویل: چې د آخرت د اور فکر زما څخه د دنيا اور هېر کړ.

## د حضرت علي بن معبد رحمة الله علیه قصه:

علي بن معبد چې يو محدث دی بيان کوي، چې يو وخت زه د کرايې په کور کې اوسېدم، يوه ورځ مې يو خط وليکی، د هغه د وچېدلو لپاره وخاورو ته ضرورت پيدا شو، ددغه سرای دېوالونه کچه يعني اومه وه، په زړه کې مې دا راوګرځېده چې د دغه دېواله څخه يو څه خاوره راوتورم او هغه خط چې ماليکلی ؤ په وچ يې کړم، بيا چې مې فکر وکړی چې دا خو د کرايې سرای دی، زما خپل ځاني سرای نه دی، زه دا حق لرم چې پکښې و اوسېږم، مګر دا حق خو نه لرم چې خاورې يې را وتورم او خط په وچ کړم، دا ښه کار رامعلوم نه شو.

بيا په زړه کې را وګرځېده چې دومره لږ خاوره څه پروا لري؟ دا خو يو معمولي شی دی، ددې منع څوک کوي، نو بيا را ولاړ شوم لږ خاوره مې د دېواله څخه راوتورله، پر خطه مې واچوله او خط وچ شو، خاوره خو مې پر



خطه باندې واچوله، مګر د شپې مې خوب ليدی چې يو سړی ولاړ دی او راته وايي چې دا به سبا د قيامت په ورځ معلومېږي چې لږ خاوره اخيستل څه پروا لري. **(احياء العلوم)**

## د حضرت ميمون بن مهران رحمة الله علیه قصه:

حضرت ميمون بن مهران رحمه الله يو وخت د لمانځه لپاره مسجد ته تشريف يو وړی که ګوري چې جماعت تېر شوی دی، نو سمدستي يې إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ وويل او وروسته يې وفرمايل چې د جماعت لمونځ زما د عراق تر سلطنت لا هم ډېر خوښ دی.

## د حضرت شيخ عبدالقادر جيلاني رحمة الله علیه قصه:

حضرت شيخ عبدالقادر جيلاني رحمه الله په څلور سوه يو اويا هجري کال په ګيلان کې زېږېدلی دی، عرب و ګيلان ته جيلان وايي، حضرت شيخ عبدالقادر جيلاني رحمه الله د البداية والنهاية معتبر تاريخ يو ډېر متقي پرهېزګاره او د ښو اخلاقو خاوند بللی دی، حضرت شيخ عبدالقادر جيلاني رحمه الله حنبلي مذهبه ؤ، نوموړی شيخ رحمه الله ډېر متقي، پرهېزګاره، ولی الله او صاحب کرامت شخصيت ؤ، دده د تقوی او پرهېزګارۍ ډېرې قصې مختلفو کتابونو راا خيستې چې دلته يې صرف يوه قصه زه رانقلوم:

وايي چې په کوچنيوالي کې شيخ عبدالقادر جيلاني رحمه الله د تعليم د حاصلولو لپاره و بغداد ته د سفر اراده وکړل، دخپلې مورڅخه يې د سفر اجازه

او که په نېکانو کې.

## د حضرت امام زین العابدین رحمة الله عليه قصه:

یو وخت حضرت امام زین العابدین رحمة الله عليه لمونځ کاوه، په دې وخت کې دده مبارک کور اور واخیست د محلې خلکو د اور د وژلو لپاره ځغاستې وهلې، مګر دده مبارک خپل لمونځ کاوه، تر لمانځه وروسته چې خلکو په دې هکله پوښتنه ځینې وکړل، دده ورته وویل: چې د آخرت د اور فکر زما څخه د دنیا اور هېر کړ.

## د حضرت علي بن معبد رحمة الله عليه قصه:

علي بن معبد چې یو محدث دی بیان کوي، چې یو وخت زه د کرایې په کور کې اوسېدم، یوه ورځ مې یو خط ولیکی، د هغه د وچېدلو لپاره وخاورو ته ضرورت پیدا شو، ددغه سرای دېوالونه کچه یعني اومه وه، په زړه کې مې دا راوګرځېده چې د دغه دېوال څخه یو څه خاوره راوتوږم او هغه خط چې مالیکلی ؤ په وچ یې کړم، بیا چې مې فکر وکړی چې دا خو د کرایې سرای دی، زما خپل ځاني سرای نه دی، زه دا حق لرم چې پکښې و اوسېږم، مګر دا حق خو نه لرم چې خاورې یې را وتوږم او خط په وچ کړم، دا ښه کار رامعلوم نه شو.

بیا په زړه کې را وګرځېده چې دومره لږ خاوره څه پروا لري؟ دا خو یو معمولي شی دی، ددې منع څوک کوي، نو بیا را ولاړ شوم لږ خاوره مې د دېواله څخه راوتوږله، پر خطه مې واچوله او خط وچ شو، خاوره خو مې پر



خطه باندې واچوله، مګر د شپې مې خوب لیدی چې یو سړی ولاړ دی او راته وایي چې دا به سبا د قیامت په ورځ معلومېږي چې لږ خاوره اخیستل څه پروا لري. **(احیاء العلوم)**

## د حضرت میمون بن مهران رحمة الله عليه قصه:

حضرت میمون بن مهران رحمة الله عليه یو وخت د لمانځه لپاره مسجد ته تشریف یو وړی که ګوري چې جماعت تېر شوی دی، نو سمدستي یې اِنَّـا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَیْـهِ رَاجِعُوْنَ وویل او وروسته یې وفرمایل چې د جماعت لمونځ زما د عراق تر سلطنت لا هم ډېر خوښ دی.

## د حضرت شیخ عبدالقادر جیلاني رحمة الله عليه قصه:

حضرت شیخ عبدالقادر جیلاني رحمة الله عليه په څلور سوه یو اویا هجري کال په ګیلان کې زېږېدلی دی، عرب و ګیلان ته جیلان وایي، حضرت شیخ عبدالقادر جیلاني رحمة الله عليه د البدایة والنهایة معتبر تاریخ یو ډېر متقي پرهېزګاره او د ښو اخلاقو خاوند بللی دی، حضرت شیخ عبد القادر جیلاني رحمة الله عليه حنبلي مذهبه ؤ، نوموړی شیخ رحمة الله عليه ډېر متقي، پرهېزګاره، ولی الله او صاحب کرامت شخصیت ؤ، دده د تقویٰ او پرهېزګارۍ ډېرې قصې مختلفو کتابونو راا خیستې چې دلته یې صرف یوه قصه زه رانقلوم:

وایي چې په کوچنیوالي کې شیخ عبد القادر جیلاني رحمة الله عليه د تعلیم د حاصلولو لپاره و بغداد ته د سفر اراده وکړل، د خپلې مور څخه یې د سفر اجازه

واخیستله او د یوه کاروان سره رهي شو. د سفر څخه مخکې دده مبارک مور یو څه پیسې ددې لپاره چې سبا به ده ته په کاروړشې د صدرۍ په شا کې ور وګنډلې او دده څخه یې دا وعده واخیستله چې په خپل ټول ژوند کې به هیڅکله درواغ نه وایي. نو هغهٔ چې نوموړی شیخ د تعلیم حاصلولو لپاره د یو کاروان سره په سفر روان شو، په لاره کې یو ځای دغه کاروان غلو او داړه مارانو ودراوه او ټول کاروان یې لوټ کړ، په دې دوران کې یو غل وشیخ عبدالقادر جیلاني رحمه الله ته راتېر شو او د ټوکو په ډول یې ورته وویل: ای هلکه! ستا څخه خو به پیسې نه وي درسره؟

حضرت شیخ رحمه الله په ځواب کې ورته وویل: چې هو ولې نه شته؟ اتفاقاً یو بل غل هم راغی او د حضرت عبدالقادر جیلاني رحمه الله څخه یې همدا پوښتنه وکړل. شیخ په ځواب کې ورته وفرمایل چې هو زما سره هم پیسې شته. غله چې د حضرت شیخ رحمه الله دا خبره واورېده. نو یې ورته وویل: کومه دي چیرې دي پټې کړي دي؟ شیخ ورته وفرمایل چې زما د صدرۍ په شا کې ګنډل شوي دي. غله چې دا خبره واورېده .نو برابر یې وخپل مشر ته بوتلی او هغه ته یې دا قصه وکړل ویل دغه هلک وایي چې زما سره هم پیسې راسره دي او د صدرۍ په شا کې مې ګنډل شوي دي. د غلو مشر چې دا خبره واورېدل. ده هم د شیخ څخه همدا پوښتنه وکړل

شیخ صاحب رحمه الله د غلو مشر ته هم په ځواب کې همدا خبره وکړل چې د صدرۍ په شا کې مې ګنډل شوي دي. د غلو مشر سمدستي را ولاړ شو او دده صدرۍ یې سره وپلټله. ربنتیا هم چې د صدرۍ په شا کې پیسې پیدا شوې.



وروسته د غلو مشر و شیخ صاحب رحمه الله ته وویل: چې ته چا مجبوره کړې چې ربنتیا ووایې، که تا درواغ ویلي وای او دا خبره دي کړې وای، چې زما سره پیسې نشته نو موږ خو په تا کې تلاښي نه کوله؟

شیخ صاحب په ځواب کې ورته وفرمایل چې ما د خپلې مور سره دا وعده کړې ده چې زه به هیڅکله درواغ نه وایم نو زه پخپله وعده کې خیانت نه کوم دا چې ستا یوه ملګري زما څخه دا پوښتنه وکړل چې پیسې درسره شته او که نه؟

ما هم ربنتیا ورته وویل چې هو زما سره پیسې شته . بیا هغه راته وویل چې چیرې دي پټې کړي دي؟ ما ورته وویل چې زما د صدرۍ په شا کې ګنډل شوي دي.

د غلو مشر چې د شیخ صاحب رحمه الله دا خبره واورېدل نو د شیخ صاحب رحمه الله وصداقت ته حیران پاته شو، او د ځانه سره یې وویل چې وګوره دغه کوچنی هلک دومره پر خپل عهد او وعده وفا کوي، زما حال وګوره چې د لوی خدای ﷻ سره مې وعده کړې ده، مګر وفا مې نه ده پر کړې. د حضرت شیخ عبدالقادر جیلاني رحمه الله خبرو د غلو پر مشر ډېر تاثیر وکړی او سمدستي یې توبه وکښله او د کاروان مالونه یې بېرته ټول وروسپارل او د ټول عمر لپاره یې د غلا او داړه مارۍ څخه توبه وکښله.

# حضرت عیسیٰ عليه السلام به په کوم عمر کې د اسمانه ځخه مځکې ته راکښته کېږي

**پوښتنه**: زموږ د ټولو مسلمانانو دا عقیده ده چې عیسیٰ عليه السلام به د دوهم وارې لپاره بیا دنیا ته تشریف راوړي، نو د حدیث له رویه به په کوم عمر کې تشریف راوړي، آیا په هغه عمر کې به تشریف راوړي چې الله ﷻ دی مبارک اسمان ته پورته کړی دی؟

**ځواب**: حضرت عیسیٰ عليه السلام چې په کوم عمر کې اسمان ته خېژول شوی دی په هم هغه عمر کې به بېرته مځکې ته راکښته کېږي، یعني د ځومره کلونو په عمر چې دی اسمان ته پورته شوی دی، د هغومره کلونو په عمر به وي چې بېرته به د اسمانه ځخه مځکې ته راکښته کېږي.

د حضرت عیسیٰ عليه السلام په آسمان کې پاته کېدل او هلته ژوند کول، دده پر صحت او عمر باندې کوم تاثیر نه کوي، لکه جنتیان چې په جنت کې به د همېشه لپاره ځوانان وي او هیڅ زوړتیا به وربانديې نه راځي، او نه به د جنت آب و هوا د دوی صحت او عمر متاثیره کوي، یعني که هر ځومره او په زرهاوو کلونه وربانديې تېر شي بیا به هم دوی ځوانان وي سپین ږیري کېږي او زړیږي به نه.

حضرت عیسیٰ عليه السلام چې دا وخت په اسمان کې ژوند کوي، دا د مځکې په ډول ژوند نه دی چې زړېدل او ناجوړي ورسره تړلې ده، بلکې پر ده هلته دا سمان قوانین جاري دي، په قرآن شریف کې الله ﷻ فرمایلي دي چې:



"ستاسې درب یوه ورځ ستاسې د شمار په حساب سره د زرو کلونو سره برابره ده"

ددې آسماني قانون مطابق عیسیٰ عليه السلام چې د کوم وخت ځخه اسمان ته پورته کړل شوی دی د هغې زمانې ځخه نیولې تر او سه پورې پر ده باندې دوې ورځې هم نه دي تېرې شوي، ځکه چې دا اوس خو دده د میلاد او زېږېدنې دوه زره کاله پوره شوي دي، نو د هغه وخت ځخه چې دی اسمانونو ته پورته کړل شوی دی د هغه وخت ځخه نیولې تر اوسه پورې خو دوه زره کاله لا نه دي پوره شوي.

نو اوس ته فکر وکړه، آیا صرف په دوو ورځو کې انسان زړیږي؟ ښکاره خبره ده چې نه په دوو ورځو کې انسان زړیږي او نه په دوو ورځو کې د انسان پر بدن یو ښکاره تغیر راځي. **(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۲۴۶)**

# آیا حضرت عیسیٰ به د نبي په حیثیت مځکې ته تشریف راوړي او که د امتي په حیثیت:

**پوښتنه**: آیا حضرت عیسیٰ عليه السلام به په حیثیت د نبي تشریف راوړي او که به د جناب رسول الله ﷺ د یو امتي په حیثیت تشریف راوړي، که چیرې په حیثیت د نبي تشریف راوړي، نو بیا جناب رسول الله ﷺ خاتم النبین یعني آخري نبي ځنګه کېدلای شي؟

**ځواب**: وروره! عیسیٰ عليه السلام چې مځکې ته تشریف راوړي، نو دی به پخپل ذات کې هماغه ډول نبي وي لکه پخوا چې ؤ، خو خبره داده چې د رسول الله ﷺ

په راتګ سره د حضرت عیسیٰ ؑ شریعت منسوخه شوی دی او نور دده د نبوت دور ختم شوی دی، نو په دې وجه چې کله عیسیٰ ؑ مځکې ته تشریف راوړي، نو د جناب رسول الله ﷺ د شریعت پیروي به کوي او د جناب رسول الله ﷺ د امتي په حیثیت سره به راځي، د حضرت عیسیٰ ؑ مځکې ته تشریف راوړل د ختم نبوت خلاف نه دی، ځکه چې نبي آخرالزمان جناب رسول الله ﷺ دی، حضرت عیسیٰ ته خو نبوت تر جناب رسول الله ﷺ مخکې رسېدلی ؤ. **(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۲۴۶)**

## حضرت عیسیٰ ؑ به څه ډول پېژندل کېږي:

**پوښتنه**: که چیرې حضرت عیسیٰ ؑ په اسمان کې د جسم سره موجود وي، نو چې کله هغه راکښته کېږي، آیا خلک به دې مبارک د راکښته کېدو په حالت کې ویني او که نه، که چیرې یې څوک ویني نو بیا خو ښکاره خبره ده چې په دې صورت کې به هیچا ته د انکار کولو هیڅ ګنجایش نه وي او ټول خلک به پر هغه ایمان راوړي؟

**ځواب**: هوصاحبه! عیسیٰ ؑ چې کله د آسمانه څخه راکښته کېږي خلک به یې ویني، ددې خبر په قرآن او حدیث کې موجود دی په قرآن شریف کې د حضرت عیسیٰ ؑ په تذکیره کې دا ډول راغلي دي: "او نه دي هیڅوک د اهل کتابو څخه مګر ضرور به هغه ایمان راوړي د هغه د مرګ څخه مخکې او د قیامت په ورځ به هغه په دوی باندې ګواه او شاهد وي". **(سورة النساء)**



او همدا رنګه په حدیث شریف کې راغلي دي:

او زه تر ټولو خلکو ډېر نژدې یم عیسیٰ بن مریم ته، ځکه چې زما او د هغه په منځ کې هیڅ نبي نه دی راغلی، نو کله چې تاسې هغه وویني نو ویې پېژنئ، میانه قد به یې وي، سور او سپین مخ به یې وي، سیده ورېښتان به یې وي، د راکښته کېدو پر وخت به دده د سره څخه څاڅکي راتوییږي، که څه هم چې هغه ته به لوندوالی نه وي رسېدلی، د خړ رنګ دوه څادرونه به یې پر ځان اچولي وي، صلیب به مات کړي، خنزیر به ووژني، جزیه به بنده کړي او ټوله مذهبونه به معطله کړي، تر دې چې الله ﷻ به د هغه په زمانه کې دجال کذاب هلاک کړي، په مځکه کې به د امن او امان دوره شروع شي، تر دې اندازې چې اوښان به د زمریانو سره، پړانګان به د غواوو سره، او شرمښان به د پسونو سره څرېږي، کوچنیان به د مارانو سره لوبې او بازی کوي، مګر یو بل ته به نقصان نه رسوي، نو چې څومره زمانه الله ﷻ ته منظوره وه عیسیٰ ؑ به پر مځکه باندې اوسیږي، څه زمانه وروسته به عیسیٰ ؑ وفات شي، مسلمانان به دده د جنازې لمونځ اداء کړي او بیا به یې ښخ کړي.

**(مسند احمد جلد ۲ صفحه ۴۳۷- فتح الباري جلد ۶ صفحه۴۹۳)**

# د حضرت عیسیٰ عليه السلام د تشریف راوړلو مقصد څه شی دی:

**پوښتنه**: د حضرت عیسیٰ عليه السلام مځکې ته د تشریف راوړلو مقصد څه شی دی او دده کار به څه شی وي دا چې د اسلام دین یو مکمل دین دی نو ښکاره خبره ده چې دده راتګ به د عیسایانو د اصلاح لپاره وي، آیا دا خبره صحیح ده؟

**ځواب**: د حضرت عیسیٰ عليه السلام د تشریف راوړلو مقصد پخپله جناب رسول الله ﷺ په تفصیل او وضاحت سره بیان کړی دی، خو زه دلته صرف د یوه حدیث راوړل کافي بولم: د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې انبیاء علیهم السلام یو تر بله علاتي وروڼه دي، د دوی میندې جلا جلا دي، مګر د دوی ټولو دین یو دی او زه د عیسیٰ بن مریم سره تر ټولو زیات تعلق لرم، ځکه چې زما او دده په منځ کې هیڅ نبي نه دی راغلی او دی به د آسمانه څخه را نازلیږي، نو کله چې مو دی ولیدی ویې پیژنئ، میانه قد به یې وي، رنګ به یې سور او سپین وي، خړ رنګه دوه څادرونه به یې پر ځان اچولي وي چې د آسمانه به راکښته شي، د سر مبارک څخه به یې ګویا څاڅکي راتویږي که څه هم چې لوند والی به نه وي ورته رسېدلی.

نو کله چې رانازل شي صلیب به مات کړي، خنزیر به ووژني، جزیه به بنده کړي او ټولو خلکو ته به د اسلام دعوت ورکړي او الله ﷻ به دده په زمانه کې



د اسلام څخه ماسېوا نور ټول ملتونه هلاک کړي همدارنګه به الله ﷻ دده په زمانه کې مسیح د جال هلاک کړي، د مځکې پر مخ به د امن او امان دوره شروع شي، زمریان به د اوښانو سره، پړانګان به د غوایانو سره، شرمښان به د پسونو سره څریږي، کوچنیان به د مارانو سره لوبې او بازۍ کوي، مګر هغوی به و دوی ته نقصان نه رسوي، حضرت عیسیٰ بن مریم عليه السلام به په مځکه کې څلوېښت کاله پاته شي، بیا به هغه وفات شي، مسلمانان به د هغه جنازه وکړي او ښخ به یې کړي.

**(مسند احمد جلد ۲ صفحه۴۰۶- فتح الباري جلد ۶ صفحه ۲۵۷)**

فتاوی یوسفیه لیکي چې ددغه حدیث څخه معلومیږي چې د حضرت عیسیٰ عليه السلام تګلاره به د یهودو او نصاراوو اصلاح او د یهودیت او نصرانیت اثار د مځکې د مخ څخه پاکول وي، مګر دا چې دغه زمانه د خاتم الانبیاء حضرت محمد مصطفی ﷺ د نبوت او بعثت ده، نو ددې وجې به دی د محمدي امت د یو فرد او د حضرت محمد مصطفی ﷺ د یو خلیفه په حیثیت تشریف راوړي، همدارنګه په یو بل حدیث شریف کې راغلي دي:

"واورئ! چې زما او د حضرت عیسیٰ بن مریم عليه السلام په منځ کې هیڅ نبي نه دی راغلی دا خبره واورئ چې هغه به زما څخه وروسته زما په امت کې زما خلیفه وي، دا خبره واورئ چې هغه به دجال قتل کړي، صلیب به مات کړي، جزیه به بنده کړي، جنګ به خپله وسله وغورځوئ، واورئ! ستاسې څخه چې کوم څوک د هغه سره یو ځای شي زما سلام دې پر ووایي"

**(مجمع الزوائدجلد ۸ صفحه ۲۰۵- تفسیر درمنثورجلد ۲ صفحه ۲۴۲)**

## حضرت عیسیٰ علیه السلام په اسمان کې څه ډول ژوند کوي:

**پوښتنه**: دا چې د قرآن او احادیثو په رڼا کې دا واضحه ده چې حضرت عیسیٰ علیه السلام دا وخت په اسمان کې ژوند کوي، نو اوس موږ په دې هکله پوښتنه کوو چې حضرت عیسیٰ علیه السلام په کوم آسمان کې دی او دده د انساني ضروریاتو غوښتنې څنګه تر سره کیږي، مثلاً خوراک او څښاک، خوب کول او داسې نور انساني ضرورتونه څنګه ورته رسیږي که په دې هکله وضاحت وکړئ ډېره به ښه وي؟

**ځواب**: د حضرت عیسیٰ علیه السلام اسمان ته ژوندی خېژول او قیامت ته نژدې بېرته مځکې ته رانازیلېدل دا خو د اسلام یو قطعي عقیده ده چې پر دې باندې د قرآن او حدیث قطعي دلائل قائم دي او پر دې د ټول امت اجماع ده.

د معراج په حدیث کې راغلي دي چې د جناب رسول الله ﷺ د حضرت عیسیٰ علیه السلام سره په دوهم اسمان کې ملاقات اولیدنه کتنه وشول، او په اسمان کې د مادې غذا، بولو او اودس ماتي ضرورت نه پېښیږي، لکه په جنت کې چې جنتیانو ته ددې شیانو ضرورت هیڅکله نه پېښیږي.

**(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۲۴۹)**



## د قیامت علامې:

جبرئیل علیه السلام د جناب رسول الله ﷺ څخه پنځم سوال داوکړی چې داسې علامې او نښانې راوښیه چې دا معلومه شي چې قیامت نژدې دی، جناب رسول الله ﷺ ده ته په ځواب کې د قیامت دوې علامې وروښودلې ویل: اوله نښانه د قیامت داده چې مینځه به خپله مالکه وزیږوي.

ددې خبرې تشریح عالمانو په څو ډوله سره کړې ده، فتاوی یوسفیه لیکي چې تر ټولو ښه توجیه یې دا معلومیږي چې په دې کې د اولاد د نافرمانۍ وطرف ته اشاره ده.

مطلب دا دی چې قیامت ته نژدې به اولاد د خپل مور او پلار څخه دومره نافرمانه شي، تر دې اندازې نجونې چې په فطرت کې یې د مور او د پلار اطاعت، خصوصاً بیا د مور سره محبت او مینه وي هغه به لا هم د دوی په خبره سر نه ګروي یعني د مور او پلار خبرې ته به دومره اهمیت نه ورکوي لکه یو بادار چې د خپل غلام او مینځې خبره دومره د توجه قابله نه ګنې، یعني په کور کې به د مور او پلار حیثیت د مریي او مینځې په ډول شي.

جناب رسول الله ﷺ د قیامت دوهمه نښه دا بیان کړل ویل هغه خلک چې تر پرونه پورې یې په ټولنه کې هیڅ حیثیت نه درلودی چې په لوڅو پښو او په لڅ بدن به یې پسونه او میږې څرولې، هغه به په غټو غټو، لوړو لوړو کوټیانو او بلډنګانو فخر کوي، یعني رذیله خلک به عزتمند شي.

ددغودوو علامو (نښانو) څخه ماسېوا په احادیثو کې د قیامت د رانژدې

کېدو نورې هم ډېرې علامې (نښانې) ذکر دي ، مګر دغه ټوله د قيامت کوچنۍ علامې دي او د قيامت هغه غټې علامې چې د هغو تر ښکاره کېدو وروسته به د قيامت په راتلو کې ډېر وخت نه تېرېږي په لاندې ډول دي:

۱- د حضرت مهدي عليه الرضوان ښکاره کېدل او د بيت الله شريفې په محامخ د رکن او د مقام ابراهيم په منځ کې د خلکو دده پر لاس د خلافت بيعت کول.

۲- دده يعني حضرت مهدي په زمانه کې د دجال راوتل او تر څلوښتو ورځو پورې په مځکه کې فساد خپرول.

۳- د دجال د وژلو لپاره د آسمانه څخه د حضرت عيسیٰ عليه السلام را نازلېدل.

۴- ياجوج ماجوج راوتل.

۵- د صفا د غره څخه د دابة الارض راوتل.

۶- د مغرب د طرفه څخه د لمر راختل او دغه د قيامت تر ټولو غټه علامه (نښانه) ده ، په دې سره به هر چا ته دا فکر ورپيدا کيږي چې اوس نو د مځکې او آسمان نظام خرابېدونکی دی او اوس به د دنيا په ختمېدلو او د قيامت په راتللو کې ډېر وخت نه تېرېږي ، ددغې علامې په ليدلو سره به په خلکو کې ډېر خوف او بېره خپرېږي ، دا به ددې دنيا د زکندن وخت وي، لکه څه ډول چې د زکندن په حالت کې توبه نه قبلېږي ، همدا ډول چې کله لمر د مغرب د طرفه څخه راوخيږي، د توبې دروازه به بندېږي ، همدا ډول نورې غټې علامې هم جناب رسول الله ﷺ بيان کړې دي.

قيامت يو ډېر خوفناک او ډېروونکی شی دی، الله ﷻ دې موږ ټولو ته



ددغې ورځې لپاره د تيارۍ کولو توفيق راکړي او د قيامت د ورځې درسوايي او د دغې ورځې د سختيو څخه دې مو الله ﷻ پخپله پناه کې وساتي.

**(فتاوی يوسفيه جلد اول صفحه ۲۶۵)**

د ياجوج ماجوج قصه د حديثو په معتبرو او غټو کتابونو کې ښه په تفصيل سره راغلې ده، که غوارئ چې مطالعه يې کړئ نو صحيح مسلم، مسند احمد ، ابوداؤد ، ترمذي، ابن ماجه، مستدرک حاکم، کنزالعمال او نورو ته رجوع وکړئ.

همدارنګه د دابة الارض راوتل هم د قيامت د غټو علامو څخه يوه علامه ده چې ذکر يې د قرآن شريف د سورة النمل په (۸۲) نمبر آيت کې راغلی دی او په احاديثو کې هم دا په علامات کبریٰ کې شامله شوې ده. په يو حديث کې راغلي دي چې د قيامت د راتلو څخه مخکې چې د خلکو په وړاندې د قيامت کومې علامې ښکاره کيږي، په هغوی کې به يوه علامه د مغرب د طرفه څخه د لمر راختل وي او د څاښت په وخت کې به د خلکو په مخکې د دابة الارض راوتل وي ، په دوی کې چې کومه علامه مخکې ظاهره شوه بله به هم سمدستي په پسې وي. **(مشکوة ، صحيح مسلم)**

په يو بل حديث کې راغلي دي چې تر شپږو شيانو مخکې په نېکو او ښو عملونو کې تلوار کوئ:

۱- دخان (دود).

۲- د جال.

۳- دابة الارض.

۴- د مغرب د طرفه څخه د لمر راختل.

۵- عامه فتنه.

۶- د هر سړي په اړوند خاصه فتنه.

## (مشکوة شریف صفحه ۴۷۲)

په يو بل حديث کې راغلي دي وايي: درې لاندې شيان چې کله ښکاره شي نو که چا تر دې مخکې ايمان نه وي راوړی يا يې د ايمان په حالت کې څه نېکي نه وي کړې نو هيڅ ته د ايمان راوړل فائده نه کوي:

۱- د مغرب د طرفه څخه د لمر راختل.

۲- د دجال ظاهرېدل.

۳- د دابة الارض راوتل.

## (مشکوة، صحيح مسلم)

داسې څرګنديږي چې ددې دنيا ليپاره د لمر راختلو او د لمر لوېدلو نظام داسې دی لکه څه ډول چې د انسان د نبض رفتار دی، د څه وخته څخه چې انسان پيدا شوی دی د هغه وخته څخه دده نبض ښه باقاعده چليږي، مګر د زکندن پر وخت لومړی په نبض کې بې قاعدګي راشي او لږ وخت وروسته بالکل ودريږي، همدا ډول د کومه وخته څخه چې الله ﷻ دغه دنيا پيدا کړې ده دهغه وخته څخه د لمر د راختلو او لوېدلو په نظام کې هيڅ خلل او خالي ګاه نه ده راغلې، مګر د قيامت څخه لږ مخکې پر دغه دنيا باندې هم د زکندن



حالت راځي او په نبض کې يې بې قاعدګي رامنځ ته کيږي.

لکه څه ډول چې د زکندن په وخت کې ايمان نه قبليږي همدا ډول چې کله لمر د مغرب د طرفه څخه راوخېژي په دې وخت کې چې د دنيا د زکندن وخت دی، په دې وخت کې د توبې دروازه هم بنديږي، او د ايمان راوړل فائده نه کوي او نه داسې ايمان معتبره دی، د توبې د دروازې د بندېدو وروسته به بې ايمانه خلک رسوا کيږي، پر مؤمن او کافر به جلا جلا نښانې لګول کيږي.

د ابة الارض چې څه وخت راووزي، نو دهغې سره به د موسی عليه السلام لکړه او د سليمان عليه السلام انګشتری وي، په انګشتری سره به د مومن پر مخ مهر لګوي چې ددغه مهر په وجه سره به د مؤمن مخ بربښي او ځلا به پيدا کوي او د کافر پر پزه به د موسی عليه السلام په لکړه مهر لګوي (چې د هغه په وجه سره به د کفر توروالی دده پر مخ ښکاره کيږي) چې ددې په سبب سره به د کافر او د مومن تر منځ فرق راځي.

د دابة الارض لږ وروسته به يوه ډېره پاکيزه هوا چليږي چې په دې سره به ټوله د ايمان خاوندان مړه کيږي او يوازې شرير خلک به پاتيږي، د حيواناتو په شان به پر سړکانو باندې ناروا کارونه کوي او يو تر بله به شهوت سره پوره کوي او پر دغو کسانو به قيامت راځي.

## (فتاوی يوسفيه جلد اول صفحه ۲۸۵ بحواله مشکوة)

# د حضرت مهدي رضي الله عنه په هکله د اهلسنتوعقيده:

**پوښتنه**: د حضرت مهدي رضي الله عنه په هکله د مسلمانانو څه عقيده ده، آيا

حضرت مهدي رضي الله عنه نبي دی او که نه او آیا پر ده وحې رانازلیږي او که نه؟

**ځواب:** د حضرت مهدي رضي الله عنه په هکله چې جناب رسول الله ﷺ څه فرمايلي دي او پر هغه د اهل حق اتفاق دی د هغو خلاصه داده چې دی مبارک به د حضرت بي بي فاطمة الزهرا رضي الله عنها د نسله څخه وي، او نجيب الطرفين سيد به وي ، دده مبارک نوم به محمد او د پلار نوم به يې عبدالله وي، لکه څه ډول چې زوی په صورت او په سيرت کې د پلار سره مشابه وي ، همدا ډول به دی مبارک هم په شکل، شباهت، اخلاق او شمائلو کې د جناب رسول الله ﷺ سره مشابه وي، دی مبارک به نبي نه وي ، او نه به پر ده باندې وحې رانازليږي ، نه به د نبوت دعوه کوي او نه به څوک دده پر نبوت باندې ايمان راوړي.

دده مبارک او د کفارو تر منځ به ډېر خونړي جنګونه کيږي، دده مبارک په زمانه کې به د دجال خروج کيږي او دی مبارک به د دجال د لښکرو په محاصره کې راګيريږي، پوره د سهار د لمانځه پر وخت به د دجال د وژلو لپاره سيد نا عيسیٰ عليه السلام د آسمانه څخه رانازليږي او د سهار لمونځ به د حضرت مهدي رضي الله عنه په اقتداء کې کوي، د لمانځه څخه وروسته به د دجال و خواته مخه کړي، هغه لعين به وتښتي، حضرت عيسیٰ عليه السلام به په هغه پسې تر شا روان شي او په باب لد کې به يې ووژني، د دجال لښکر به هم ووژل شي او د يهوديت او نصرانيت يوه يوه علامه به يو په بل پسې له منځه ولاړه شي. دا هغه عقيده ده چې د جناب رسول الله ﷺ څخه نيولې تر سلف صالحين، صاحبه کرام، تابعين او ائمه مجتهدين مبارکان ددې معتقد پاته شوي دي.

**(فتاوی يوسفيه جلداول صفحه ۲۶۷)**



## حضرت مهدي رضي الله عنه به څه وخت پيدا کيږي او تر څومره مودې پورې به په دنيا کې پاتيږي؟

د حضرت مهدي رضي الله عنه د ظهور متعين او معلوم وخت قرآن او حديث نه دی بيان کړی ، يعني په قرآن او حديث کې دا نه دي بيان شوي چې دده ظهور به په کومه صدۍ يا په کوم کال کې کيږي ، البته په حديثو کې دا راغلي دي چې دده مبارک ظهور به د قيامت د هغه غټو علامو څخه هغه ابتدايي علامه وي چې بالکل به و قيامت ته نژدې ظاهريږي او دده مبارک تر ظهور وروسته به د قيامت په راتللو کې ډېره وقفه نه راځي.

دا چې امام مهدي رضي الله عنه به چېرې پيدا کيږي؟ په دې هکله د حضرت علي کرم الله وجهه څخه يو روايت دا رانقل شوی دی چې په مدينه منوره کې به د هغه زېږېدنه او تربيت کيږي، په مکه مکرمه کې به د هغه د خلافت سره بيعت کيږي او بيت المقدس به د هغه د هجرت ځای وي د رواياتو او اثارو مطابق دده مبارک عمر به دده د خلافت سره د بيعت په وخت کې څلوېښت کاله وي.

څه وخت چې دده مبارک سره د خلافت بيعت وشي، نو دده د خلافت په اووم کال به دجال راوزي ، د دجال د وژلو لپاره به حضرت عيسیٰ عليه السلام د اسمانه څخه رانازليږي حضرت مهدي رضي الله عنه به دوه کاله د حضرت عيسیٰ عليه السلام په ملګرتيا کې تېروي او د نهه څلوېښت کالو په عمر کې به دی وفات کيږي.

**(فتاوی يوسفيه جلداول صفحه ۲۶۷)**

## د حضرت امام مهدي ؓ د ظهور علامې به څه شي وي:

د حضرت ام سلمه (رضی الله عنها) څخه روایت دی چې جناب رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې "د یو خلیفه د مړینې په وجه به (د هغه د ځای ناستي پر مسئله باندې) اختلاف پیدا شي نو د مدینې د خلکو څخه به یو سړی (ددې وېرې څخه چې ما خلیفه نه کړي) مکې مکرمې ته وتښتي، مگر خلک به دده د انکار سره سره دی د خلافت لپاره منتخب کړي، د حجر اسود او مقام ابراهیم په منځ کې به (د بیت الله شریفې مخ ته) خلک دده پر لاس بیعت وکړي (دغه سړی به مهدي ؓ وي)".

"بیا به د شام د ملک څخه یو لښکر دده د مقابلې لپاره راولېږل شي، لېکن هغه لښکر به په "بیدا" نومې ځای کې چې د مکې شریفې او مدینې شریفې په منځ کې واقع دی په مځکه کې به ښخ کړل شي، کوم خلک چې دا ووینې نو (هر چا ته به یعني دلیرې لیرې سیمو خلکو ته به لا دا معلومه شي چې دا مهدي ؓ دی) همداډول به دشام د ملک ابدال او د عراق د خلکو جماعتونه به دده مبارک په وړاندې حاضر شي او دده سره به بیعت وکړي، بیا به د قریشو یو سړی چې د هغه د نیکه قبیله به په بنو کلب کې وي دده مبارک په مقابله کې راپورته شي، دی مبارک به د مقابلې لپاره یو لښکر ور واستوي، دغه لښکر به پر هغوی باندې بری پیدا کړي او غټه محرومي ده د هغه سړي لپاره چې د بنو-کلب د مالونو د غنیمت د تقسیمېدلو پر وخت پر موقع باندې حاضر



نه وي، نو حضرت مهدي ؓ به په ډېره ښه طریقه مال تقسیم کړي، دی مبارک به د نبي ﷺ د سنتو موافق عمل کوي او اسلام به خپله دېره پر مځکه باندې واچوي (یعني د اسلام دین ته به استقرار ورپه برخه شي او ښه به مضبوط شي)، حضرت مهدي ؓ به اووه کاله نور پاته شي، بیا به وفات شي او مسلمانان به دهغه د جنازې لمونځ وکړي".

**(دغه حدیث په مشکوٰة شریف کې په ۴۷۱ صفحه کې د ابوداؤد په حواله سره درج دی او امام سیوطي رحمه الله "دالعروف الوردی فی آثار المهدي ؓ" نومي کتاب په (۵۹) صفحه کې د ابن ابي شیبه ، احمد، ابوداؤد، ابویعلی او طبراني په حواله سره رانقل کړی دی)**

## آیا امام مهدي صاحب د پیغمبرانو سره برابره درجه لري:

حضرت امام مهدي ؓ به نبي نه وي، په دې وجه د هغه درجه هیڅکله د پیغمبرانو سره نه شي برابرېدای، او حضرت عیسیٰ علیه السلام چې د حضرت مهدي ؓ د خلافت په زمانه کې رانازلیږي هغه بې له شکه د مخکې څخه اولوالعزمه او د ډېرې غټې رتبې نبي دی.

**(فتاوی یوسفیه جلد اول صفحه ۲۷۶)**

## آیا څوارلسمه صدۍ آخري صدۍ ده؟

**پوښتنه**: ځيني خلک وايي چې څوارلسمه صدۍ آخري صدۍ ده او د څوارلسمې صدۍ د ختمېدو وروسته قيامت راځي آيا دا خبره صحيح ده او که نه؟

**جواب**: نه وروره! دغه خبره سراسر غلطه ده ، په قرآن شريف ، حديث نبوي ﷺ کې د قيامت معين وخت نه دی ښودل شوی او د قيامت د راتللو لپاره چې کومې غټې علامې بيان شوي دي ، تر اوسه پورې هغه نه دي شروع شوي، د هغو علامو په ښکاره کېدو کې هم يو څه موده لګيږي ، په دې وجه دا خيال محض جاهلانه دی چې د څوارلسمې صدۍ د ختمېدو سره به قيامت راځي. **(فتاویٰ يوسفيه جلد اول صفحه ٢٧٩)**

## فقه څه شي ته ويل کيږي؟

د نصوصو په مقصدونو باندې پوهېدلو ته فقه ويل کيږي، الله ﷻ دغه فضيلت و متقدمينو ته ورپه برخه کړی دی، ددغه ژور فهم او ادراک له مخې حضرت امام ابوحنيفه ؒ ، حضرت امام شافعي ؒ او داسې نورو ته امامان ويل کيږي، بايد ووايم چې د همدغه خاص صفت په وجه سره ائمه مجتهدين په ټول امت کې د ستورو په شان ځليږي، پاته دا خبره شوه چې په دغو امامانو يعني حضرت امام ابوحنيفه ؒ ، حضرت امام شافعي ؒ ، حضرت امام مالک ؒ او حضرت امام احمد بن حنبل ؒ



کې کوم يو افضل دی، په دې هکله تحفة العلماء د بدائع په حواله څه دا راز ليکي:

**په دې هکله موږ ته خبره نه ده په کار او نه موږ ددې کار قابل يو چې د دومره لويو فقهاوو په منځ کې رتبې وټاکو، لومړی خو موږ ددې کار اهليت نه لرو، دوهم دادی چې موږ په دې هکله دومره احتياط نه شو کولای، ځکه چې که د يوه امام پر بل امام فضيلت بيانوو، نو ښکاره خبره ده چې د بل امام تنقيص راځخه کيږي.**

**(تحفة العلماء جلد ٢ صفحه ٣٧)**

## د فقهې تعريف

**پوښتنه**: د فقهې تعريف څه شی دی؟

**ځواب**: د فقهې تعريف امام صاحب ؒ په دې ډول سره کړی دی:

**مَعْرِفَةُ النَّفْسِ مَالَهَا وَمَا عَلَيْهَا.**

**ترجمه**: د اخروي ګټو په لحاظ سره خپل نفس پېژندل

ددې څخه معلومه شوه چې اعمال ظاهري او باطني دواړو ته فقه ويل کيږي، ځکه چې په سلفو يعني پخوانيو علماوو کې فقه يوازې د ظاهري احکامو د علم نوم نه ؤ، بلکې و ټولو احکامو ته که ظاهري وي او که باطني فقه ورته ويل کېده. **(حسن العزيزجلد۴ صفحه ٢٩٥)**

## صرف د کتابونو د ویلو نوم فقه نه ده:

**پوښتنه**: آیا یوازې د کتابونو په ویلو سره فقه لاسته راتلای شي که نه؟

**جواب**: صرف د کتابونو د ویلو نوم فقه نه ده، ځکه چې فقه یو نور دی، چې د فقیه په زړه کې پیدا کیږي، چې د دغه نور په برکت سره په دین کې پوهه حاصلیږي، الله ﷻ چې څه وخت وغواړي دغه نور دده څخه ورکولای شي، په لکونو کتابونه به یې ویلي وي، مگر دین به یې په پوهه او فکر کې نه راځي، نو دغه سړی فقیه نه شي جوړېدلای، باید ووایم چې د فقهې دغه نور په طاعت او عبادت سره لاس ته راتلای شي او په گناه سره له منځه ځي، نو کوم فقیه چې متقي او پرهیزگاره نه وي، هغه یوازې د کتابونو فقیه دی حقیقي فقیه نه دی، څه وخت چې دا معلومه شوه چې فقه په دین د پوهېدلو نوم دی، نو بیا په دې کې څه شک په کار دی چې فقیه به ضرور صوفي وي.

## زموږ خومره ستر فقهاء چې تېر شوي دي هغوی ټول د معرفت او ولایت خاوندان وه:

زموږ خومره فقهاء چې تېر شوي دي، ټوله د نسبت او معرفت خاوندان وه، ځکه چې د نسبت او معرفت څخه ماسېوا په دین کې پوره او کامله پوهه لاس ته نه شي راتلای، لکه د فقهاوو په هکله چې ویل شوي دي:

**فقیه واحد اشد علی الشیطان من الف عابد** یعني یو فقیه تر زرو نفرو عابدانو پر شیطان زیات سخت دی، دا خو ښکاره خبره ده د چا چې دین په



پوهه کې راشي، هغه د شیطان ټوله چمونه او فریبونه پېژني او یو چال یې لا هم نه پر چلیږي، مگر ړوند او جاهل عبادت کوونکی چې شیطان څه ډول وغواړي چې خطا یې باسي په اسانۍ سره یې خطا ایستلای شي.

**(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۳۸)**

نو ددې څخه معلومه شوه چې زموږ ټول ستر فقهاء لکه سراج الامت امام الائمة حضرت ابوحنیفه رحمه الله او سراج الامت حضرت امام مالک رحمه الله او سراج الامت حضرت امام شافعي رحمه الله او سراج الامت حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله او سراج الامت حضرت امام ابویوسف رحمه الله او حضرت امام محمد رحمه الله او داسې نور په زرگونو فقهاء ټول د معرفت څښتنان او ټول د ولایت خاوندان وه، د دوی خدمتونه چې نړۍ او نړیوالو ته یې کړي دي بې اندازې زیات دي، لوی خدای ﷻ دې پر دوی ټولو مبارکانو ورحمیږي.

## د فقهاوو او محققینو شان او ددوی پېژندل:

حضرت تهانوي رحمه الله په دې هکله دا راز لیکي: فقیه یو جامع سړی په کار دی، یعني چې فقیه هم وي، محدث هم وي، متکلم هم وي، سیاسي دماغ هم ولري، بلکې کله نا کله لا طب ته هم ضرورت پیدا کیږي، ځکه چې په ځینې امورو کې د تشریح ضرورت هم وي.

د محقق نظر ډېر وسیع او پراخه وي، باید ووایم چې د محققینو شان دا دی، چې هغه تل د حقیقت د معلومولو په تلاش پسې وي او دا چې حقیقت ډېر اړخونه لري او پر ټولو اړخونو خو احاطه یوازې د خدای ﷻ کار دی، خو

پر يوه يوه اړخ يې نظر راتلاى شي ، نو ځکه يو د بله سره اتفاق نه کوي، مګر تر دې اندازې وسيع النظر او پراخ دماغه وي چې و بل محقق ته هيڅکله بد نسبت نه خوښوي ، بايد ووايم چې د مجتهدينو امامانو اختلاف همدا ډول دى .

د يو محقق شان دا هم دى چې د بې ځايه فضول بحث څخه ځان ساتي او د يو غير محقق او جاهل سره محققانه خبرې نه کوي، بلکې د خبرو اترو په دوران کې خاموشه او چپ پاتيږي ، چې دغه کار د عوامو په نظر کې ناکامي ده، ددې دا وجه نه ده چې دده سره دليل نه شته ، بلکې ددې وجه داده چې دى د همدې جاهل پوهول يو مشکل کار بولي .

**(تحفة العلماء جلد دوهم صفحه ۴۲)**

## د علت او د حکمت بيانول:

**پوښتنه**: د علت د راايستلو حق د چا سره دى او د علت د را ايستلو کوم ځايونه دي ؟

**جواب**: هر سړي ته د علتونو د بيانولو حق نه شته بلکې دا حق يوازې مجتهد ته شته او مجتهد ته لا هم همېشه ددې حق نه شته ، بلکې په هغه ځاى کې د علت د بيانولو حق شته په کوم ځاى کې چې د تعديه د حکم ضرورت وي او کوم امور چې تعبدي دي د هغو تعديه نه شي کېداى، بايد ووايم چې په دغه صورت کې مجتهد هم د قياس حق نه لري، نو ددې سببه فقهاء کرامو د لمانځه ، روژې ، زکوة او حج علتونه نه دي بيان کړي ، ځکه چې د دوى د



فرضيت بناء تعبد ده.

که چيرې هر سړى د علت بيانول شروع کړي نو ته به ووينې چې نه به حلال پرخپل ځاى پاتـه شي او نه به حرام ، ځکه چې هر سړى به د خپل منشاء او غوښتني مطابق د حلالوالي او حراموالي علت راباسي، مثلاً يوه سړي د زنا د حراموالي دا علت را ايستلى دى چې په زنا سره د نسب اختلاط او ګډوالى راځي، يعني که څو نفره د يوې ښځې سره جماع وکړي او بيا يې حمل وشي، نو امکان لري چې هر يو دې ددوى څخه د خپل نسب دعوه وکړي ، يو به وايي چې دغه کوچنى زما دى او بل به وايي چې زما دى نو په دې صورت کې ددوى تر منځ د سخت جنګ او جدال د پيښېدلو امکان شته او دا هم امکان لري چې هر يو دې ددغه کوچني څخه انکار وکړي يعني يو به وايي چې دغه کوچنى زما نه دى او بل به وايي چې زما نه دى نو په دې صورت کې به دغه ښځه او دغه کوچنى په ډېر مصيبت کې اخته شي .

نو اوس زه ستاسې څخه پوښتنه کوم چې که دغه خلک يو داسې تدبير جوړ کړي چې دا ډول جنګ او جنجال رانه شي د مثال په توګه د کوچني دنه پيدا کېدو دواوې او داروګان استعمال کړي ، يا يوه ښځه د سپين سرتوب وهغې درجې ته رسېدلې وي چې کوچنى يې نه کيږي ، يا مثلاً ددغو زناکارانو تر منځ يو دا ډول محبت او ورور ګلوي موجوده وي چې د هيڅ ډول جنګ او جنجال احتمال موجود نه وي ، نو په دې صورت کې خو د زنا دروا والي خبره رامنځ ته کيږي ، ځکه چې په دې صورت کې خو هغه علت له منځه تللى دى ، دلته د زنا په کولو کې څه قباحت شته؟ نو اوس تاسې ووايا ست

آیا په دې صورت کې زنا جائز ده ؟ نه وروره ! هیڅکله زنا نه ده جائز، که څه هم هغه علت چې تاسو ښودلی دی په دغه صورت کې خو نه منځه تللی دی.

(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۵۰)

## هر چا ته د حکم علت پیدا کول صحیح نه دي:

که تاسې فکر کړی وي ډېر ځله یو پاچا حکم صادر کړي، نو هیڅکله هم ددغه حکم علت نه پوښتل کیږي، دا چې دا میرانو او حکامو پر پوهې او تجربې اعتماد وي، نو ځکه د دوی څخه د دوی د حکم د صادرېدلو په هکله دلیل او حجت نه غوښتل کیږي، همدارنګه یو مریض ډاکتر ته ځي او په ډاکتر باندې د خپلې مریضۍ علاج کوي، خو مریض هیڅکله هم د ډاکتر څخه دده د ناجوړۍ او علاج علتونه نه پوښتي او که یې ځینې و هم پوښتي، نو تاسې به یې ووینئ چې ډاکتر دغه مریض پر مخ په نسخه ولي او که نه؟

نو دا چې د الله ﷻ د هر حکم علت غوښتل کیږي، آیا دا ددې خبرې ښکارندویه نه ده چې دغه سړی دې د الله ﷻ د عظمت په هکله څه شک ولري، لږ فکر وکړئ که یو غټ ډاکتر تاسې ته دوا درولیکي تاسې ولي په هغه کې چون او چرا نه کوئ او نه هم علت ځیني پوښتئ، بس په زړ عملي کولو کې یې فکر کوئ، تاسې پوهېږئ چې دی ددغه فن ماهر دی، نو هغه کسان چې ددغه فن سره علاقه نه لري ولي راز راز اعتراضونه کوي، موږ وینو چې د یو چا عظمت د حکمونو د علتونو په غوښتلو کې مانع ګرځي ددې مثال داسې



راوړئ: که چیري د یو سړي د مرتبې برابر دده یو دوست حکم وکړي، نو دی د هغه علت د خپل دوست څخه پوښتي او ورته وایي چې تا دغه حکم د څه لپاره کړی دی او که چیري د یو حاکم له طرفه حکم وکړل شي نو دی هیڅکله د حاکم څخه د هغه د حکم علت نه پوښتي دا ځکه چې د دوست عظمت دده په زړه کې نشته، مګر د حاکم عظمت دده په زړه کې شته.

مطلب دا دی چې د محکوم لپاره د علتونو پیدا کول عقلاً ښه کار نه دی، هو په فن کې د تحقیق په غرض سره د حضرت تهانوي رحمه الله په قول پر علتونو علم راوستل څه پروا نه لري ، مګر دغه منصب صرف د طالب العلمانو لپاره دی.

همدا رنګه حضرت اشرف علي تهانوي رحمه الله د تحفة العلماء د دوهم جلد په (۵۱) صفحه کې فرمایي: چې د شرعي احکامو علتونه هیڅکله د عوامو په مخکې بیانول نه دي په کار، بلکې د حکمونو د ښه پابندی امر ورته په کار دی، که نه نو د خطرې قوي امکان شته ، د مثال په توګه په یوه دعوه کې یو قاضي یوه مجرم ته د سزا ورکولو په هکله حکم صادر کړي ، مګر دغه مجرم هیڅکله د قاضي څخه د علت پوښتنه نه کوي او که چیرې بیا هم جرئت وکړي او دا راز پوښتنه وکړي، نو په دې صورت کې قاضي غابښ ماتوونکی جواب ورکړي او ورته وایي چې زه نور نه پوهېږم ماته قانون همدا وایي، که څه هم چې قاضي به ددې مسئلې په علت پوهیږي ، مګر ورته وایي به نه.

ددې څخه وروسته حضرت تهانوي رحمه الله څه دا راز زیاتوي: که چیرې یو ځوک په دې هکله شوق ولري، نو ده ته په کار دي چې د تعلیم ومیدان ته

راشي، او په دې هکله ترتيب وار لوست شروع کړي که داسې وکړي نو په دې هکله به دی ښه کافي معلومات تر لاسه کړي، که تاسي فکر کړی وي ډېر شاګردان د استادانو سره ډېر غټ غټ دلايل وايي مګر هو ددې لپاره د تعليم د فن ضرورت دی.

حضرت اشرف علي تهانوي رحمه الله تر دې خبرې لږ وروسته ليکي: محترمه! آيا دا څه ډول انصاف دی چې د يوه دنيوي حاکم حکم بې له دليل غوښتلو پر سر او سترګو منې او هيڅ اعتراض نه پر کوې او پر شرعي حکمونو باندې په سلهاوو اعتراضونه کوې. (تحفة العلماء جلد ٢ صفحه ٥١)

## د علت او د حکمت په منځ کې فرق:

**پوښتنه**: د علت او حکمت په منځ کې فرق څه شی دی؟

**جواب**: ددې سوال په جواب کې تحفة العلماء څه دا راز ليکي:

نن سبا په ډېرو خلکو کې دا مرض پيدا شوی دی چې دوی د احکامو په علتونو پسې ګرځي، خو چې کله علت پيدا نه کړي نو بيا حکمت ته علت وايي او د خلکو په جواب کې يې وړاندې کوي، حال دا دی چې د علت حقيقت "مايترتب عليه الحکم" دی او د حکمت حقيقت "مايترتب علی الحکم" دی.

خو داچې تعيين حکمت ډېر ځايونه د نص څخه نه وي، محض قياسي امر وي، نو له دې سببه په مخترعه حکم کې د مخالف جانب هم قوي احتمال باقي پاتېږي نو که په يو ځای کې دغه مخترعه حکمت مخدوش وګڼل شي، نو د



معلل په نظر کې په دې سره خدايي حکم هم مخدوش ګڼل کيږي.

(تحفة العلماء جلد ٢ صفحه ٥١)

## د علت او د حکمت په منځ کې واضح فرق:

د شرعي احکامو سره چې کله مصلحت ذکر شوی وي، هغه کله علت وي او کله بيا حکمت وي، بايد ووايم چې د علته سره خو حکم وجوداً او عدماً دائرېږي، مګر د حکمت سره نه دائرېږي، يعني د حکمت په تبدل سره حکم نه بدليږي او نه په حکمت سره حکم متعدي کيږي بايد ووايم چې په دې فرق پوهېدل د لويو عالمانو کار دی.

پته دې نه وي په کوم ځای کې چې په قرآن شريف کې د يو حکم څخه وروسته لام غايت راشي، هغه غايت نه دی بلکې حکمت دی، مطلب دادی چې پر دغه حکم باندې دغه اثر مرتب کيږي، دا مطلب نه دی چې د حکم بناء پر دغه باندې ده.

په دې کې شک نه شته چې اصل مدار د احکام شرعيه وو د ثبوت لپاره نصوص شرعيه دی مګر په دې کې هم شک نه شته چې په ټولو احکامو کې ډېر مصالح او اسرار شته که څه هم چې دا حکامو د ثبوت مدار پر مصالحو او اسرارو نه دی ولاړ، مګر په دې کې د حکيم الامت رحمه الله په قول دا خاصيت ضرور شته چې د ځينو خلکو لپاره په احکام شرعيه وو کې ددغو مصالحو او اسرارو معلومېدل د زيات اطمينان پيدا کوونکي دي که څه هم چې د هغو خلکو لپاره چې يقين يې پوخ وي ددې شيانو هيڅ ضرورت نه شته، مګر

د ځینو ضعیفو خلکو لپاره بیا د مصالحو او اسرارو معلومېدل تسلي بخښونکي او قوت بخښونکي دي، ددې راز په سبب سره د ډېرو اکابرو علماوو لکه امام غزالي، خطابي او ابن عبدالسلام وغیرهم (رحمهم الله تعالی) په کلامونو کې دا قسم معناګانې او لطائف ډېر پیدا کیږي مونږ لره په کار دي چې په دې هکله ټینګ یقین ولرو چې ټول احکام د حکمتونو څخه ډک دي مګر دا چې شارع ددې ټولو تعین نه دی کړی نو ځکه یې مونږ هم نه کوو، زمونږ لپاره صرف د الله ﷻ د احکامو ټینګه پابندي په کار ده، که د حکم حکمت راته معلوم وي او که نه، ځکه چې د حکمت معلومېدل مقصود نه دی.

**(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه۵۳)**

## و غیر مسلمو خلکو ته په فروعي مسئلو کې جواب ورکول نه دی په کار:

حکیم الامت اشرف علي تهانوي ؒ په تحفة العلماء نومي کتاب کې څه دا راز فرمایي: د سفر پر وخت په ریل ګاډی کې د عیسایانو یو مذهبي مشر زما څخه پوښتنه وکړه ویل په اسلام کې د عکس یعني مجسمې ممانعت ولې راغلی دی، ما سمدلاسه دده څخه پوښتنه وکړه چې لومړی دا راته ووایه چې آیا دغه مسئله د اصولو څخه ده او که د فروعو څخه؟

ده په جواب کې راته وویل: چې دغه مسئله د فروعو څخه ده، نو ما ورته وویل: که چیرې دغه مسئله حل هم کړل شي، نو ګټه یې څه شی ده، ځکه چې په اصولو کې اختلاف هماغسې پر ځای پاته دی، یعني که دغه مسئله حل هم



کړل شي خو بیا هم ته عیسایي پاتېږې، ده راته وویل: چې هو! دا خو صحیح خبره ده، مګر په دا ډول خبرو سره وخت ښه تېریږي او تفریح کیږي.

ما و دغه سړي ته په جواب کې وویل: چې زمونږ مذهب ددې څخه منزه یعني پاک او صاف دی چې مونږ دي د خپل مذهب څخه د تفریح اله جوړه کړو، خو تلعب بالمذهب یعني د مذهب څخه بازي او ساتېری جوړول دې تا ته مبارک وي. **(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۳۷۲)**

## د مخالفینو د کومو سوالونو جواب ورکول په کار دی:

کوم سوال چې د مخالفینو تر منصب لوړ وي، نو د هغه جواب نه دی ورکول په کار، بلکې په ښکاره ټکو سره ورته ویل په کار دي، چې ته ددې سوال حق نه لرې، ځکه چې ته تر خپل منصب ډېر لوړ تللی یې، مګر نن سبا ځینې خلک په دې هکله کوښښ کوي چې و مخالفینو ته د دوی د هرې پوښتنې جواب ورکړي، که د هغوی سوال پر ځای وي او که نه، دا ډېره غټه غلطي ده، په دې صورت کې د خبرو اترو سلسله نه ختمیږي.

مطلب دا دی چې د مخالفینو دا عتراضاتو جواب تر هغه اندازې پورې ورکول په کار دی څومره چې د دوی حق وي، او کوم سوال چې د دوی تر منصب لوړ وي، په صفا او ښکاره توګه ورته ویل په کار دي، چې ته ددې پوښتنې هیڅ حق نه لرې، باید ووایم چې د مخالفینو دماغ په هرې خبرې د حقیقت د پوهېدلو قابل نه دی، باریک او دقیق مسائل د دوی په مخکې

بیانول نه دي په کار، د مثال په توګه د توحید په باب کې مخالفین د استقبال قبلې (و قبلې ته د مخ کولو) په موضوع کې پر مسلمانانو اعتراض کوي او وایي چې مسلمان خو د کعبې عبادت او پرستش کوي.

نو که چیرې مخالفین زموږ څخه وپوښتي چې تاسې د کعبې و طرف ته مخ کوئ، دا خو د کعبې عبادت ګڼل کیږي، ددې خبرې جواب زموږ پر ذمه ضروري دی.

په دې هکله موږ دوی ته جواب ور کوو چې موږ هیڅکله د کعبې پرستش نه کوو، بلکې یواځې د الله ﷻ عبادت کوو او صرف د قبلې و طرف ته مخ کوو او ددې خبرې د ثبوت لپاره زموږ سره ډېر دلائل شته:

یو دلیل دا دی چې موږ په خپله د کعبې د معبودیت نفي کوو او دا ښکاره خبره ده چې هیڅ عابد د خپل معبود د معبودیت نفي نه کوي.

دوهم دلیل دا دی چې د لمانځه د کولو په وخت کې که چیرې د چا په زړه کې د کعبې هیڅ خیال رانه شي، مګر د کعبې و طرف ته یې مخ وي نو لمونځ یې صحیح کیږي، داسې خلک بېخي ډېر دي چې مسجد ته ولاړ شي لمونځ شروع کړي، مګر کعبه یې هیڅ په فکر کې نه وي په دې صورت کې د دوی لمونځ صحیح دی، ځکه چې مخ یې د کعبې و طرف ته دی که څه هم چې په فکر کې خو یې کعبه نه شته که چیرې موږ د کعبې عبادت کولای نو بیا خو ددې نیت کول شرط ؤ، مګر داسې نه ده.

دریم دلیل دادی چې که کعبه له منځه ولاړه شي او و نړول شي بیا هم لمونځ هغسې فرض دی لکه مخکې چې ؤ، و هغه طرف ته به مخ کوي چې



مخکې کعبه موجوده وه، ددې څخه معلومه شوه چې مسلمان د ډبرو او خونې عبادت نه کوي، که نه نو د کعبې د نړېدلو وروسته باید لمانځه ته وقفه ورکول کېدلای.

څلورم دلیل دا دی که چیرې یو څوک د کعبې پر بام باندې لمونځ وکړي نو ددغه سړي لمونځ صحیح کیږي، که چیرې کعبه د مسلمانانو معبود وای نو ته فکر وکړه د معبود پر سر څنګه لمونځ صحت پیدا کوی. په دې صورت کې خو یو و کعبې ته مخامخ نه دی او د بلې خوا د خپل معبود (خدای) ډېره بې ادبي او سپکاوی دی چې پر سر یې ولاړ وي او عبادت یې کوي. که چیرې کعبه د مسلمانانو معبود وای یعنې مسلمانانو د کعبې عبادت کولای نو په دې صورت کې هیڅکله د دوی لمونځ نه صحیح کېدی. مګر فقهاوو په دې هکله تصریح کړې ده چې د کعبې پر بام باندې هم لمونځ صحیح دی. نو ته فکر وکړه د خپل معبود (خدای) سر ته سړی پورته کېدای شي. مګر اعتراض کوونکي شاید دا خبره پر خپل ځان قیاس کړي او ووایي چې هو دا کېدای شي ځکه چې موږ نه وینې چې غوا خپل دیوتا او معبود هم بولو مګر پر سپیړو هم، خو زه ددوی په جواب کې دا خبره ویل غواړم چې ستاسې دغه کار بالکل د عقل خلاف دی.

پاته دا خبره شوه چې د کعبې و طرف ته مخ ولې مقرر شوی دی نو موږ ددې خبرې جواب نه ور کوو، بلکې دوی ته په ښکاره توګه سره وایو چې کله دا ثابته شوه چې موږ د کعبې عبادت نه کوو، نو بیا ته ددې راز پوښتنې هیڅ حق نه لرې چې زموږ څخه یې وکړې، دا زموږ خپله کورنۍ مسئله ده، که

چيرې ته په دې خبره ځان پوهول غواړې، نو لومړۍ بايد زموږ د کور سړی ځان
جوړ کړې ، بيا به نو موږ تاته د خپل کور خبرې دروښيو ، دا زموږ خوښه ده چې
په لمانځه کې کوم طرف ته مخ کوو، کولای يې شو ، تاته په دې شي کې د
مداخلت هيڅ گنجائش نه شته .

ځکه چې دا سوال پر هر لوري راتلای شي که موږ بل طرف ته مخ کولای نو
بيا به دې ويلای چې ولې دې طرف ته مخ کوې ولې يې هغه طرف ته نه کوې
که تاسې فکر کړی وي د محکمې د کار لپاره يو وخت مقرر وي مثلاً د
سهار د اتو بجو څخه نيولې، د غارمې تر يوې بجې پورې د محکمې د کار
وخت دی، په دې مقرره وخت کې قاضي محکمې ته راځي او د خلکو دعوې
فيصله کوي، نو په دې صورت کې ته دا حق لرې چې دا پوښتنه وکړې چې د
وخت و مقررولو ته څه ضرورت ؤ، که ته دا پوښتنه وکړې نو تاته جواب در
کول کيږي چې د محکمې د کار لپاره وخت ځکه مقرر شوی دی چې ټول خلک
حاضر شي ، ددې لپاره چې هغه خلک ټول مطمئن کړل شي چې د محکمې
سره يې کار وي يعني دوی ته دا معلومه شي چې محکمه پر فلانې وخت کار
شروع کوي ، او فلانی وخت د محکمې د کار وخت دی ، ددې وخت څخه
ماسېوا به دوی خپل نور کارونه کوي، څه وخت چې د محکمې د کار وخت
راورسېدی دوی به راځي او خپله دعوه به محکمې ته وړاندې کوي که چيرې
محکمه د خپل کار لپاره وخت ونه ټاکي نو خلک مجبوره دي چې څلېرويشت
ساعته د محکمې په مخ کې کښېني ، ځکه چې په هغه صورت کې به دوی ته
دا نه وي معلومه چې قاضي څه وخت راځي او څه وخت کار شروع کوي ، نو ته



فکر وکړه چې په هغه صورت کې د خلکو لپاره دا څومره لوی مشکل او د
پريشانۍ خبره ده.

مگر ددې سوال حق هيڅوک نه لري چې ووايي چې دولت او حکومت ولې
د محکمې د کارلپاره د سهار وخت ټاکلی دی ، ولې يې د ماپښين وخت نه
ټاکه ، ځکه چې که حکومت د محکمې د کار لپاره هر وخت مقرر کړی وای بيا
هم دا سوال نه ختمېدی ، ځکه چې بيا به يې ويلای چې ولې يې سهار نه ټاکه
چې ماپښين يې وټاکه ، همدارنگه مخالفين دا حق نه لري چې پوښتنه وکړي
چې ولې د کعبې طرف د مخ کولو لپاره ځانگړی شوی دی .

همدا ډول د مخالفينو له اړخه پر موږ باندې دا اعتراض هم کيږي
چې تاسې ولې حجر اسود مچوئ ، دا خو تاسې گويا د دې ډبرې عبادت
کوئ نعوذ بالله؟

موږ دوی ته دا جواب ورکوو چې د حجر اسود د مچولو منشاء. عظمت او
عبادت نه دی ، بلکې محض محبت ددې منشاء ده ، لکه حضرت عمر ؓ چې د
ډېرو خلکو په مخکې ددې حقيقت اظهار وکړ، يو وخت ده مبارک طواف کاوه
په دې وخت کې د صحرا يو څه خلک موجود وه ، دی مبارک د حجر اسود د
مچېدلو په غرض و حجر اسود ته وروړاندې شو ، نو د حجر اسود سره
و درېدی او ويې فرمايل: **انی اعلم انک الحجر الخ** يعني زه پوهېږم چې ته
يوه ډبره يې نه چاته گټه رسولای شې او نه تاوان او که چيرې ما رسول
الله ﷺ نه وای ليدلی چې ته يې مچولې نو ما به هيڅکله ته نه وای مچ کړې .

تاسې فکر وکړئ که مسلمان د کعبې عبادت کولای نو ولې به يې و خپل

معبود ته دا ډول خطاب کولای چې ته نه چا ته گټه رسولای شې او نه تاوان، تا لیدلی دي چې یو سړی دې خپل معبود ته وایي چې ته نه چا ته گټه رسولای شې او نه تاوان، ددې څخه په ښکاره توگه دا معلومېږي چې د حجر اسود د مچېدلو منشاء محضې د محبت وجه ده ، په دې وجه چې جناب رسول الله ﷺ مچ کړې ده.

لکه مخکې چې مو وویل چې د حجر اسود مچېدل ددې د عظمت د وجې څخه نه دی، بلکې د محبت د وجې څخه دی، دا داسې مثال لري لکه یو سړی چې خپله ښځه او یا کوچنی مچوي ، نو اوس تاسې ووایاست چې آیا مچول یا مچه اخیستل د عبادت او عظمت دلیل دی؟ که چیرې دا د عبادت او عظمت دلیل وگڼل شي، نو بیا خو هر سړی د خپلې ښځې عبادت کوي .

ددې څخه معلومه شوه چې مچول یا مچه اخیستل د عبادت او تعظیم مستلزم نه دی ، بلکې دا شیان کله نا کله د محبته څخه هم کیږي ، پاته شو دا سوال چې سمه ده چې د حجر اسود عبادت نه کوی نو محبت ولې ورسره کوي ، ددې جواب دا دی چې دا زموږ خپله کورنۍ خبره ده په دې هکله مخالف د سوال حق نه لري .

وگورئ ! که یو سړی په عدالت او محکمه کې دعوه دائره کړي چې هغه فلانی سړی زما دی ، نو که محکمه ددغه سړي څخه ددې خبرې ثبوت وغواړي او دی هم هغه ثبوت راوړي او د محکمې په مخکې یې پیش کړي ، نو د مدعي مقابل طرف ددې پوښتنې حق نه لري چې ده ته ووایي چې ښه دی دا خو ثابته شوه چې دغه سړی ستا دی ، خو اوس دا راته ووایه چې په دغه



سړی کې کوم کوم سامان ایږدې .

یا یو سړی د خپلې ښځې څخه مچه واخلي ، نو دده څخه دا سوال کیدای شي چې ولې دې د ښځې څخه مچه واخیستله ؟ خو کله چې دغه سړی ورته ووایي چې د محبت په وجه سره ما ددې څخه مچه واخیستله ، نو بیا دغه سړی دا حق نه لري چې ووایي چې ته د خپلې ښځې سره ولې محبت لرې او یا ووایي چې ښه دا راته ووایه چې ته د خپلې ښځې څخه د شپې اود ورځې څو مچې اخلې .

مطلب دا دی که مخالف ووایي چې تاسې چې حجر اسود یعنې ډبره مچوئ دا خو گویا ددې عبادت کوئ ، نو ددې خبرې جواب خو موږ ورکوو چې موږ هیڅکله د ډبرې عبادت نه کوو ، بلکې د محبته څخه یې مچوو . لکه ته چې خپله ښځه مچوې او محبت ورسره کوې او که دی ووایي چې سمه ده خو دا راته ووایه چې ته د حجر اسود سره محبت ولې لرې؟

نو موږ ددې خبرې جواب نه ور کوو ، بلکې صفا ، صفا ورته وایو چې لکه موږ چې دا حق نه لرو چې ستا څخه دا پوښتنه وکړو چې ته ولې د خپلې ښځې سره محبت لرې ، همدا ډول ته هم حق نه لرې چې زموږ څخه زموږ کورنۍ خبرې وپوښتې .

د دې مطلب دا نه دی چې موږ دا نه شو ورښودلای چې موږ ولې د حجراسود سره محبت لرو ، بلکې مطلب دادی چې د مخالفینو د اعتراضاتو جواب تر هغه اندازې ورکول په کار دی، تر کومه ځایه چې د دوی حق وي شاید د دې کتاب کتونکي دا ووایي چې سمه ده چې مخالفینو ته ددې

وجه نه ورښيې مورږ خو د کور خلک يو، مورږ ته خو يې را وښيه، نو بايد ووايم چې هو، ښېشکه چې تاسې د کور خلک ياست او ددې پوښتنې د جواب حق هم لرئ، خو دا به پر خپل خپل ځای راشي، ځکه چې مورږ دلته دا موضوع تر لاس لاندې نيولې ده چې مورږ بايد و مخالفينو ته د څه ډول اعتراضونو جوابونه ورکړو او د څه ډول دا ورنه کړو.

## د عقلي د لائلو ضرورت

## په کومو احکامو کې پېښيږي؟

په دې هکله حکيم الامت اشرف علي تهانوي رحمه الله څه دا راز فرمايي: د پوهانو او اهل علمو لپاره يوه خبره بيانوم چې دوی ته د نورو مذهبونو د خلکو سره په مناظره کولو کې ډېره ګټه لري، نو بايد ووايم چې احکام پر دوه ډوله دي: يو اصول دي او بل فروع دي.

د مذهب اصل مدار او حقيقت پر اصولو ولاړی دی، نو بايد د اصولو د اثبات لپاره عقلي او نقلي دواړه د لائل موجود وي او فرعي مسائل که څه هم چې په خپل ځان کې عقلي دلائل او اسرار لري، مګر مورږ په هغه اسرارو باندې نه يو خبر کړل شوي، د اصولو څخه مراد توحيد، رسالت رسول او د کلام الله حقيقت دی چې پر دغو باندې عقلي دلا ئل ضروري دي، پاته چې فروع شوه د هغو لپاره د ښه پابندۍ ضرورت دی او که چيرې د يو فرع دليل منکشف شي نو دا د الله ﷻ زمورږ سره احسان دی، په دې هکله حکيم الامت يو مثال وايي چې نن سبا پر هندوستان باندې د جارج پنجم حکومت دی



او دده قوانين په ټول وطن کې جاري دي نو دلته دوې خبرې د يادونې وړ دي، يوه دا چې نومورې پاچا دی او که نه؟ او که پاچا دی آيا دغه شی دده په قانون کې شته او که نه؟ د دا راز خبرو د ثبوت لپاره عقلي دليلونو ته ضرورت دی

دوهمه خبره دا ده چې په دغو قوانينو کې کوم مصلحت دی نو دلته دغه خبره په يادولو ارزي چې پر دغو قوانينو باندې د عمل کولو لپاره ددې خبرې ضرورت دی چې مورږ د جارج پنجم په پاچاکېدلو باندې عقلي دلائل وغواړو نو که چيرې مورږ دده پاچا توب په ثبوت ورساوه او دده پاچا توب مو ومانه نو بيا خو دده پر ټولو قوانينو باندې عمل کول ضروري ګڼل کيږي او په دې صورت کې خلک ددې انتظار نه وي چې دده د هر قانون جلا جلا علت دې ورمعلوم شي، بلکې په کومه دعوه کې چې قاضي فيصله وکړي او مدعا عليه صرف د قانون د علت د نه معلومولي په وجه په عمل کولو کې کوتاهي وکړي نو دغه سړی مجرم او د سزا وړ ګڼل کيږي، همدا ډول په قوانينو الهيه وو هم ځان پوه کړئ. **(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۳۷۵)**

## علماء قانون پوهان دي

## قانون جوړوونکي نه دي:

علماء د احکامو او قانون جوړوونکي نه دي، بلکې قانون پوهان دي، نو دوی ته په علت پوهېدل لازم نه دي لکه وکيلان چې د قانون پوهان دي، ددوی لپاره دا ضروري نه ده چې د قانون علتونه دې هم ورمعلوم وي او نه دوی ددې

دعوه کوي، نو که يو څوک د دوی څخه د قانون د علت په هکله پوښتنه وکړي نو دوی ددې خبرې په کولو سره ځان خلاصولای شي، چې زه خو قانون پوه يم، قانون جوړوونکی خو نه يم ، ته بايد د قانون جوړوونکو څخه د قانون د علت په هکله پوښتنه وکړې.

همدا ډول علماء هم قانون جوړوونکي نه دي ، بلکې قانون پوهان دي، قانون جوړوونکی خو الله ﷻ دی ، نو د علماوو څخه د قوانينو د علتونو غوښتل ډېره غټه غلطي ده.

## د محمدي دين اسرار او مصالح:

احکام پر دوه قسمه دي: يو يې کليات دي او بل يې جزئيات دي کوم احکام چې کلي دي د هغو مصلحتونه خو په عقل سره معلومېدای شي د مثال په توګه د احکم دی چې همېشه رښتيا واياست ، هيڅکله دروا غ مه واياست.

ددې په مصلحتونو خو هر سړی پوهېدلای شي، ځکه چې دا خبره خو عقل ته ډېر ورنږدې ده . خو کوم احکام چې جزئي دي ، د هغه مصلحتونه بيا په عقل او قياس سره نه شي معلومېدای ، مثلاً د ماپښين لمونځ ولې څلور رکعته دی ؟ يا مثلاً لومړی ولې رکوع او بيا سجده په کار ده؟

نو بايد ووايم چې په دا ډول احکامو کې رايې او قياس ته دخل نه شته. محض عقل هيڅکله د وی د مصالحو د ادراک لپاره کافي نه دی، بلکې ددې لپاره د قوت قدسيه ضرورت دی، مګر دا چې د کلي احکامو مصالح ډېر واضح دي او په عقل سره معلومېدای شي ،نو ددې لپاره د هغو په ادراک کې رايې او قياس ته دخل شته.



## د الاهم فالاهم د قاعدې تشريح:

فقهاوو دا قاعده بيان کړې ده چې د الاهم فالاهم رعايت واجب دی يعني په کوم وخت کې چې يو کار اهم او ضروري وي د هغه کار کول واجب دي او کوم شی چې په دې کې خنډ پېښوي د هغه پرېښودل واجب دي، مثلاً که چيرې د لمانځه وخت وي جماعت تيار وي او په دې وخت کې يو کافر راشي او تاته ووايي چې ما مسلمان کړه، نو په دې وخت کې دغه سړی مسلمانول واجب دي، که څه هم چې جماعت به در څخه تېرېږي ، ددې پروا مه کوه. حال دا دی چې جماعت هم شرعاً واجب دی.

بايد ووايم چې شريعت دا لاهم فالاهم د قاعدې ډېر لحاظ کوي. مثلاً يو سړی ډېر زيات وږی وي د ډوډۍ ضرورت ولري، پيسې هم په جيب کې ورسره وي، مګر دی په بازار کې هلته هلته ګرځي ددې پر ځای چې ډوډۍ را نيسي، نور بې ضرورته شيان رانيسي، تر دې چې خپلې ټولې پيسې مصرف کړي او دی بالاخر د لوږې څخه مړ شي.

ددې کارد بدوالي څه وجه ده ؟ حال دا دی چې ده خو کوم ناجائز عمل نه دی کړی، دواړه کارونه ظاهراً په شريعت کې روا دي، خوراک کول هم او په بازار کې ګرځېدل هم ، مګر که چيرې د دغه کار بدوالی وڅېړل شي نو نتيجه يې دا راوزي، چې دواړه کارونه که څه هم چې مباح او روا وه ، مګر په دوی کې خو ترتيب ضروري ؤ، لومړی بايد ضروري کار شوی وای ، وروسته غير ضروري، نو دا چې دغه سړي د ترتيب لحاظ ونه کړ، نو په دې وجه مړ کېدل .غه مرتب شوه .

دا باریکه خبره نه ده، او نه په دې کې د چا څخه د فتوی غوښتلو ضرورت شته، بلکې داچې هر څومره کوټه ذهنه سړی هم وي، ددې خلاف څه نه شي ویلای. **(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۷۵)**

## حقوق العباد پر حقوق الله مقدم دي، ددې قاعدې تشریح:

فقهاوو لیکلي دي چې **"حق العبد مقدم علی حق الله"** یعني د بنده حق د خدای ﷻ پر حق مقدم او وړاندې دی، ددې وجه داده چې بنده محتاج دی او الله محتاج نه دی.

وروره! ددې څخه دا مطلب وا نه خلئ چې بس دننه څخه باید حقوق الله پرېښودل شي او **حقوق العبد** اداء کړل شي، بلکې ددې مطلب دادی په کوم ځای کې چې په دوی دواړو کې ټکر راځي نو هلته **حق العبد** یعني د بنده حق مقدم او وړاندې دی، او دا هم د شریعت حکم دی او **حق الله** دی، او په کوم ځای کې چې د دوی دوو تر منځ ټکر نه راځي نو په هغه صورت کې خو هر یو باید پر خپل خپل موقع اداء کړل شي.

مثلاً: په لمانځه اداء کولو او پور اداء کولو کې څه ټکر شته؟ هیڅ ټکر نه شته نو په دې صورت کې لمونځ هم اداء کړه او د کوم سړي چې پر تا پور باندې دی هغه هم ورکړه.



د ټکر صورت دا دی مثلاً: د یوه سړي سره یو لک روپۍ موجودې وي، ددغو پیسو زکات ورکول خو واجب دی، مگر پر دغه سړي د یو چا یو لک روپۍ پور باندې دی نو په دغه صورت کې الله ﷻ فرمايي که چیرې پر تا باندې د یو چا پور باندې وي نو لومړی د بنده حق اداء کړه یعني د هغه پور ورکړه، زکات ستا د غاړې څخه ساقط دی.

نو دلته فقهاء وايي چې د بنده حق د خدای ﷻ پر حق مقدم او وړاندې دی، باید ووایم چې دا هم په حقیقت کې حق الله دی ځکه چې د بنده گانو حقوق اداء کول هم د الله ﷻ د حکم په وجه سره لازم دی، الله ﷻ په خپله فرمایلي دي چې د بندگانو حقوق اداء کړئ.

پر دې بناء ویل کېدای شي چې د الله ﷻ یو حق د الله ﷻ پر بل حق مقدم کړل شو، نو په دې صورت تاسې ووایاست چې د **حق الله** او **حق العبد** په منځ کې څه ټکر راغی، مگر دا چې په ظاهره د بنده حق معلومیږي، نو ددې وجې څخه ویل کیږي چې د بنده حق د الله ﷻ پر حق مقدم کړل شو. مگر دا ظاهري تقدیم او وړاندې والی دی.

خو د یو **بل** حقیقت پر بناء دغه ظاهري وړاندې والی هم له منځه ځي، پر دې موقع حکیم الامت حضرت تهانوي رحمه الله وايي چې دغه حقیقت خدای تعالی ﷻ زما په زړه کې راواچاوه، ځکه چې ما تر اوسه په کتاب کې نه دي لوستلي، هغه دادی چې د **حق الله** څخه مراد **حق النفس** دی.

که تاسې فکر کړی وي هغو کارونو ته چې **حق الله** ویل کیږي هغه طاعات

او عبادات دي ، او دا خو ښکاره خبره ده چې د بنده په افعالو سره و الله ﷻ ته نه فائده رسيږي او نه تاوان ، بلکې په دې کې چې کومه ګټه او تاوان دی، هغه په خپله د بنده دی ، نو يقيناً په حق الله کې چې کوم اضافت دی ، دا اضافت د ګټې او د تاوان نه شي کېدای ، لکه په حق العبد کې چې کوم اضافت دی هغه خو بيا د ګټې او د تاوان لپاره دی.

حق العبد خو يو داسې حق دی چې په اداء کولو سره يې بنده ته ګټه او په خوړلو سره يې بنده ته تاوان رسيږي ،نو په حق الله کې دا ډول نه شي ويل کېدای چې د طاعاتو او عباداتو په اداء کولو سره و الله ﷻ ته ګټه او په نه اداء کولو سره يې و الله ﷻ ته تاوان رسيږي. (نعوذ بالله)

زما په نزد د حق الله څخه مراد حق النفس دی او د حق العبد څخه مراد حق الغير دی ،نو په دغه تفسير سره دواړه ځايونه اضافت يو ډول صحيح کېدای شي، يعني په دواړو ځايونو کې اضافت د ګټې او تاوان دی.

مطلب دادی چې حق الله يعني حق النفس هغه دی چې په اداء کولو سره يې و خپل ځان ته ګټه او په نه اداء کولو سره يې و خپل ځان ته تاوان رسيږي، او حق العبد يعني حق الغير بيا هغه دی، چې په اداء کولو سره يې و نورو ته ګټه او په خوړلو سره يې و نورو ته تاوان رسيږي.

نو پر دغه تفسير باندې په حق الله او حق العبد کې هيڅ ټکر نه راځي او کوم اعتراض چې پر حق الله د حق العبد په وړاندې والي کې راتلی پخپله له



منځه ځي ، ځکه چې پر دغه تفسير چې کوم شي ته حق الله ويل کيږي هغه په حقيقت کې حق النفس دی، نو په کوم ځای کې چې د الله ﷻ پر حق د بنده حق مقدم کړل شو ، هلته په حقيقت کې د خپل ځان پر حق د بل حق مقدم کړل شو ، مطلب دادی چې په دغه صورت کې هيڅ اعتراض نه رامنځ ته کيږي ، بلکې دا خو ايثار دی ، ويؤثرون على انفسهم ولو كان بهم خصاصة .

**(تحفة العلماء جلد دوهم صفحه ۷۶)**

## د اهون الضررين د اختيارولو قاعده:

دا قاعده عقلي ده: په کوم ځای کې چې دوه ضررونه جمع شي يو سخت ضرر وي او بل سپک ضرر وي ، نو په دې صورت کې سپک ضرر اختيارول په کار دي مثلاً پلار خپل زوی د بې لارې توب څخه د راګرځولو لپاره ووهي نو دغه وهل خو د کوچني په حق کې يو قسم ضرر دی ، مګر دوهم ضرر چې د کوچني بې لارې توب دی تر دې غټ ضرر دی، ځکه چې بې لارې توب د کوچني لپاره ډېر غټ تاوان دی ، او نتيجه يې ډېره بده راوزي مثلاً د بدو خلکو سره ناسته ولاړه ولري او يا سبق نه وايي نو په آينده کې د دغو شيانو څخه ډېر غټ ضرر رامنځ ته کيږي.

دغه ضرر د هغه ضرر څخه چې د کوچني وهل دي ډېر غټ دی نو ددې وجې څخه بايد پلار هغه ضرر چې سپک دی اختيار کړي ددې لپاره چې کوچنی يې د اشدالضررين څخه وساتل شي. **(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۸۱)**

## د عدم النفع او مضرت تر منځ فرق:

ضرر جلا شی دی او عدم النفع جلا شی دی، په دې هکله یو مثال واورئ: مثلا ستا په جیب کې د سلو روپو نوټ ؤ، خو دغه نوټ یو چا درڅخه غلا کړ، نو په دې کار سره تاته ضرر ورسېدی، او که چیرې تاته یو چا د سلو روپو نوټ درکاوه، خو په دې منځ کې یو څوک راغی او دغه سړي ته یې وویل: چې نوټ مه ورکوه، هغه هم دده په قول وکړه تاته یې نوټ درنه کړ، نو په دې کې خو ستا هیڅ ضرر رانه غی، بلکې ګټه دې ونه کړل. **(تربیت السالک)**

## دا خف المفسدتین د اختیارولو قاعده:

دغه قاعده عقلي هم ده او شرعي هم، په کوم ځای کې چې د یوشي په دواړو اړخونو کې مفسد وي، مګر په دغو کې یو سپک مفسد وي او بل سخت مفسد وي، نو د سخت مفسد څخه د ځان ساتلو لپاره سپک مفسد اختیارول په کار دی لکه فقهاء چې وایي: من ابتلی ببلیتین فلیختر اهو نهما.

**ترجمه**: کوم سړی چې په دوو مصیبتونو کې ګرفتار وي، نو ده ته په کار دي چې په دغو مصیبتونو کې هغه اهون او سپک مصیبت اختیار او غوره کړي. **(فتاویٰ یوسفیه جلد ۹ صفحه ۱۶۵)**



## آیا په زنا کې د اخته کېدلو له بېرې موټ وهل روا دی او که نه؟

**پوښتنه**: آیا د فتاویٰ شامي دغه خبره صحیح ده چې لیکي: پر کوم چا چې د شهوت غلبه راشي او دده ماینه نه وي، نو دغه سړی د شهوت د ارامولو لپاره استمنا بالید یعني موټ وهلای شي، امید دی چې دغه سړی به په دې کار سره هیڅ ګناه کاره نه شي او که د زنا بېره وي نو په هغه صورت کې ورته استمنا بالید واجب ده. آیا د ردالمحتار دغه خبره صحیح ده او که نه؟

**جواب**: ورورہ! په درمختار کې راغلي دي:

فی الجوهرة: الاستمناء حرام وفیه التعزیر.

**ترجمه**: په جوهره کې راغلي دي چې استمنا بالید حرامه ده او په دې کې تعزیر لازم دی.

او علامه شامي بیا ددې په حاشیه کې لیکلي دي:

قوله: الا ستمناء حرام ای بالکف اذاکان لاستجلاب الشهوة، اما اذا غلبته الشهوة ولیس له زوجة ولا امة ففعل ذلک لتسکینها فالرجاء انه لا وبال علیه، کماقاله ابو اللیث، ویجب لوخاف الزنا.

**(ردالمحتار جلد ۴صفحه ۲۷ کتاب الحدود)**

**ترجمه**: پخپل لاس سره مني را ایستل حرام دي، په هغه وخت کې چې

دغه کار د شهوت د برانگیخته او راپارولو لپاره وي، لیکن په هغه صورت کې چې پر یو چا شهوت غالبه شي او د دغه سړي ښځه او مینځه نه وي، نو که چیرې دغه سړی د شهوت د ارامولو لپاره دغه کار وکړي، امید کیږي چې دغه سړی به په دې کار سره نه گناهکاره کیږي، لکه فقیه حضرت ابو اللیث رحمه الله چې فرمایلي دي، او که چیرې په زنا کې د اخته کېدلو اندېښنه ولري، نو په دغه صورت کې دغه کار کول یعني د لاس په ذریعه مني را ایستل بیخي واجب گرځي

## ددغه پورته عبارت څخه څو خبرې راوزي:

• **لومړۍ خبره داده چې**: په عامو حالاتو کې دغه کار کول حرام دي، موجب د وبال دي، او پر دغه کار کولو باندې تعزیر لازم دي.

**دوهمه خبره داده**: که چیرې پر یو ځوان د شهوت غلبه راشي، تر دې اندازې چې د ډېر شهوت په وجه سره دده ذهن دومره متوحش شي، چې په هیڅ ډول سره سکون او ارام نه ورته حاصلیږي، او دده سره د شهوت د ارامولو هیڅ حلاله ذریعه هم نه وي موجوده، نو په داسې اضطراري حالت کې که چیرې دغه سړی پر ډول د علاج دغه کار د شهوت د ارامولو لپاره وکړي، نو د الله ﷻ د رحم او د کرم څخه دا امید کیږي چې پر دغه سړي به وبال نه وي یعني دغه سړی به په دې کار سره نه گناهکاره کیږي، ددې مثال داسې دی: د مثال په توگه د رشوت ورکول او اخیستل دواړه حرام دي، مگر که چیرې یو مظلوم د ظلم د دفع په خاطر د رشوت پر ورکولو مجبوره کړل شي، نو امید



کیږي چې دغه مظلوم به د رشوت په ورکولو سره نه گناهکاره کیږي، دغه دفقیه ابو اللیث رحمه الله قول دی.

**درییمه خبره داده**: که چیرې د سخت شهوت په وجه په زنا کې د اخته کېدلو قوي امکان وي، نو د زنا څخه د ځان ساتلو لپاره ددغه بد کار کول پر دغه سړي واجب او ضروري دی، ددې دا صورت دی چې یو سړی په دوو حرامو کارونو کې د یوه په اخته کېدلو کې ضرور را گیر وي، نو په دغو کارونو کې چې کوم یو یې سپک وي د هغه اختیارول لازم او ضروري دي.

فقهاوو رحمهم الله تعالی دغو اصولو ته په دغو الفاظو سره تعبیر ورکړی دی: من ابتلی ببلیتین فلیختر اهو نهما.

**ترجمه**: کوم سړی چې په دوو مصیبتونو کې راگیر وي، نو ده ته په کار دي په دوی کې چې کوم یو سپک او اهون وي هغه دې اختیار کړي

شیخ ابن نجیم رحمه الله د" الاشباه والنظائر" د فن اول تر پنځمې قاعدې لاندې دغه اصول ذکر کړي دي او ددې یې څو مثالونه ویلي دي، د هغو په تمهید کې یې داسې فرمایلي دي:

**څلورمه قاعده داده**: په کوم ځای کې چې دوه مفسده جمع شي، نو د غټ مفسد څخه د ځان ساتلو لپاره د کوچني مفسد عملي کول په کار دي، حضرت امام زیلعي رحمه الله په "باب شروط الصلوة" کې فرمایلي دي چې په دغه ډول مسائلو کې اصول دادي چې کوم سړی چې په دوو بلاوو کې گرفتار وي او دغه دواړې بلاوې په ضرر

کې سره برابرې وي، نو بیا دده خوښه ده کومه یوه چې اختیاروي کولای یې شي، او که چیرې دغه دواړې مختلفې وي ، نو په دې صورت کې د کومې یوې بدوالی چې و هغې بلې ته اهون او سپک وي ، د هغې اختیارول په کار دی ، ځکه چې د حرام ارتکاب صرف د اضطرار په حالت کې جائز دی.

**(الاشباه والنظائر مع شرح حموي جلد اول صفحه ۱۲۳)**

د شامي ددې عبارت څخه چې د غټ حرام چې زنا ده د ځان ساتلو لپاره کوچنی حرام چې استمناء یا په لاس سره مني را ایستل دي اختیار کړئ، ددې څخه دا مطلب وانه خلئ چې گویا شامي د استمناع بالید اجازه ورکړې ده، دا ډول مطلب اخیستل بالکل غلط دی.

البته ددې خبرې په دې ډول تعبیر کول صحیح دی چې د غټ حرام څخه د ځان ساتل واجب دي ، که څه هم چې د کوچني حرام عملي کول د غټ حرام څخه دځان ساتلو ذریعه جوړه شي .**(فتاوی یوسفیه جلد۹صفحه ۱۶۶)**

مسلمان باید خپل نفس په پوره پوره واک کې راولي، هیڅکله د زنا کولو په هکله یوه زره سوچ هم ونه وهي، او نه باید هیڅکله استمنا وکړي ، خو سوال دادی که یو سړی د نفس او شیطان په داسې ټینګ جال کې را ګیر شوی وي چې واک او اختیار یې د لاسه بالکل وتلی وي ، نو اوس ده ته په دې هکله هیڅ چاره نه وي چې یا به د غټې ناروا په عمل کولو کې خپل مخ توروي او یا به د لاس په ذریعه د خپل شهوت په قابو کولو کې برى لاس ته راولي، په دغه



حالت کې دغه سړي ته څه کول په کار دي ، لږ د عقل او شرع څخه ددې په هکله فتوی وغواړئ. والله اعلم.

## آیا د یوې ګناه په ذریعه بله ګناه دفع کول جائز دي؟

**پوښتنه**: که یو سړی د یوې ګناه په ذریعه بله ګناه دفعه کړي آیا دا روا دي؟

**جواب**: نه وروره ! دا کار هیڅکله روا نه دی، د یوې ګناه د پرېښودلو لپاره بله ګناه اختیارول هیڅکله روا نه دي، بلکې د شروع څخه د هغې ګناه مقابله کول په کار ده د مثال په توګه ویوې ښځې یا یوه ښایسته هلک ته د غلط او بد نظر څخه د ځان ساتلو علاج دا نه دی چې یووار ښه په ماړه نس سره ورته وګورې ، بلکې ددې علاج غض بصر یعني د خپلو سترګو کښته کول دي، که څه هم چې دا کار به ستا د خواهش پر خلاف وي او ستا لپاره به ډېر تکلیف وي.

د یو عالم په باره کې ویل شوي دي چې هغه به هره میاشت او په خاصه توګه بیا په محرمه کې لسمه جوړوله او ددې حکمت به یې دا یاداوه چې زه ددې لپاره دا کار کوم چې خلک د شیعه ګانو و مجلسونو ته ورنه شي.

یوه غیر مقلدمولوي صاحب ددې ډېر ښه جواب ورکړی ویل که چیرې داسې خبره وي نو د هندوانو هولي[1] او دیوالي[2] هم په دغه نیت سره کول په

---

(1) هولي د هندوانو یو رسم دی چې دوی یې د پسرلي په موسم کې لمانځي (فیروزاللغات)
(2) دیوالي هم د هندوانو یو رسم دی چې په دې ورځ دوی د خپلو بتانو عبادت کوي او ډېره روښنایي جوړوي

کار دي، تر څو چې خلک ددوی د ټولنو ښخه راوګرځي، ځکه چې په نفس معصیت کې خو دواړه برابر دي. (**تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۸۳**)

فکرمو وي چې دغه پورته قاعده د هغې مخکنۍ قاعدې سره چې د اخف المفسدتین د اختیارولو قاعده نومېده ګډه نه کړئ، ښه فکر وکړئ.

## ددې قاعدې تشریح چې څومره زیات تکلیف راځي هغومره یې ثواب ډېرېږي:

د ځینو خلکو دا خیال دی چې په هر کار کې چې څومره زیات تکلیف راځي، هغومره یې ثواب ډېرېږي، مګر مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله وایي چې په دې هکله یو څه تفصیل دی چې په لاندې ډول دی:

په اعمال مقصوده وو کې خو دا خبره صحیح ده، مثلاً په لمانځه، روژه، اوداسه او داسې نورو شیانو کې چې د ډېر یخ او یا د ډېر تکلیف په وخت کې د اوداسه په کولو ثواب زیات دی، په ګرمي کې د روژې ثواب زیات دی.

مګر کوم کارونه چې پخپله مقصود نه وي، بلکې د مقصود ذریعې وي په هغوی کې بې له سببه په زیات تکلیف برداشتولو سره ثواب نه زیاتېږي، مثلاً دلته نژدې اوبه موجودې وي، ته دا پرېږدې درې میله لیرې ځې، د هغه ځایه څخه اوبه راوړې او بیا اودس په تازه کوې (یا مثلاً په ژمي اویخ کې تودې اوبه موجودې وي، مګر ته په یخو اوبو اودس تازه کوي) نو باید ووایم چې دا کار د زیات ثواب سبب نه جوړېږي، تاسې د قرآن شریف دا آیت نه دی



اورېدلی چې فرمایي: ماجعل علیکم فی الدین من حرج.

(**سورة الحج آیت ۷۸**)

**ترجمه**: او نه یې دی ګرځولی پر تاسې باندې په دین کې هیڅ حرج (مشقت او تکلیف).

او همدارنګه دغه حدیث الدین یسر، نوکه یو څوک ددغه دلیلونو په پوهېدلو سره سره بیا هم تکلیف او مشقت د دین جزء وبولي، نو د حضرت تهانوي رحمه الله په قول دا کار ددغو نصوصو سره مقابله کول دي

نعوذ بالله من ذالک

## په مقصود کې تکلیف برداشت کول موجب د ثواب دی:

په مقصود کې تکلیف برداشت کول موجب د ثواب دی، مګر کوم شی چې د مقصود ذریعه وي، په هغه کې چې کوم صورت اسانه وي نو د هغه اختیارول افضل او ښه کار دی.

لکه په حدیث کې چې راغلي دي چې رسول الله ﷺ چې به کله یو چا ته د یو کار په دوو شقونو کې اختیار ورکاوه، نو چې کوم شق به ډېر اسانه ؤ، هغه به یې ورته فرمایه، او د فطرت سلیمه هم همدا غوښتنه ده، مثلاً یو سړی غواړي چې اودس تازه کړي، نو ددې یو صورت خو دا دی چې په دغه نژدې حوض کې اودس تازه کړي او بل صورت یې دادی چې دوه میله لیرې ولاړ شي

د هغه لیرې حوض څخه اوبه راوړي او بیا اودس په تازه کړي اویا هلته په هغه دوه میله لیرې حوض کې اودس تازه کړي او بیا بېرته راشي، نو دا چې اودس خو پخپله مقصود نه دی، بلکې د اصل مقصود چې لمونځ دی د هغه ذریعه ده، نو ددې وجې په دې کې تکلیف برداشت کول موجب د ډېر ثواب نه دی. بلکې اسانه صورت چې کوم دی د هغه اختیارول افضل او غوره دی. ددې خلاف که چیرې په لمانځه کې اوږد قرائت ووایې مثلاً په لومړي رکعت کې سورت بقرة ووایي او په دوهم رکعت کې آل عمران ووایې، نو ددغه تکلیف په وجه سره زیات ثواب ورکول کیږي، د هغه لمانځه په نسبت چې کوچني سورتونه یې پکښې ویلې وي، ځکه چې لمونځ د مقاصدو څخه دی. مګر فکر مو وي چې په دې کې هم حدود او اندازې شته او یا مثلاً ټوله شپه په عبادت تېره کړي، دومره ناوخته پریوزي چې د سهار جماعت ځیني تېر شي نو د حضرت تهانوي رحمه الله په قول ددغه کار هم ممانعت راغلی دی. (همدارنګه د خلکو د رعایت په وجه دومره اوږد لمونځ کول چې پر خلکو تکلیف شي ښه کار نه دی). **(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۸۴)**

## که چیرې په یو مستحب کار سره د عقیدې فساد راتلی د هغه ترک واجب دی:

فقهاوو لیکلي دي: که چیرې د یو مستحب کار په کولو سره په عقیده کې فساد راتلی نو ددغه مستحب پرېښودل ضروري دي. **(حسن العزیز)**



تحفة العلماء تر دې عنوان لاندې لیکلي دي: د مستحب په پرېښودلو باندې ملامتیا روا نه ده خصوصاً بیا هغه مستحب چې په کولو سره یې مفاسد پیدا کیږي، د هغه مستحب پرېښودل په کار دي.

**(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۹۸)**

## د مصالحو او مفاسدو په منځ کې ټکر راتلل:

دا یوه شرعي قاعده ده په کوم کار کې چې مفاسد غالبه وي، نو که چیرې دغه کار غیر مطلوب وي، نو ددغه عمل څخه راګرځېدل په کار دي. او که چیرې دغه عمل مطلوب ؤ، نو ددغه کار د عمل څخه منع نه ده په کار. بلکې د هغو مفاسدو مخنیوی په کار دی. **(بوادر، بیان القرآن)**

که چیرې په یو خلاف شرع کار کولو کې یو څه فائدې او مصلحتونه هم وي، چې د هغوی حاصلول شرعاً ضروري نه وي، یا د هغوی په حاصلولو کې نورې لارې هم وي او ددغو فائدو د حاصلولو په نیت سره دغه کار وکړل شي دا هم روا نه دي. **(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۹۸)**

په حدیثو کې د سجده شکر فعل مباح بلل شوی دی، مګر د علامه شامي په قول د حنفي فقهاوو په نزد ځکه مکروه ګڼل شوی دی، چې داسې نه وي چې عوام یې مقصود وبولي او په عالمګیري کې راغلي دي ددې لپاره چې جاهل خلک یې سنت یا واجب ونه بولي، او کوم مباح فعل ته چې دغه نوبت رسیږي، د هغه کول مکروه دي.

البته هغه کار چې پخپله شرعًا ضروري وي، نو هغه فعل پرېښودل نه دی په کار، په داسې کار کې چې کوم مفاسد پیدا کیږي، د هغوی اصلاح په کار ده، مثلاً د جنازې سره یو نوحه او ماتم کوونکې ښځه ملګرې وي، نو ددې سره د یوځای تګ د مکروه والي په وجه د جنازې سره تګ پرېښودل نه دی په کار، بلکې د جنازې سره به ځي، دغه نوحه یا ماتم کوونکې ښځه به منع کوې، ځکه چې د جنازې سره تګ یو ضروري کار دی، نو دداسې عارضي کراهت په وجه سره اصل مقصود کار پرېښودل نه دي په کار.

مګر د دعوت او مېلمستیا د قبول حکم ددې څخه جلا دی، چې هلته د مکروه د اقتران (شامل والی) په وجه سره، پخپله دعوت او مېلمستیا ترک کول ضروري دی، ځکه چې دا خو ضروري امر نه دی، علامه شامي په دغو مسئلو کې هم فرق کړی دی. **(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۹۹)**

## هغه مباح یا مستحب کار چې د یو معصیت او ګناه ذریعه جوړیږي هغه هم ممنوع دی:

فقهاوو او صوفیه وو ددې قاعدې ډېر لحاظ کړی دی چې کوم مباح یا مستحب چې د ګناه ذریعه جوړیږي یعني **مفضي الی المعصیت** وي هغه هم ممنوع دی، مثلاً د نشې دومره لږ اندازه شیان چې نشه نه راولي حرام نه دي، مګر دا چې لږ مقدار د ډېر مقدار چې نشه راوستونکی دي ذریعه جوړیږي، نو له دې سببه لږ هم منع دي. **(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۱۰۰)**



## د یو سړي په جائز او روا عمل سره که چیرې د نورو د غلطې نظریې تائید او د هغوی لپاره سند جوړیږي، نو ددغه سړي په حق کې هم دغه عمل ناجائز ګرځي:

دا قاعده د اورېدلو قابله ده که چیرې د یو سړي د یو داسې مباح عمل په وجه سره چې سنت مؤکد، واجب او فرض نه وي، بل چا ته د ضرر رسېدلو غالب ګمان یا یقین وي، نو دغه کار ددغه سړي په حق کې هم مباح او روا نه شي پاته کېدای.

نو په دغه قاعده سره دغه اعمال او افعال ددغه محفوظ شخص په حق کې هم په دې وجه سره چې نور خلک به دده تقلید وکړي او خراب به شي، دده لپاره هم ناجائز ګرځي.

ددغې شرعي قاعدې حاصل هغه دی چې په عقلي قانون کې ورته د حضرت اشرف علي تهانوي ﷺ په قول قومي همدردي وايي یعنې د همدردۍ غوښتنه داده: تر کومه ځایه چې ممکنه وي و نورو ته ګټه ورسوه، او که چیرې ګټه نه شې ور رسولای، نو ونورو ته د نقصان رسولو څخه خو باید ځان په ټینګه راوګرځوې.

زه ستاسې څخه پوښتنه کوم، یو کوچنی چې حلوا خوړل تاوان ورته رسوي، آیا ددغه کوچني پلار به دا خوښه کړي چې صرف د خوند اخستلو لپاره دې د کوچني په مخکې کښېني او حلوا دې ښه په خوند. خوند سره وخوري؟ زه خو فکرنه کوم چې یو باشعوره پلار دې داسې کار وکړي، ځکه چې پلاردا فکر

کوي که چیرې زه داسې کار وکړم شاید زما زوی یې هم وخوري او ناجوړې یې لازیاته شي، چې داسې ده نو آیا د هر مسلمان سره دا ډول همدردي نه ده په کار؟

ددې د حفاظت مثال داسې دی لکه ستا زوی چې ناجوړه وي او ډاکتر یا طبیب دده لپاره حلوا تاواني بللې وي او کوچني ته یې د حلوا خوړلو څخه پرهېز ورکړی وي، نو دا خو ښکاره خبره ده، ددې لپاره چې ستا زوی دې حلوا ونه خوري ته پخپله هم د حلوا څخه پرهېز کوې تر دې چې خپلې بي بي ته لا وایې چې تر څو زما زوی جوړېږي حلوا مه پخوه.

نو زه ستا څخه پوښتنه کوم چې ته ولې د حلوا څخه پرهېز کوې، تا ته خو ډاکتر او طبیب نه دي ویلي چې د حلوا څخه پرهېز کوه او نه یې دا درته ویلي دي چې ستا لپاره حلوا تاواني ده، مګر بیا هم ته د حلوا څخه پرهېز کوې، که دې هر څومره شوق هم ورته وشي بیا هم حلوا نه خورې، دا ځکه چې ستا د خپل زوی سره مینه او محبت دی.

حلوا خو ته ځکه نه خورې چې کوچنی به مې ووینې او هغه به یې هم وخوري او ناجوړي به یې لازیاته شي، نو د کوچني د حفاظت لپاره د هغه شي خوړل چې ستا لپاره ګټور او ستا خوښ هم دي د خپل ځان لپاره یې خوراک ناجائز بولې.

همدغه معنی فقهاوو د ځینو مستحبو کارونو څخه د مکروه جوړېدلو په هکله ویلې ده، د مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله په قول د داسې کار د نه کولو فضیلتونه په احادیثو کې ډېر راغلي دي، اعتراض کوونکی دا نه شي



ویلای چې ولې ته ددې کار وعملي کولو ته مکروه وایې. لکه ما چې مثال درکړی په دې کې هیڅوک دا اعتراض نه کوي چې د حلوا منع خو د کوچني لپاره راغلې ده، ته ولې خپل ځان او ټوله کورنۍ د حلوا د خوړلو څخه راګرځوې.

دا چې نور مسلمانان د ضرر څخه ساتل فرض دي، نو ددې سببه که چیرې د یو غیر ضروري فعل په وجه د عوامو په عقیده کې خرابي پیدا کېږي، نو دغه کار د خواصو په حق کې هم مکروه ګرځي، ددې لپاره په کار ده چې دوی دغه کار پرېږدي.

په حدیث شریف کې راغلي دي چې جناب رسول الله ﷺ په بیت الله شریفه کې د حطیم د داخلېدلو اراده کړې وه، مګر په دې خیال سره چې د نوو مسلمانانو په زړونو کې اندېښنه پیدا کېږي او دغه کار یو ضروري کار هم نه ؤ، نو ځکه جناب رسول الله ﷺ دغه کار وځنډاوه او تصریحاً یې دغه وجه وفرمایله، حال دا دی چې حطیم خو په بیت الله کې داخلول یو مستحسن او ښه کار ؤ، مګر وګوره د عوامو د اندېښنې د ضرر په وجه جناب رسول الله ﷺ دغه کار ترک کړی.

په ابن ماجه کې د حضرت عبدالله قول دی چې د مړي کورنۍ ته په اوله ورځ ډوډۍ ورکول سنت وه، مګر دا چې خلکو ضروري وبلل نو متروک او ممنوع شول، ښه فکر وکړئ خواص یعني هغو خلکو چې دا کار یې واجب او ضروري نه باله پخپله هم دغه کار د عوامو د دین د حفاظت په غرض ترک او پرېښاوه. (**اصلاح الرسوم**)

## داسې کارکول چې د خلکو په نزد بد وي:

تحفة العلماء ليکي چې يو اهل علم سړي داسوال وکړی ويل که چيرې يو کار شرعاً فی نفسه خو بد او قبيح نه وي ، بلکې محمود او مستحسن وي، مگر دعوامو په نزد دغه کار بد او مذموم وي او ددې انديښنه وي که چيرې دغه کار وکړل شي، نو عوام بدگمانه کيږي ، او دغه سړی بدنامه کوي، نو په دغه صورت کې څه کول په کار دي؟ آيا د خلکو د ملامتيا پروا دې نه کوي او دغه کار دې وکړي، او که د ملامتی او بدنامی د ببرې دې دغه کار پرېږدي؟

حضرت حکيم الامت وفرمايل چې ددغه سوال جواب مولانا محمد قاسم صاحب رحمه الله پخپل تقرير کې فرمايلی دی چې ددې په هکله فيصله کول د حکيم کار دی، په دغه صورت کې نه خو على الاطلاق ددغه کاره څخه منع کېدای شي او نه على الاطلاق ددې اجازت ورکول کېدای شي يعني نه مطلق منع کېدای شي او نه مطلق اجازه ورکول کېدای شي.

په کتاب او سنت کې د غور کولو څخه وروسته دوې واقعې د بيان وړ دي ، دا دواړې واقعې داسې وې چې جناب رسول الله ﷺ ددې عملي کول نه غوښتل، ځکه چې د عوامو په نزد قابل ملامت وې، مگر په يوه مقام کې الله ﷻ د جناب رسول الله ﷺ رايه پر خپل ځای پرېښودل ، او په دوهمه واقعه کې يې د جناب رسول الله ﷺ د رايې خلاف حکم ورکړی، دغه دواړې واقعې په لاندې ډول دي:

**لومړۍ واقعه** : په بيت الله شريفه کې د حطيم داخلېدل وه، چې قريشو



د خرڅ د لږوالي په سبب حطيم د بيت الله څخه ايستلی ؤ، رسول الله ﷺ دا اراده وکړه چې حطيم بايد بېرته په بيت الله کې داخل کړل شي، مگر بېرته يې ددې فکر په وړاندې دغه کار معطله او وځنډاوه چې د مکې خلکو اوس اوس اسلام راوړی دی ، جناب رسول الله ﷺ فکر وکړی که چيرې زه کعبه شريفه ونړوم ، نو د دوی (په زړونو کې) به دا خيال پيدا شي چې دا څنگه نبي دی چې کعبه يې ونړوله او دهغې بې عزتي يې وکړل، نو په دې سره به د دوی په اسلام کې ضعف پيدا شي، نو په دغه مقام کې الله ﷻ د جناب رسول الله ﷺ رايه مبارکه پر خپل ځای پرېښودله او ددغه کار چې د ملامت والي ذريعه وه د کولو اجازه يې ورنه کړل.

**دوهمه واقعه** :هغه واقعه ده چې په دې کې يې بيا د خلکو د ملامتوالي پروا ونه کړل، دغه واقعه د حضرت زينب رضی الله تعالی عنها سره د نکاح واقعه ده چې پخپله په قرآن شريف کې ذکر ده .

حضرت زيد بن حارثه و بي بي زينب رضی الله تعالی عنها ته طلاق ورکړ، نو جناب رسول الله ﷺ دا فکر وکړی چې د بي بي زينبې رضی الله تعالی عنها او ددې د دوستانو د دل جويي او ډاډ گېرنې لپاره اوس همدا يو صورت پاته دی چې زه ددې سره نکاح وتړم ، مگر ده دا کار بېرته په دې وجه خوښ نه کړ چې زيد بن حارثه د جناب رسول الله ﷺ متبنٰی يعني په خوله ويونکی زوی ؤ، متبنٰی د خپل اولاد په ډول گڼل کېده ، ده مبارک فکر وکړ، ويل که چيرې زه د بي بي زينب رضی الله تعالی عنها سره نکاح وتړم ، نو جاهلان، مشرکين او منافقان به مې تورن او بدنامه کړي ، وايي به چې د مړور سره يې نکاح وتړله او ددغه طعن

په وجه سره به ډېر خلک د اسلام څخه مخ واړوي.

وګورئ د بي بي زينبې مبارکې سره د نکاح په کولو کې هم د هغه فساد احتمال ؤ لکه د حطيم په قصه کې چې ددې احتمال ؤ، مګر حق تعالی ﷻ دلته د فساد د پيدا کېدلو پروا ونه کړل او جناب رسول الله ﷺ ته يې حکم وکړ چې د حضرت بي بي زينبې مبارکې رضی الله تعالی عنها سره نکاح وتړه او د بدنامۍ او طعن پروا مه کوه.

ددغو دواړو واقعو څخه دا خبره معلومېږي چې هر مفسد قابل اعتبار نه دی او نه هر مصلحت قابل تحسين دی، نو د مصلحت د فوت والې يا د يو مفسد د پيدا والې په احتمال سره يو مباح او مستحب کار حرام بلل د هر چا حق نه دی.

په دې هکله مولانا قاسم رحمه الله فرمايلي دي چې په دې پوهېدل د حکيم کار دی چې په کوم ځای کې دملامت والې څخه د بېرې په وجه يو مباح او مستحب فعل پرېښودل په کار دی او په کوم ځای کې نه دی په کار.

**(الافاضات اليومية)**

تحفة العلماء د حکيم الامت بيان را اخلي او دا راز ليکي: په دغو دواړو واقعو کې فرق شته چې په يوې واقعې کې د ملا متوالې څخه د بېرې لحاظ وکړل شو او په بله واقعه کې ونه کړل شو دا چې ددغو دوو واقعاتو تر منځ څه فرق دی، ددې څه وجه ده، نو ولاندې خبرو ته توجه وکړئ:

د لوی خدای ﷻ شکر دی چې زما په ذهن کې يې دغه فرق راواچاوه هغه دا دی چې کتاب او سنت ته په نظر کولو سره دغه قاعده مستنبطېږي چې هغه



کار (که هغه مفضي الی المعصيت وي او يا پر نورو مفاسدو مشتمل وي) او د خلکو په نزد قابل ملامت وي هغه کار که چېرې واجب يا مقصود فی الدين وي، نو د بدنامۍ د بېرې (يا د مفسد په سبب سره) د هغه پرېښودل نه دي په کار، او که چېرې هغه کار نه خو واجب وي او نه مقصود فی الدين وي نو د هغه پرېښودل په کار دي.

د حضرت بي بي زينبې رضی الله تعالی عنها په واقعه کې چې د خلکو د بدنام کولو او د فساد د احتمال د راتللو پروا ونه کړل شوه او نکاح ترک نه کړل شوه ددې څه وجه وه؟

دا په دې چې زيد بن حارثه رضي الله عنه د جناب رسول الله ﷺ متبنی ؤ او په هغه زمانه کې عامو خلکو د متبنی د منکوحې سره نکاح کول ناجائز او حرام ګڼل. نو د عوامو ددغې فاسدې عقيدې د اصلاح لپاره په هغه وخت کې صرف قولي تبليغ بس نه ؤ، بلکې دفعلي تبليغ ضرورت ؤ او نکاح کول فعلي تبليغ ؤ او داچې تبليغ واجب فی الدّين دی. نو ځکه دغه نکاح کول مقصود فی الدين وه، نو ددې وجې جناب رسول الله ﷺ په دغه ځای کې د ملا متيا پروا ونه کړل، مګر په بيت الله شريفه کې د حطيم داخلېدل ددې سره فرق لري. ځکه چې حطيم په کعبه کې داخلول پخپل ذات کې يو شرعي مقصود نه ؤ او نه دا په دين کې يو ضروري کار ؤ، بلکې يو مستحسن کار ؤ او پر دې باندې يو ضروري مقصود هم موقوف نه ؤ، (نو ځکه د بدنامۍ او مفسدې رعايت وکړل شو او دا کار پرېښودل شو).

خلاصه داده چې په شرعي مقاصدو کې د بدنامۍ هيڅ پروا نه ده په کار او

په غیر مقاصدو کې د بدنامۍ څخه د ځان ساتل مناسب او د سنت موافق کار دی، چې کله دغه تفسیر زما په فکر کې راغی نو ټوله غبار ختم شو.

ددې دوهم مثال وګورئ جناب رسول الله ﷺ چې خلک د توحید و لارې ته رابلل، نو خلکو د جناب رسول الله ﷺ څومره بدنامي کوله آیا جناب رسول الله ﷺ د هغوی د بدنامولو په وجه سره د توحید دعوت پرېښاوه؟

دریم مثال یې د معراج واقعه ده چې حضرت بي بي ام هانی رضی الله تعالی عنها د جناب رسول الله ﷺ د څادر یوه څوکه ونیوله او عرض یې ورته وکړ چې یا رسول الله ﷺ ! ته و خلکو ته دغه قصه یعني د معراج قصه مه کوه که نه نو خلک به ستا تکذیب وکړي، مګر جناب رسول الله ﷺ د بي بي ام هانی رضی الله تعالی عنها په مشوره عمل ونه کړ، ځکه چې د معراج د قصې اظهار مقصود فی الدین ؤ او مقصود فی الدین د ملامتوالي د بېرې نه شي پرېښودل کېدای.

**(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۱۰۳)**

## د سنت تعریف:

سنت هغه شي ته نه ویل کیږي چې محض د جناب رسول الله ﷺ څخه ثابت وي. بلکې سنت هغه شي ته ویل کیږي چې د جناب رسول الله ﷺ عادت غالبه وي. بیانو هغه غلبه که حکمي وي او که حسي وي لکه تراویح ته چې سنت مؤکده ویل شوي دي او تاکید یې پر دوام موقوف دی او ښکاره خبره ده چې پر دې باندې حسي دوام نه دی شوی، مګر جناب رسول الله ﷺ د یو خاص عارض (په وجه دوام پر ونه کړ) د فرض کېدلو د بېرې د عذر په فرمایلو سره



د دوام مطلوب کېدل معلوم شول او دغه دوام حکمي دی

همدارنګه تحفة العلماء لیکي: د جناب رسول الله ﷺ څخه (صرف) د یو کار رانقل کېدل د سنت کېدلو لپاره کافي او بس نه دی. بلکې چې غالب عادت یې وي هغه سنت دي، او کوم شی چې د یو عارض په وجه ځینې صادر شوی وي، هغه ته سنت نه ویل کیږي **(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۱۰۸)**

## د سنت قسمونه (ډولونه) :

سنت مطلقه هغه دی چې په ډول د عبادت یې کړی وي . که نه نو د سنت زوائدو څخه شمېرل کیږي . مثلاً د جناب رسول الله ﷺ وریښتان پرېښودل په ډول د عادت وه . ددې په نه والي کې خو شک نه شته . مګر ددې و مخالفت ته خلاف سنت نه ویل کیږي **(امداد الفتاوی)**

سنت پر دوه ډوله دي: چې یوه ته یې سنت عبادت او بل ته یې سنت عادت ویل کیږي، په دې هکله تحفة العلماء و امداد الفتاوی ته په حوالې سره داسې زیاتوي:

**سنت دو قسم است ، سنت عبادت و سنت عادت ، مطلق لفظ سنت بر قسم اول اطلاق کرده میشود واستحقاق وعدۀ ثواب و ترغیب بر آن همین قسم منوط است و قسم ثاني هم خالي ازبرکت و دلیل محبت و بودن نیست ، لیکن مقصود جزء دین نه باشد، و اګر این قسم مخل ازامری ازمقاصددین درحق شخصي شود اورا از آن باز داشته شود .**

# د حدیث د راژوندي کېدلو تعریف:

یو وخت شاه عبدالقادر صاحب و مولوي محمد اسمعیل صاحب ته وویل چې ته رفع الدین پرېږده، ځکه چې ددې څخه خامخا یوه فتنه جوړیږي.

مولوي اسمٰعیل صاحب ډده په جواب کې وویل: که چیرې د عوامو د فتنې خیال وکړل شي نو بیا ددې حدیث په هکله څه وایي: **من تمسک بسنتی عند فساد امتی فله اجرمائة شهید.**

شاه عبدالقادر صاحب چې د مولوي محمداسمعیل صاحب دا ډول جواب واورېد نو یې وفرمایل: ما اورېدلي وه چې اسمٰعیل صاحب عالم شوی دی، مګر متاسفانه چي دی خو د یوه حدیث په معنی هم نه پوهیږي. دی په دې نه پوهیږي چې ددې حکم هغه وخت دی چې د سنت په مقابل کې خلاف سنت وي، نو دا چې موږ رفع الیدین نه کوو د سنت خلاف کار نه دی، بلکې دا دوهم سنت دی، ځکه چې لکه څه ډول چې رفع الیدین سنت دی همدا ډول ارسال هم سنت دی. **(بوادر النوادر)**

# د سنت او د بدعت تر منځ فرق:

د بدعت حقیقت دادی چې یو نوی شی دین و بولي او اختیار یې کړي، مګر که چیرې یې معالجه وبولي او اختیار یې کړي، بیا خو بدعت نه شي ورته ویل کېدای نو باید ووایم چې یو **احداث للدین** دی او بل **احداث فی الدین** دی، **احداث للدین** معنی سنت دی او **احداث فی الدین** بدعت دی.



یو وخت یوه سړي د اعتراض په ډول وویل چې مدرسې او مکتبونه جوړول دا هم بدعت دی، ځکه چې دا خو د جناب رسول الله ﷺ په وخت کې نه وه، نو موږ ورته وایو که چیرې د بدعت معنی دا وي لکه تا چې ویلې ده، نو بیا خو باید ووایو چې هر هغه شی چې په خیر القرون کې نه ؤ، د هغه پیدا کېدل اوس ټوله په بدعت کي داخل دي، نو ددې وروسته ویلای شو چې ستا وجود خو هم په خیر القرون کې نه ؤ، نو ته هم یو مجسم بدعت یې، مګر حقیقت دا دی چې دغو حضراتو ته د بدعت صحیح تعریف نه دی معلوم.

دغو حضراتو ته باید ووایو چې یو نوی کار په ډول د عبادت کول دا بدعت دی او که چیرې په ډول د انتظام وکړل شي نو بیا خو بدعت نه دی، د سنت او د بدعت د ښه تشریح لپاره باید ووایم چې د خیر القرون وروسته چې کوم شیان په وجود راغلي دي هغه پر دوه قسمه دي یو هغه دي چې د هغوی سبب داعي هم جدید او نوی وي او دغه شی موقوف علیه د یو ماموربه وي، یعني د شریعت یو حکم پر دې کار باندې موقوف وي، په دې معنی چې بې له دې شي څخه په ماموربه شي عمل نه شي کېدای لکه د دیني کتابونو تصنیف او تدوین همدارنګه د مدرسو جوړول چې ددغو څخه یو شی هم د جناب رسول الله ﷺ په زمانه کې نه ؤ، د دوی سبب داعي هم نوی دی او همدارنګه یو ماموربه شی چې د دین حفاظت دی پر دوی باندې موقوف دی.

ددې خبرې تفصیل په دې ډول دی: دا خو ټولو ته معلومه ده چې د دین حفاظت د ټولو پر ذمه ضروري دی، تر دې وروسته دې ته فکر وکړئ چې د خیر القرون په زمانه کې د دغو نوو مسائلو څخه یو شی هم نه ؤ موجود خو د

الله ﷺ سره تعلق یا په بل عبارت مخامخ او براه راست ټوله خلک د نبوت په برکت سره مشرف وه ، یادا ښت او حافظه دومره قوي وه چې ددې ضرورت پېښې ؤ نه چې د سبق په ډول دې د دوی په مخکې کتابونه کښېښودل شي ، تقوی او پرهېزګاري هم په اخیري اندازه زیاته وه، تر دې وروسته یوه داسې زمانه راغله چې غفلتونه او بې پروایانې ډېرې شوې ، قوه کمزورې شوه، د اهل هواوو او د عقل پرستو غلبه زیاته شوه ، دینداري او دیانت داري پر کمېدو شوه، نو په دې وخت کې علماوو ته د دین د ضائع کېدلو قوي اندېښنه ور پیدا شوه ، نو بې ځکه دا ضروري و ګڼله ،چې د دین هره څانګه باید ترتیب او تدوین کړل شي ، نو ځکه د حدیثو کتابونه ، د اصولو حدیث کتابونه ، د فقهې کتابونه ، د اصول فقه او عقایدو کتابونه تصنیف کړل شول او ددغو کتابونو د تدریس لپاره مدرسې او مکتبونه جوړ کړل شول

نو دا داسې شیان دي چې د دوی سبب جدید او نوی دی ، په دې معنی چې دغه سبب په خیر القرون کې نه ؤ، نو باید ووایم چې پر دغو شیانو ماموربه شی چې د دین حفاظت او ساتنه ده ولاړه ده ، نو دغه شیان که څه هم چې په ظاهره خو بدعت معلومېږي، مګر په حقیقت کې بدعت نه دي ، بلکې ددې قاعدې له رویه چې "مقدمة الواجب واجب" واجب دي

او بل قسم هغه شیان دي چې د هغو سبب قدیم او پخوانی دی. لکه میلاد مروجه او داسې نور بدعتونه ، د دوی سبب قدیم دی ، مثلاً د مېلاد د جوړولو سبب فرح علی الولادة النبویة یعني دجناب رسول الله ﷺ د زېږېدنې



نېکمرغه خوشالي ده، او دغه سبب د جناب رسول الله ﷺ په زمانه کې هم موجود ؤ، مګر نه جناب رسول الله ﷺ او نه صحابه ووؓ دغه مجلسونه منعقد او جوړ کړي وه، آیا نعوذ بالله د صحابه ووؓ فکر ودې ځای ته نه ورلوېدی او که څنګه؟

که چیرې ددغو شیانو سبب په هغه وخت کې موجود نه وای. نو لابه مو ویلای چې په هغه وخت کې ددې منشاء او سبب نه ؤ موجود، مګر دا چې سبب، باعث او مدار موجود ؤ، نو بیا ولې نه جناب رسول الله ﷺ دغه د مېلاد مجلس جوړاوه او نه هم صحابه کرامو ؓ جوړاوه؟

حضرت تهانوي رحمه الله وایي چې ددغه شي حکم دا دی چې دا بدعت دی هم صورةً او هم معنیً او په دغه حدیث کې داخل دی چې فرمایي

من احدث فی امرناهٰذا مالیس منه فهورد. (**مشکوة شریف**)

یعني څا چې زموږ د دین په کارونو کې یو داسې نوی کار پیدا کړی چې د دین سره یې تعلق نه درلودی هغه مردود دی

دغه ډول کارونه چې بدعت ورته ویل کېږي واجب الرد دي او لومړی قسم چې موږ مخکې یاد کړل په مقبول کې داخل دي، د بدعت او سنت د پېژندلو لپاره دا یوه قاعده کلیه ده. ددې څخه د ټولو جزئیاتو حکم را ایستل کېدای شي (**تحفة العلماء جلد ۲ صفحه۱۱۰**)

## د بدعت د نه روا والي یوعقلي مثال:

داخو تاسې ته معلومه ده که چیرې یو څوک د ماپښین د څلورو رکعتونو پر

ځای پنځه رکعته لمونځ وکړي، نو دده هغه څلور رکعته لا نه شوه صحیح، حال دادی چي ده خو تر څلورو لا زیات رکعتونه وکړل، دی نه شي ویلای چي ما خو څه بد کار ونه کړ لا مي ښه کار وکړ یعني د څلور رکعتونو پر ځای مي دادی پنځه رکعته وکړه ، په دې کي بدي څه شی ده؟

خبره داده چي ده د قانون او ضابطې خلاف کار وکړ، نو ځکه یې هغه څلور رکعته هم ولاړل، ددې مثال داسي دی: که چیري یو سړی د ریل ګاډی ټکیس چي په دوه سوه روپۍ دی، ددې پر ځای د طیارې ټکیس چي په درې زره روپۍ دی وکړي او راشي ریل ګاډی ته پورته شي، په دې وخت کي به تاسي ضرور ووینئ چي د ریل ګاډی مسئول به دغه سړی بیرته راکښته کوي او ورته وایي به چي ته په ریل ګاډی کي نه شې تلای، ځکه چي تا د ریل ګاډی ټکیس نه دی کړی، دغه سړی نه شي ورته ویلای چي زما څه خو د دووسوو روپو پر ځای پوره دوه زره روپۍ تللي دي، دغه سړی ځکه په ریل ګاډی کي نه شي تلای چي د قانون خلاف کار یې کړی دی، د ریل ګاډی د سفر لپاره یې د طیارې ټکیس اخیستی دی

## د بدعت د نه روا والي یو بل مثال:

د بدعت په بدوالي کي هیڅ شک نشته، که چیري تاسي لږ فکر وکړئ نو بیا د بدعت په منع والي کي تعجب نه درلویږي، مثلاً که چیري یو مامور د حکومت اساسي قانون چاپوئ، په دغه وخت کي دغه مامور د خپله ځانه څخه د اساسي قانون په آخره کي یوه ماده ور زیاته کړي که څه هم هغه ماده به د وطن او سلطنت په ډېره ګټه وي، مګر بیا هم دغه مامور مجرم بلل کیږي او



د سزا وړ ګرځي، نو دا چي د دنیا په قانون کي لا لږ زیاتوب کول جرم ګڼل کیږي، نو د خدای ﷻ په قانون کي زیاتوب به ولي جرم نه وي، باید ووایم چي د شریعت په قانون کي زیاتوب ته بدعت ویل کیږي، چي اسلام ډېر نفرت ځیني کوي

## یو مستحب کار ته تر خپلې اندازې زیات اهتمام ورکول:

یو غیر ضروري کار په خپله عقیده کې ضروري او مؤکد بلل، یا په عمل کې ددغه کار پابندي په داسې اصرار او تاکید سره کول لکه څوک چې د فرائضو او واجباتو اهتمام کوي او یا تر دې لا هم زیات تاکید او اصرار پر کول او ددغه مستحب کار پرېښودل بد ګڼل او پرېښودونکي یې قابل ملامت بلل، باید ووایم چې دغه دواړه کارونه مذموم او بد دي، ځکه چې الله ﷻ فرمایلي دي وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللَّهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ. (**سورة الطلاق آیت ۱**)

**ترجمه**: او هر هغه څوک چي تېرېږي له حدودو د الله څخه نو په تحقیق ظلم یې کړی دی په ځان خپل باندې

همدارنګه حضرت عبدالله ابن مسعود ﵁ فرمایلي دي: پر تاسې لازمه ده چې په خپلو لمونځونو کې د شیطان برخه مقرره نه کړئ، هغه دادې چې د لمانځه وروسته و راسته طرف ته راګرځېدل ضروري وبولې، ما ډېر ځله جناب رسول الله ﷺ و چپه طرف ته پر راګرځېدلو لیدلی دی. (**بخاري و مسلم**)

طيبي شارح مشکوة ليکلي دي چې ددغه حديث څخه دا خبره راوزي چې کوم څوک چې پر يو مستحب کار دومره اصرار او ټينګار کوي او دومره يې ضروري بولي چې هيڅکله يې هم ددغه کار پر دوهم اړخ چې رخصت دی عمل نه کوي نو تاسې پوه شئ چې ددغه سړي په ګمراه کولو کې شيطان پوره برخه اخيستې ده

صاحب د مجمع فرمايلي دي چې ددغه حديث څخه دغه خبره راوزي چې مستحب کار هم مکروه ګرځېدای شي، په هغه ځای کې چې دا انديښنه وي چې دغه سړي. دغه مستحب کار تر خپلې اندازې لوړ کړي، نو ددې وجې څخه حنفي فقهاوو په لمونځونو کې د سورت مقررول مکروه بللي دي. هغه که اعتقاداً پابندي وي او که عملاً. فتح القدير ددغه تعميم تصريح کړې ده.

**(تحفه العلماء جلد ۲ صفحه ۱۱۳)**

## مستحب څنګه بدعت جوړيږي:

حکيم الامت حضرت اشرف علي تهانوي رحمه الله فرمايي چې زه مستحب ته بدعت نه وايم. بلکې (د يو غير ضروري کار) و ضروري ګڼلو ته بدعت وايم، که چيرې څوک يو مستحب کار واجب وبولي نو آيا دا بدعت نه دی؟

لازم. ضروري او واجب درې سره په يوه معنی دي يعني د دروسرو معنی يوه ده

غير لازم. لازم ګڼل بدعت ضلالت دی، او ددغه کار پر ترک او پرېښودلو باندې ملامتيا ويل، بدعت لازيات ټينګوي



فقهاوو ليکلي دي که چيرې په يو مستحب کار سره په عقيده کې فساد راتلی نو ددغه مستحب کار پرېښودل ضروري دي. **(امداد الفتاوی)**

تر دې وروسته حکيم الامت فرمايي: آيا دا بدعت نه دی چې غير واجب واجب وګڼي آيا دا د بدعت په تعريف کې داخل نه دی؟

## د سنت عبادت او سنت عادت حدود:

حکيم الامت حضرت تهانوي رحمه الله فرمايي چې زما څخه يو چا پوښتنه وکړه چې آيا د پسونو ساتل سنت دی ؟ما ورته وويل: چې هو سنت دی ، مګر سنت عادت دی سنت عبادت نه دی او اصل مقصود سنت عبادت دی . البته که چيرې سنت عادت د محبت په وجه وکړل شي ،نو په هغه کې هم ثواب اوبرکت شته

مګر فکر مو وي چې په سنت عادت کې غلو يعني تر خپلې اندازې تجاوز نه دی په کار، يعني د سنت عبادت په ډول اهتمام يې نه دی په کار، ځينې خلک شپه او ورځ په دغه تحقيق کې اخته وي چې د جناب رسول الله ﷺ لکړه مبارکه څومره غټه وه او لنګوټه شريفه يې څومره اوږده وه او داسې نور......

که چيرې يو عاشق ددغو خبرو تحقيق وکړي، دا خو جلا خبره ده، د هغه وجه محبت دی، مګر ډېر خلک د دين په ضرورياتو خبر نه وي او نه د دين د ضرورياتو پروا لري، خو په دغو شيانو کې بيا شپه او ورځ اخته وي، حکيم الامت وايي چې تر خپلې اندازې زياته مبالغه په کار نه ده، ځکه چې هر شی خپل حدود او اندازه لري.

په سنت عبادت کې لادا قانون دی ، که چيرې دعوامو لپاره د يو فساد احتمال غالب وي ، نو ددغه مستحب پرېښودل هم واجب دي ، لکه د جناب رسول الله ﷺ

چې دا معمول ؤ چې د جمعې د ورځې په سهار به يې "الم تنــزيل" او "ســورت دهر" وايه ، مګر حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دا کار مکروه بولي، په دې وجه لږ فکره او کم فهمه خلک پر حضرت امام صاحب رحمه الله د سنت د مخالفت الزام لګوي، حقيقت داسي نه دی چې حضرت امام صاحب رحمه الله د سنت مخالفت وکړ، بلکې حقيقت هغه دی چې موږ بيان کړ.

همدارنګه د جناب رسول الله ﷺ يو شی خوښ ؤ او هغه يې خوړی نو اوس سوال پيدا کيږي چې دا شی يې عادتًا خوړی او که عبادتًا ؟ حکيم الامت فرمايي چې دا ښکاره خبره ده چې عبادتًا يې نه خوړل ، نو د جناب رسول الله ﷺ د عادت اتباع د شريعت له رويه واجب نه ده ، نه د دغه کار په پرېښودلو کې کومه ګناه شته ، دا چې په مزاجونو او طبيعتونو کې فرق دی، د چا يو شی خوښ وي او د چا بل شی، نو ددې وجې د جناب رسول الله ﷺ ځينې داسې مبارک عادتونه هم شته چې په عملي کولو کې يې زموږ مزاجونه ډېرو مشکلاتو سره مخامخ کېدای شي( د مثال په توګه چې د جناب رسول الله ﷺ شيدې ډېرې خوښې وې، مګر زه چې شيدې وخورم زړه مې پر راپورته کيږي او يا جناب رسول الله ﷺ لنګ تړی، مګر زموږ د سيمې هوا خصوصًا د ژمي په موسم کې دومره يخه او سړه ده چې د صرف پرتاګه اغوستلو سره هم ګزاره نه شي کېدای، بلکې زموږ د سيمې ډېر خلک تر پرتاګه لاندې د برزو په نامه يوه بله پنډه جامه هم اغوندي) نو له دې سببه شريعت د عادت نبويه اتباع نه ده واجب کړې. هو! که څيرې يو څوک همت وکړي او د جناب رسول الله ﷺ عادات هم عملي کړي، نو ددې په فضيلت کې څه شک شته؟ مګر هو! دغه سړی دا حق نه لري چې پر بل چا بد ووايي چې ته هم ولې زما په شان نبوي عادات نه پر ځای کوې

**(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۱۱۶)**



## سنت پر دوه ډوله دي:

سنت پر دوه ډوله دي چې يو يې سنت عبادت او بل سنت عادت يا زوائد نوميږي، لکه نورالانوار چې ليکي:

وهي نوعان: **الاول سنة الهدى وتاركها يستوجب اساءة كالجماعة والاذان والاقامة فان هؤلاء كلها من جملة شعائر الدين واعلام الاسلام.**

**والثانى الزوائد وتاركها لايستوجب اساءة كسير النبى ﷺ فى لباسه وقعوده وقيامه فان هؤلاء كلها لاتصدر منه على وجه العبادة وقصد القربة بل على سبيل العادة.** **(نورالانوارصفحه ۱۶۷)**

يعنې سنت پر دوه ډوله دي يو هغه سنت دي چې جناب رسول الله ﷺ د عبادت پر ډول کړي وي، لکه د جماعت لمونځ، اذان او اقامت . دې ته سنت عبادت ويل کيږي، ددې شيانو پرېښودونکی ګناهکاره او د ملامتۍ وړ دی، ځکه چې دا ټوله د دين او اسلام شعائر او علامې دي، او دوهم قسم چې سنت زوائد يا سنت عادت ورته ويل کيږي، دا هغه دي چې پرېښودونکی يې ګناهکاره او د ملامتۍ لائق نه ګرځي، هغه لکه په لباس او جامه کې د جناب رسول الله ﷺ پر لار تلل همدارنګه په ناسته ولاړه کې دده مبارک پر لار تلل

د مثال په توګه يو وخت جناب رسول الله ﷺ لنګوټه تړلې ده. بل وخت يې بيا صرف خولۍ پر سر کړې ده، همدارنګه يې کله يو رنګه لنګوټه تړلې ده کله يې بيا بل ډول، همدارنګه کله يې اووه ګزه لنګوټه تړلې ده او کله يې بيا دوولس ګزه، کله بيا تر اووه ګزه هم کمه او کله يې بيا تر دې زياته تړلې ده.

همدارنګه په ناسته کي کله چارزانو کښېنستي، کله د تشهد پر ډول کله بل ډول، دا قسم ټوله شيان د جناب رسول الله ﷺ څخه ثابت دي، مګر پر طريقه د ثواب او عبادت نه، بلکي پر طريقه د عادت شريفه

بايد ووايم چي دې ته د فقهاوو په اصطلاح کي سنت زوائد يا عادت سنت ويل کيږي، لکه نورالانوار چي ليکي

وهى نوعان: الاول سنة الهدى وتاركها يستوجب اساءة كالجماعة والاذان والاقامة فان هؤلاء كلها من جملة شعائر الدين واعلام الاسلام.

والثانى الزوائد وتاركها لايستوجب اساءة كسير النبى ﷺ فى لباسه وقعوده وقيامه فان هؤلاء كلها لاتصدر منه على وجه العبادة وقصد القربة بل على سبيل العادة فانه ﷺ كان يلبس جبة حمراء وخضراء وبيضاء طويل الكُمَّين وربما يلبس عمامة سوداء وحمراء وكان مقدارها سبعة اَذرُعٍ او اثنى عشر ذراعا او اقلَّ او اكثر وكان يقعد محتبأ تارةً ومربعًا للعذر وعلى هيئة التشهد اكثر فهذا كلها من سنن الزوائد يثاب المرء على فعلها ولا يعاقب على تركها وهو فى معنى المستحب الا ان المستحب ما احبه العلماء وهذا ما اعتاد به النبى ﷺ.(نورالانوار صفحه ۱۶۷)

زوونو' مونږ دېر کارونه صرف د رواج پر ډول کوو. د مثال په توګه لنګوټه مو دومره لازمه ګڼلې ده چي واجبو ته مو رسولې ده او حال دادی چي التزام دما لايلزم بدعت دی، ددې خبرې د ثبوت لپاره مونږ وايو چي لنګوټه تړل سنت ده، ځکه چي



جناب رسول الله ﷺ تړلې ده، مګر هلته بيا که امام لنګ وتړي او تر مخه شي څوک لمونځ نه پسي کوي، حال دادی چي جناب رسول الله ﷺ تقريبًا خپل ټول ژوند په لنګ کي تېر کړی دی، نو بيا ولي لنګ د لنګوټې په ډول ضروري نه ګڼل کيږي، ښکاره خبره ده چي ددې وجه داده چي دا سنت عادت دي، سنت عبادت نه دي

او همدارنګه د فقهي کتابونه ليکي چي د نارينه لپاره په دريو جامو کي لمونځ کول مستحب دی: ۱- لنګ ۲- قميص ۳- لنګوټه.

لکه مراقى الفلاح چي ليکي:

والمستحب للرجل أن يصلى فى ثلاثة اثواب: إزار، قميص وعمامة.

## (مراقى الفلاح فصل فى مكروهات الصلوة)

مطلب دادی چي د عادتي سنتونو يا مستحباتو ومخالفت ته خلاف سنت نه ويل کيږي، نو په کار دي چي د لنګوټې تړل ښه کار . مګر لازم ونه ګڼل شي او پر نه تړونکي يې ملامتيا ونه ويل شي، ځکه چي دلته دوې خبري دي، يوه خبره داده که چيري لنګوټه سنت ومنل شي په دې معنى چي جناب رسول الله ﷺ تړلې ده نو بيا خو خولۍ هم سنت بلل په کار دي ځکه چي جناب رسول الله ﷺ خو خولۍ هم پر سر کړې ده او بله خبره داده چي غير واجب کار واجب ګڼل، يا په بل عبارت غير ضروري کار ضروري ګڼل په خپله د بدعت تعريف دی لکه فقهاء چي ليکي چي التزام مالايلتزم بدعت دی همدارنګه حکيم الامت اشرف على تهانوي رحمه الله ليکلي دي چي غير لازم، لازم ګڼل بدعت ضلالت دی او ددغه کار پر ترک او پرېښودلو باندي ملامتيا ويل بدعت لا زيات ټينګوي د لازم واجب او ضروري يوه معنى ده (تحفة العلماء)

صاحب د شرح وقايې ليکي چي د کار او خدمت په داسي خوارو کالو کي لمونځ کول مکروه دي چي په هغو کالو کي سړی و رئيسانو او حکامو ته تګ مناسب نه

ګڼي لکه چي فرمايي: و(تکره صلا ته)فی ثیاب البِذلة وهی مایلبس فی البیت ولایذهب بها الی الکُبَراء. (شرح الوقاية صفحه ۱۹۸)

علامه عبدالحی لکهنوی رحمه الله پر دي موقع د شرح وقايه په حاشيه کي زياتوي چي په نوموړو کالو کي لمونځ کول مکروه تنزيهي دی، او وجه د مکروه والی يې داښيي چي په دي کي ترک د ښه اهتمام د لمانځه راځي دا ځکه چي لمونځ افضل او غوره د عباداتو دی، وروسته ليکي چي دا په هغه وخت کي مکروه دی چي سړی نور سم کالی ولري. مګر که يې چيري نور سم کالی نه درلودل، نو بيا خو هيڅ مکروه والی نشته. والکراهة تنزيهية کمافی البحر ووجه الكراهة ان فيه ترک الاهتمام بالصلوة التی هی افضل العبادات وهذا اذاكان له غيرها والافلا.

(حاشية شرح الوقاية صفحه ۱۹۸)

لږ وروسته علامه لکهنوی رحمه الله ليکی چي فقهاوو دا خبره ذکر کړي ده چي په قميص، لنګ اولنګوټي کي لمونځ کول مستحب دی، مګر که چيري صرف په خولۍ اکتفاء وکړل شی داکار مکروه نه دی او په دي کي کومه بدي نشته. دی مبارک ليکي چي د عوامو دې خبري ته هيڅ اعتبار نشته چي بې له لنګوټي تړلو لمونځ مکروه بولي او نه د دوی دې خبري لره اعتبار شته چي وايي که چيري مقتدی لنګوټه والا ؤ او امام صرف پر خولۍ اکتفاء کړي وه داکار مکروه دی لکه چي فرمايي: وقد ذكروا ان المستحب ان يصلی فی قميص وازار وعمامة ولايكره الاِكتِفاء بالقلنسوة ولا يعتبر لما اشتهر بين العوام من كراهة ذلك وكذا ما اشتهران المؤتم لوكان مُعتمًّابعمامة والامام مُكتَفيًا على قلنسوة يكره.

(حاشية شرح الوقاية صفحه ۱۹۸)



# د سنت عادت او سنت عبادت

# د قابل ترک او ناجائز کېدلو ضابطه:

عادتي سنتونه مثلاً ساده کالي، د اوربشو ډوډی یا ددې په مثل نور شيان چي د عادتي سنت د جملې څخه وي که چيرې ددغو شيانو په وجه سره مقصود له منځه تلی، نو ددغو شيانو پرېښودل په کار دي، ځکه چې سنت عاديه يا عادتي سنت هيڅ مقصود نه دي، بلکې په ځينې ځايونو کې سنت عبادت لاهم پرېښودل کيږي، په هغه ځای کې که چيرې ضرر ځيني پيښيږي، مثلاً دا سنت دی چې د تهجد پر وخت اته رکعته پوره کړي، نو اوس وګورئ که د يوچا خوب زيات ؤ، نو که چيرې دی د تهجد پر وخت تر ډېره ويښ پاتـه شي اته رکعته پوره کړي، بيا بېرته بيده شي نو د سهار جماعت ځيني تېرېږي، نو دغه سړي ته بايد وويل شي چې ته د اتو رکعتو پر ځای دوه رکعته کوه او بيا ژر بيده ېږه چې د سهار جماعت درڅخه تېر نه شي، که څه هم چې اته رکعته کول خو سنت عبادت دي . مګر دا چې ددې په وجه مقصود چې د سهار جماعت دی ځيني قضاء کيږي، نو ځکه يې پرېښودل په کار دي.

همدا وجه ده که چيرې د يو سړي په هکله د هغه د مجموعي حالاتو څخه ثابتيږي چې د حج په لاره کې د لمانځه پابندي نه شي کولای ، نو دغه سړي د نفلي حج څخه منع کيږي ، که چيرې يو سړي ته د يوه لمانځه لاهم د قضاء کېدو غالب ګمان وي ، نو دده لپاره نفلي حج نه دی روا.

دا چې په حج سره ديني ضرر رامنځ ته کيږي ، نفلي کار اداء کيږي او فرضي کار ته تاوان رسيږي ، نو دا ښکاره خبره ده چې داسې نفلي حج کول و لوی خدای ﷻ ته د نژدې والي سبب نه جوړيږي ، بلکې د ليرې والي سبب يې جوړيږي.

دوهم مثال: مثلاً یو سړي د وربشو ډوډۍ و خوړله او پر نس یې درد شو نو دا چې د جناب رسول الله ﷺ سره زموږ محبت ؤ، هغه محبت په دغه حالت کې له منځه ځي، او د دې خطره راځي چې ووايي چې ښه! پر سنت مې عمل کاوه چې پر نس مې درد شو (لږ فکر وکړئ) د داسې کارونو په وجه سره به د خلکو د شریعت څخه نفرت وشي.

مطلب دا دی چې سنن عادت او سنن عبادت د داسې چا په باره کې ناجائز دی چې د هغه نتیجه تر یوه دیني ضرر پورې رسیږي، یعنې د هغه په وجه یو دیني ضرر رامنځ ته کیږي. **(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۱۱۸)**

لکه مخکې چې مو ووېل: د جناب رسول الله ﷺ افعال پر دوه قسمه دي چې یو یې عبادات دي او بل یې عادات دي، په اول کې یې اتباع مطلوب ده او په دوهم کې نه ده. خو که یو څوک په دې کې هم اتباع وکړي نو دا ښه کار او د محبت یو دلیل دی.

## د "التزام مالایلزم" تعریف:

په دې هکله امداد الفتاوی لیکي: دوام منع نه دی، التزام اعتقادي یا عملي منع دی. التزام اعتقادي دا دی چې دا کار ضروري وګڼي او التزام عملي بیا دادی چې د دغه کار پر نه کوونکي ملامت و بولي فکر مو وي چې دوام جلا شی دی او التزام جلا شی دی، تاسې باید التزام او دوام سره ګډ نه کړئ. ځکه چې دوام منع نه دی التزام منع دی.

د "التزام مالایلزم" تعریف د هغه د ترجمې څخه معلومیږي. البته د دې دوه قسمونه دي که چیرې دغه اعتقاد دین وګڼي نو دا اقبح یعنې ډېر بد دی،



او که یې چیرې دین ونه بولي، مګر په داسې پابندۍ سره یې کوي لکه څوک چې د دین ضروریات کوي، نو دا هم ډېر بد دی، مګر د هغه بل په نسبت یو څه سپک دی، یا په بل عبارت د التزام مالایلزم اسانه تعریف دادی چې غیر ضروري، ضروري بلل. **(امدادالفتاوی)**

## د "التزام مالایلزم" د ممنوع والي دلیلونه:

د دې منع په قرآن شریف، حدیث او فقه ټولو کې راغلې ده:

**اما الکتاب فقوله تعالیٰ لاتحرموا طیبٰت ما احل الله لکم ولاتعتدوا. مع ضم سبب النزول الیه واما السنة فحدیث ابن مسعود ؓ یرٰی حقًا ان لا ینصرف الاعن یمینه، و اما الفقه فحیث ذکروا کراهة تعیین السورة. والله اعلم.** **(امدادالفتاوی)**

## د رسم او رواج تعریف:

رسم صرف دې ته نه ویل کیږي چې په نکاح او ښادیو کې کیږي، بلکې هر غیرلازم شی لازم بلل رسم دی، هغه که په ښادیو کې وي او که په نورو معاملاتو کې وي، امدادالفتاوی د رسم او غیر رسم معیار داسې بیان کړی دی:

**چې یو کار نه د رسم په نیت وي او نه د رسم کوونکو پر طریقه وکړل شي نو بیا دغه رسم نه دی، نه حقیقتاً رسم دی او نه صورتاً، همدغه د رسم او د غیر رسم فرق دی.**

## د سنتو څخه وروسته په اجتماعي ډول سره دعا لازمي ګرځول:

**پوښتنه**: زموږ په سيمه کې دا رواج جوړ شوی دی چې څه وخت د جماعت لمونځ وشي ټول خلک همدلته په مسجد کي سنت کوي تر هغه وروسته ټول په دې انتظار ناست وي چې امام لمونځ پای ته ورسوي او دعا وکړي، آيا دا کار روا دی او که نه؟

**جواب**: وروره! د جناب رسول الله ﷺ، صحابه کرامو ﷺ او تابعينو څخه دا نه دي رانقل شوي چې هغوی به د سنتو او نوافلو څخه وروسته په اجتماعي ډول سره دعا کوله. خو دا چې اوس په ځينو سيمو کې دا رواج جوړ شوی دی چې خلک د سنتو او نفلو څخه وروسته د امام په انتظار ناست وي. د سنتو او نوافلو څخه وروسته امام دعا کوي او خلک پر هغه امين امين وايي دا کار صحيح نه دی خو که اتفاقاً د يوه بزرګ د دعا په شريکېدلو کې دا سې وشي نو دا څه پروا نه لري. مګر د دې کار عادت جوړول بدعت دی.

**(اختلاف امت اور صراط مستقيم)**

او احسن الفتاوی بيا زياتوي چې همدا ډول تر فرضو وروسته چې کومه دعا د امام سره يو ځای وکړل شي دا هم ثابته نه ده او که چيرې اتفاقاً له امام سره يو ځای وکړل شي نو څه پروا نه لري او د لازموالي په وجه سره دغه کار بدعت جوړيږي. نوموړې فتاوی لږ وړاندې ليکي: چې دا يو فقهي قاعده ده



چې يو مباح او يا مستحب کار لازم ګرځول ناجائز ګرځي، تر دې وروسته ليکي چې په فرضو او نوافلو کې دومره فرق دی چې تر نوافلو وروسته د امام سره يو ځای اجتماعي دعا کول او دا کار لازم ګرځول په دې کې دومره قباحت شته چې هغه په هغه دعا کې نه شته چې تر فرضو وروسته کيږي. مثلاً:

۱- له فرضو وروسته سنت او نوافل په کور کې کول افضل دي، مګر د نوافلو وروسته د اجتماعي دعا لپار دغه فضيلت له منځه ځي. ځکه چې امام او مقتديان په مسجد کې د نوافلو اهتمام کوي

د صحيح مسلم حديث دی چې: **عليکم بالصلوة فی بيوتکم فان خير صلوة المرء فی بيته الا الصلوة المکتوبة. (صحيح مسلم)**

**ترجمه**: پر تاسي لازم دی چي په خپلو کورونو کي لمونځونه وکړئ. د انسان تر ټولو ښه لمونځ هغه دی چي په کور کي وکړل شي، ماسېوا د فرض لمانځه څخه چي هغه په مسجد کي کيږي

همدارنګه هدايه ليکي: **والافضل فی عامة السنن والنوافل المنزل هوالمروی عن النبی ﷺ. (هدايه باب ادراک الفريضة)**

**ترجمه**: عام سنتونه او نوافل په کور کي کول افضل دي. دا د جناب رسول الله ﷺ څخه رانقل شوي دي

۲- د نوافلو د رکعتونو په تعداد او د تلاوت په مقدار کې خلک د همت او فرصت په لحاظ سره مختلف دي. ځکه چې ځيني خلک صرف سنت کوي

او ځيني بيا نوافل هم كوي ځيني ژر فارغه كيږي او ځيني بيا وروسته فارغه كيږي، نو كوم خلك چي مخكي فارغه شي هغه بې سببه انتظار كوي، نو له دې وجې دغه طريقه لائق ترك او ددې كار لازم گرځول د احسن الفتاوى په قول په اتفاق سره بدعت دى تر دې چې اهل بدعت هم ددې قائل دي

**(احسن الفتاوى جلد اول صفحه ٣۴۴)**

## نفل او سنت لمونځونه په كورونو كي كول افضل دي:

لكه مخكي چي مو وويل چي مسجد په اصل كي د فرضو لمونځونو لپاره دى، نفل او سنت په كورونو كي كول افضل دي لكه فقهاء چي ليكي:

والافضل فى النفل غير التراويح المنزل، الالخوف شغل عنها والاصح افضلية ما كان اخشع واخلص (درمختار) قوله والافضل فى النفل الخ شمل ما بعد الفريضة وما قبلها لحديث الصحيحين عليكم بالصلوة فى بيوتكم فان خير صلاة امرء فى بيته الا المكتوبة واخرج ابوداؤد صلاة المرأة فى بيته افضل من صلاته فى مسجدى هذا الا المكتوبة وتمامه فى شرح المنية.

**(ردالمحتار باب الوتر والنوافل جلد ١ صفحه ۶٣٨)**



## د لمانځه وروسته په لوړ اواز سره اوږده دعا كول:

**پوښتنه**: زموږ په سيمه كې يو جامع مسجد دى، موږ د جمعې د لمانځه لپاره هلته ورځو، خو دا چې دا د بازار مسجد دى نو ډېر ځله خلك دومره ډېر شي، نه يوازې دا چې مسجد له خلكو ډك شي، بلكې خلك پر سړك ودرېږي سرې گرمۍ ته ولاړ وي او سړك هم د تگ راتگ څخه بند وي خو ددې مسجد امام چې كله سلام وگرځوي نو ډېره اوږده دعا كوي چې ټوله خلك له گرمۍ څخه په عذاب شي او سړك هم ټول بند وي، يوه ورځ يوه ملا وويل چې دومره اوږده دعا كول د هغه لمانځه وروسته چې سنت ولري ښه نه دى، آيا ددغه ملا خبره صحيح ده او كه نه؟

**جواب**: ورورهٔ ددغه سوال په جواب كې احسن الفتاوىٰ داسې ليكي: د كومو فرضو وروسته چې سنت لمونځ كيږي د هغو وروسته لنډه دعا ويل په كار ده، ځكه چې د سنتو ډېر ځنډول مكروه دي. او همدارنگه د كرار دعا د قبلېدلو ډېر اميد دى، په لوړ اواز سره د دعا التزام بدعت دى ځكه چې الله ﷻ ويلي دي: ادعوا ربّكم تضرّعًا وخفية انّهُ لايحبّ المعتدين.

**(سورة الاعراف آيت ۵۵)**

**ترجمه**: بولئ تاسې رب خپل (هر وخت) په زارۍ، عذر او په پټه سره

او په درالمختار کې راغلي دي چې د سنتو ډېر ځنډول مکروه دي ، مگر نه دومره اندازه چې اللهمّ انت السّلام الخ وويل شي و فی الدرالمختار ويکره تأخير السنَة الاّ بقدراللهمّ انت السّلام الخ

**(شامية جلد اول صفحه ۴۹۴)**

او همدارنگه په عالمگيري کې راغلي دي چې د ماسپښين، ماښام او ماخوستن تر لمونځونو وروسته سمدستي په سنتو شروع کول په کار دي. اوږده دعا ويل نه ده په کار : وفی الهندية عن الحجة الامام اذافرغ من الظهر والمغرب والعشاء يشرع فی السنّة ولايشتغل بادعية طويلة كذا فی التتارخانية. **(فتاوی عالمگيری کيفية صلوة جلد ۱ صفحه ۷۲)**

او همدارنگه د منية المصلّي په شروحو کې راغلي دي چې د فرضو او سنتو لمونځونو په منځ کې دې فاصله نه راولي مگر نه دومره چې:

اللهمّ انت السّلام ومنک السّلام تبارکت يا ذا الجلال والاکرام الخ پکښې وويل شي فان کان بعد ها ای بعد مکتوبة تطوع يقوم الی التطوع بلافصل الامقدار مايقول اللهمّ انت السّلام ومنک السّلام تبارکت يا ذا الجلال والاکرام الخ

**(فتاوی عالمگيري جلد ۱ صفحه ۷۷)**



## تر فرائضو وروسته او ترسنتونو مخکې د دعاء کولو مقدار:

**پوښتنه**: آيا تر فرائضو وروسته او تر سنتو او نوافلو مخکې تر اللهم انت السلام الخ څخه زياته دعاء ويل روا دي که نه؟ حضرت شاولی الله رحمه الله په حجة الله البالغة کې نورې دعاءگانې رانقل کړې دي او د هغوی ويل يې ښه بللي دي، په دې هکله څه حکم دی؟

**جواب**: ستاسې د پوښتنې په هکله فتاوی دارالعلوم ديوبند ليکي هو،د دعاگانو او اذکارو ويل تر فرائضو وروسته او تر نوافلو او سنتو مخکې ويل روا او مستحب دي، ځينې فقهاوو چې تر اللهمّ انت السلام الخ د زيات نه ويلو خبره کړې ده، ددې مطلب دا نه دی چې بېنخي منع او مکروه دي، په ظاهره که د ځينو رواياتو څخه ددې ثبوت نه معلومېږي. د نورو ډېرو احاديثو څخه د نورو اذکارو او ماثوره دعاءگانو جائز او مستحب والی معلومېږي. لکه حضرت شاه ولی الله رحمه الله چې ليکلي دي اوهمدارنگه لکه درمختار چې ليکي:

ويکره تاخير السنة الابقدر اللهم انت السلام الخ قال الحلو انی لاباس بالفصل بالاورادو اختاره الکمال الخ ويستحب ان يستغفر ثلاثا ويقرأ اية الکرسی والمعوذات الخ ويدعو ويختم بسبحان ربک الخ

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار الصلوة جلدا صفحه ۴۹۴)**

## بې له څه شکه چي تر فرض لمانځه وروسته دعاء کول د قبلېدلو د هغو ښو مواقعو څخه يو دی:

**پوښتنه**: آيا تر فرض لمانځه وروسته د دعاء ثبوت شته او که نه. دلته زموږ په سيمه کي يو سړی دی هغه وايي چي تر فرضو وروسته دعاء کول بدعت دی. آيا د دغه سړي دغه خبره صحيح ده او که نه؟

**جواب**: دغه سړي چي کومه خبره تاسي ته کړې ده ډېره غلطه خبره ده. دعاء يوه ډېر غټ عبادت دی، دغه سړي ته دي خدای ﷻ هدايت وکړي، چي خلک د دومره ستر عبادت څخه راګرځوي، يو څوک چي د لوی خدای ﷻ په دربار کي لاس پورته کوي او د خپل خدای څخه يو څه غواړي، تر دي بله ښه خبره نشته. او بيا د فرض لمانځه وروسته وخت خو د دعاء کولو لپاره ډېر مناسب هم دی چي په احاديثو کي راغلی دی

وروره! دا داسي مسئله ده چي د دلائلو و وړاندي کولو ته هيڅ حاجت نه لري، مګر د نمونې لپاره زه صرف څو حديثونه رانقلوم:

عن ابی امامة ﷺ قال: قيل يا رسول الله: ایّ الدعاء اسمع؟ قال جوف الليل الاخر ودبر الصلوت المکتوبات.

(مشکوة شريف، جامع ترمذي)



**ترجمه**: د حضرت ابوامامة ﷺ څخه روايت دی، دی مبارک فرمايي چي د جناب رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړل شول چي يا رسول الله! تر ټولو مقبوله او مستجابه دعاء کومه يوه ده؟ جناب رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چي د شپې په آخيري برخه کي او تر فرضو لمونځونو وروسته دعاء.

عن ثوبان ﷺ قال: کان النبی ﷺ اذا سلّم يستغفر الله ثلاثا ويقول: اللهم انت السلام ومنک السلام تبارکت يا ذالجلال والاکرام.

(مسلم، ابوداؤد، ترمذي، نسائی)

**ترجمه**: د حضرت ثوبان ﷺ څخه روايت دی، دی مبارک فرمايي چي جناب رسول الله ﷺ به تر سلام ګرځولو وروسته درې واره استغفار وايه او دغه کلمات به يې ويل: اللهم انت السلام ومنک السلام تبارکت يا ذالجلال والاکرام.

عن مسلم بن ابی بکرة ﷺ عنه قال: کان ابی يقول فی دبر کل الصلاة: اللهم انی اعوذبک من الکفر والفقر وعذاب القبر، وکنت اقولهن فقال لی ابی: ای بنی عمن اخذت هذا؟ قلت: عنک قال: ان رسول الله ﷺ کان يقولهن فی دبر کل صلاة.

(احمد، نسائی، ابن ابی شيبة)

**ترجمه**: حضرت مسلم بن ابی بکرة ﷺ فرمايلي دي چي زما پلار به تر هر

لمانځه وروسته دغه الفاظ ویل: اللهم انی اعوذبک من الکفر والفقر وعذاب القبر. نو ما هم دغه الفاظ ویل شروع کړل، یوه ورځ مي پلار راڅخه وپوښتل چي زویه! تا دغه کلمات د چا څخه زده کړي دي؟ ما ورته وویل چي ستا څخه. وروسته مي پلار راته وویل چي جناب رسول الله ﷺ به فرمایل چي د هر لمانځه وروسته دغه کلمات وایاست

مطلب دادی چي د تسبیح، تحمید او تکبیر د کلماتو ویل په صحیح بخاري، صحیح مسلم او داسي نورو د حدیثو په معتبرو کتابونو کي ښه په تفصیل سره ذکر شوي دي، د هغوی په هکله داسي فرمایل شوي دي لایخیب قائلهن یعني د دغو الفاظو ویونکي نه ناکامه کیږي

## تر فرضو وروسته د اذکارو او دعاګانو ویل یوه بدیهي او اجماعي مسئله ده:

مطلب دادی چي تر فرضو وروسته د اذکارو او دعاګانو ویل یوه بدیهي او اجماعي مسئله ده، هیڅ اهل علم په دې کي اختلاف نه لري، لکه امام نووی رحمه الله چي فرمایي: اجمع العلمآء علی استحباب الذکر بعد الصلاة وجآءت فیه احادیث کثیرة صحیحة فی انواع متعددة.

**(الاذکار صفحه ۶۶)**

**ترجمه**: تر لمانځه وروسته د ذکر پر استحباب باندي د ټولو علماوو



اجماع راغلي ده او په دې باب کي د مختلفو قسمو اذکارو په هکله ډېر صحیح حدیثونه رانقل شوي دي

همدارنګه علامه عبدالحی لکهنوی رحمه الله لیکلي دي:

وقد ورد سوی ما ذکرنا اذکار کثیرة وادعیة اورد نبذا منها النووی فی کتاب الاذکار وبهذه الاخبار اجمع العلمآء علی استحباب الذکر بعد الصلوة. **(السعایه جلد۲ صفحه ۲۶)**

## تر فرضو وروسته سنت عمل:

د احادیثو، اثارو او فقهي کتابونو څخه دا خبره په ښه توګه ثابتیږي، چي د جماعت د لمانځه تر سلام ګرځولو وروسته د امام او مقتدیانو تر منځ رابطه شکیږي، د سهار او ماخیګر تر لمانځه وروسته د هر سړي خپله خوښه ده که کښیني په ذکر او دعاء مشغوله کیږي او که ولاړیږي او ځي خپل اختیار لري

همدارنګه دده خوښه ده که اوږده دعاء کوي او که لنډه. همدارنګه دی اختیار لري که لاسونه پورته کوي دعاء کوي او که د لاسونو د پورته کولو څخه ماسېوا دعائیه الفاظ وایي، مګر د مطلق دعاء لپاره د لاسونو پورته کول د دعاء د ادبونو څخه دي، او یو مستحب کار دی.

همدارنګه دده خوښه ده که تر سلام ګرځولو وروسته سمدستي بې له څه ویلو ولاړیږي او ځي هم خپل اختیار لري، مګر ښه کار دادی چي په پټه او خفیه ډول اذکار ووایي یا دعاګاني وکړي او سمدستي ولاړ نه شي. البته امام که چیري پر خپل ځای کښېنستل غوښتل. نو د قبلې وخوا ته د مخ کولو پر ځای

به و مقتديانو ته مخ راګرځوي ، په دې شرط سره چې د امام پر برابر يې مسبوق نه وي.

په پاته نورو درو لمونځونو کې هم همدا تفصيل دی چې لمونځ کوونکي سلام وګرځوي که په سنتو شروع کوي او که ذکر او دعاء کوي ، مګر په مختصر مقدار کې ، بيا دې په سنتو مشغول شي ، په دغو ټولو صورتونو کې امام لره کوم امتيازي حکم نشته ، بلکې د ټولو لمونځ کوونکو لپاره يو حکم دی علامه طحطاوی ليکلي دي:

صنيعه کغيره يفيد انّ الامام مخيّر بعد الفراغ.

(طحطاوی على مراقی الفلاح صفحه ۱۷۱)

**ترجمه**: د امام کار هغه دی لکه نور مقتديان چې يې کوي يعني د لمانځه تر فارغه کېدو وروسته دده خپل اختيار دی.

## دعاء کول يو ډېر غټ عبادت دی همدارنګه تر فرضو لمونځونو وروسته اذکار او دعاګانې ويل د جناب رسول الله ﷺ د قول او فعل څخه ثابت دي:

تر فرضو لمونځونو وروسته اذکار او دعاګانې د جناب رسول الله ﷺ د قول او فعل څخه ثابت دي او دعاء کول ډېر غټ عبادت دی، په دې سلسله کې د نمونې لپاره موږ مخکې څېنې روايتونه ذکر کړل، مګر دغه ثبوت صرف د استحباب په درجه کې دی يعني لکه د کومو شيانو ويل چې د جناب رسول الله



څخه ثابت دي، همدا ډول يې ناغه هم ثابته ده. دلته د نمونې لپاره څو حديثونه رانقلوو:

د صحيح بخاري شريف په يو اوږد روايت کې د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه دغه الفاظ رانقل شوي دي:

فصلى بنا رکعتين ثم سلّم فقام الى خشبة معروضة فی المسجد فاتکأ عليها کانه غضبان الحديث. (صحيح البخاري جلدا صفحه ۶۹)

**ترجمه**: جناب رسول الله ﷺ پر دوو رکعتونو سلام وګرځاوه ، ولاړ شو او په مسجد کې يې پر يوه لرګي تکيه ولګول، دی مبارک ﷺ داسې معلومېدی لکه درد چې ورغلی ؤ يعنې لکه په قهر او غصه کې چې وي

همدارنګه د صحيح بخاري په بل روايت کې راغلي دي چې ددې حديث راوي حضرت عقبة ﷺ دی ، د حديث الفاظ دادي

صليت ورآء النبی ﷺ بالمدينة العصر فسلّم فقام مسر عافتخطی رقاب الناس الى بعض حجر نسآئه. (صحيح بخاري جلدا صفحه ۱۱۷)

**ترجمه**: ما په مدينه منوره کې د جناب رسول الله ﷺ په اقتداء کې د ماځيګر لمونځ ادا کړ، جناب رسول الله ﷺ سلام وګرځاوه، ډېر ژر ولاړ شو، د خلکو تر صفونو واوښتی او د ازواج مطهراتو د يوې حجرې وطرف ته يې تشريف يووړ

په دغو دواړو حديثونو کې فسلّم فقام الفاظ راغلي دي. اهل علم په دې

پوهيږي چي فاء د تعقيب مع الوصل لپاره ده، ددې څخه دا معلوميږي چي جناب رسول الله ﷺ چي سلام وګرځاوه سمدستي ولاړ شو.

شارح بخاري علامه بدر الدين عينى ؒ ليکلي دي:

قال قتادة كان الصديق ؓ عنه اذا سلّم كان على الرضفة حتى ينهض. (**عمدة القاري جلد۶ صفحه ۱۳۹**)

**ترجمه**: حضرت قتادة ؓ فرمايلي دي چي حضرت ابوبکر صديق ؓ چي به سلام وګرځاوه نو داسي ژر به ولاړيدی لکه پر ګرمه ډبره چي سړی ناست وي

همدارنګه بل مبارک حديث دی

عن ابن عباس رضى الله تعالى عنهما صليت مع النبى ﷺ فكان ساعة يسلّم يقوم ثم صليت مع ابى بكر ؓ كان اذا سلم وثب من مكانه وكانه يقوم عن رضفة. (**عمدة القاري جلد۶ صفحه ۱۳۹**)

**ترجمه**: حضرت ابن عباس فرمايي چي ما د جناب رسول الله ﷺ په اقتداء کي لمونځ وکړ (او ومي ليدل چي) جناب رسول الله ﷺ د سلام ګرځولو څخه وروسته ولاړ شو. بيا مي د حضرت ابوبکر صديق ؓ په اقتداء کي لمونځ وکړ (او ومي ليدل چي) هغه هم د سلام ګرځولو وروسته له خپله ځايه څخه (داسي ژر) پورته شو لکه پر ګرمه ډبره چي (سړی) ناست وي

همدارنګه د صحيح مسلم او نورو ډېرو کتابونو کي دا ډول واقعات ذکر



دي چي دلته رانقلول يې زما لپاره مشکل دي.

علامه ابوبکر الکاساني ؒ په خپل کتاب البدائع والصنائع کي ليکي:

واما بيان مايستحب للامام ان يفعله عقيب الفراغ من الصلاة فنقول اذا فرغ الامام من الصلاة فلا يخلو اما ان كانت صلاة لا تصلى بعدها سنة او كانت صلاة بعدها سنة فان كانت صلاة لاتصلى بعدها سنة كالفجر والعصر فان شآء الامام قام وان شآء قعد فى مكانه يشتغل بالدعاء... الا انه يكره المكث على هيئته مستقبل القبلة...

و ان كانت صلاة بعدها سنة يكره له المكث قاعداً وكراهية القعود مروية عن الصحابة ؓ روى عن ابى بكر وعمر رضى الله تعالى عنهما انهما كانا اذا فرغا من الصلاة قاما كانهما على الرَّضف ولانَّ المكث يوجب اشتباه الامر على الداخل فلا يمكث ولكن يقوم ويتنحى عن ذلك المكان ثم يتنفل. (**بدائع الصنائع جلد۱ صفحه ۱۵۹**)

## آيا دعاء په اجتماعي توګه ضروري ده:

**پوښتنه**: زموږ په سيمه کي يو سړی دی. هغه وايي چي خامخا اجتماعي دعاء کول په کار ده، دی وايي چي انفرادي دعاء نه قبليږي. آيا ددغه سړي خبره صحيح ده که نه؟

**جواب**: نه، وروره! ددغه سړي خبره بيخي غلطه ده. په دې هکله علامه

عبدالحی لکهنوي رحمه الله داسي ليکي:

این طریقه که فی زماننا مروج است که امام بعد از سلام رفع یدین کرده دعاء میکند ومقتدی آمین می گویند در زمانه آن حضرت ﷺ نه بود، چنانچه ابن القیم در زاد المعاد تصریح کرده. (مجموعة الفتاوی علی هامش خلاصة الفتاوی جلد۱ صفحه ۱۰۰)

همدارنګه حضرت مولانا محمدانور شاه کشمیري فرمايلي دي:

وليعلم انّ الهيئة الاجتماعية برفع الايدى المتعارفة فى العصر بعد المكتوبة نادرة فى زمانه عليه السلام وثبت بعد النافلة من الاستسقاء وواقعة فى بيت امّ سليم. (العرف الشذى صفحه ۹۵)

**ترجمه**: دا خبره دي تاسي ته معلومه وي چي تر فرضو لمونځونو وروسته لاسونه پورته کول او په اجتماعي صورت دعاء کول لکه نن سبا چي رواج لري د جناب رسول الله ﷺ په زمانه کي شاذ ؤ نادر پيدا کيږي مګر د استسقاء تر نفلو وروسته د ام سليم رضى الله عنها په کور کي لاس پورته کول او (اجتماعي) دعاء کول ثابت دي

همدارنګه په العرف الشذي کي ليکي

نعم الادعية بعد الفريضة ثابتة كثيراً بلارفع اليدين وبدون الاجتماع. (العرف الشذى صفحه ۸۶)

همدارنګه حضرت مولانا اعزاز على رحمه الله ليکلي دي قال الطحطاوى



صنيعه كغيره يفيد ان الامام مخير بعد الفراغ من التطوع او المكتوبة اذا لم يكن بعدها تطوع ان شآء انحرف عن يمينه وان شآء عن يساره وان شآء ذهب الى حوائجه، وان شآء استقبل الناس بوجهه.

فعلم ان المحققين من علمآء زماننا ما انكروا انكاراً شديداً على هذا الاستقبال والدعآء الا لكونه من قبيل التزام ما لا يلزم ولكونه على سبيل التداعى وهذا من مجاوزة حدود الله تعالى. (احكام الدعوات المروجه صفحه ۵۹ بحواله حاشيه نور الايضاح)

همدارنګه مولانا محمد یوسف بنوري رحمه الله فرمايلي دي:

غير انه يظهر بعد البحث والتحقيق انه وان وقع ذلك احيانًا عند حاجات خاصة لم تكن سنة مستمرة له ﷺ ولا للصحابة رضي الله عنهم والا لكان ان ينقل متواتراً البتة فان ما يعمل به على رؤس الاشهاد كل يوم خمس مرّات كيف يخمل ذكره فلا يكفى العموم فى مثل هذه المواقع الخاصة. (معارف السنن جلد۳ صفحه ۱۲۴)

يعني تر بحث او تحقيق وروسته دا خبره مخي ته راځي چي دغه واقعات که څه هم چي کله کله د خاص ضرورت په وخت کي پېښ شوي وي، مګر دا ډول دعاء کول د جناب رسول الله ﷺ مستقل عادت شريفه نه ؤ او نه د صحابه کرامو رضي الله عنهم معمول ؤ او نه په دي هکله متواتر روايات رانقل شوي دي. نو ددي

وجي كوم عمل چي سرعام روزانه پنځه واره كيږي ، ددې ذكر كله پټ پاته كېداى شي؟ نو عام دلائل د داسي مخصوصو واقعاتو د ثبوت لپاره نه شي كافي كېداى.

په معارف السنن كي په صافو ټكو سره راغلي دي:

قد راج فى كثير من البلاد الدعآء بهيئة اجتماعية رافعين ايديهم بعد الصلوت المكتوبة ولم يثبت ذلك فى عهده ﷺ وبالاخص بالمواظبة، نعم! ثبتت ادعية كثيرة بالتواتر بعد المكتوبة ولكنها من غير رفع الايدى ومن غير هيئة اجتماعية. (معارف السنن جلد۳ صفحه ۴۰۹)

## د عقل سليم له رويه د اجتماعي دعاء حيثيت:

وروره! ته فكر وكړه د هر سړي حاجات د كومو لپاره چي دى دعاء كوي سره مختلف وي، مثلاً يو سړى د صحت د پيدا كولو لپاره دعاء كوي، بل سړى د واده لپاره د لوى خداى ﷻ په دربار كي لاس پورته كوي، بل بيا د اولاد لپاره لاسونه پورته كوي، همدارنگه د فرصت او فراغت له لحاظه يو سړى د بله سره فرق لري همدارنگه د هر سړي طبعي كيفيت د بل سره مختلف وي نو دا ډول مختلف الانواع خلك يو ډول پابند كول چي د ټولو دعاء به يوه وي، پر يوه وخت به شروع كيږي او په يوه وخت به ختميږي، همدارنگه په ځينو سيمو كي رواج دى چي لمونځ وشي نو د لاوډ سپيكر مخ امام وخپل خوا ته كړي او په زوره په لاوډ سپيكر كي دعاء كوي چي په دې وخت كي اكثره مسبوق خلك په خپلو لمونځو كي خطاوزي



كه چيري په دې كي نوره هيڅ بدي نه وي خو صرف ددې رسم د ممانعت بدي هم ورلره كافي ده، ځكه چي په دې سره هغه مسنون طريقه بيخي له منځه ځي، د سلام گرځولو وروسته ډېر مجبوره قسم خلك تلل غواړي، ځيني بيا په اذكارو مشغولېدل غواړي او ځيني بيا په خپله ژبه دعاء كول غواړي ځكه چي د دعاء څخه مطلب د لوى خداى ﷻ څخه د يو شي غوښتل دي چي دا پخپله ډېر غټ عبادت دى، نن سبا دا څنگه رواج جوړ شوى دى چي امام كه هر څومره غټه دعاء كوي او هر څه چي پكښي وايي هغه كه د مقتدي خوښ وي او كه نه، گرمي وي او كه نه ، پر سرك ولاړ وي او كه يې بازارونه بند كړي وي او كه نور هر څه وي خو هيڅ سړى دا حق نه لري چي ددې رواج مخالفت وكړي او په دا ډول غير ضروري كار سره دوى نه پوهيږي چي د خلكو نفرت زياتيږي او بيا به يې د جماعت لپاره مسجد ته چنداني زړه نه كيږي چي ډېر غټ نقصان دى.

## آيا د ډوډۍ خوړلو او اذان كولو وروسته لاسونه پورته كول او اجتماعي دعا كول لازمي دي؟

**پوښتنه**: زموږ په علاقه كې دا رواج گرځېدلى دى چې د ډوډۍ خوړلو وروسته لاسونه پورته كړي ټوله مجلس دعا كوي او هغه څوك چې دعا نه كوي بد يې گڼي، نو آيا په شرعي رو سره دا صحيح دي او كه نه؟ او همدارنگه ډېر خلك د اذان وروسته لاسونه پورته كوي او دعا كوي آيا په دغو ځايونو كي لاس پورته كول د قرآن شريف او فقهاوو څخه ثابت دي؟

**جواب**: احسن الفتاویٰ په دې هکله داسي ليکي: په دې باره کې يوه قاعده کليه داده چې د مطلق دعا کولو لپاره رفع اليدين يعني د لاسونو پورته کول مستحب دي، مګر په خاصو ځايونو کې چې شريعت د کومو خاصو الفاظو سره د دعا تعليم ورکړی دی مثلاً: مسجد ته د داخلېدلو او وتلو پر وخت دعا، د بيدېدلو او را پورته کېدلو پر وخت دعا، و بيت الخلاء ته د ننوتلو او راوتلو پر وخت دعا ، د سپرېدلو پر وخت دعا، د جماع کولو پر وخت دعا او همداسي نور، په دغو ځايونو کې لاسونه پورته کول د شريعت له رويه نه دي ثابت، تر خوراک کولو وروسته او همدارنګه تر اذان کولو وروسته دعا هم په همدغه قسم کې داخله ده، په ذکر شويو ځايونو کې د لاسونو پورته کول بدعت دی، او بيا پر نه کوونکو باندې بد ويل تر دې هم بد او زيات قبيح دي، په التزام سره خو يو مستحب کار هم پرېښودل لازم دي:

کما فی صحيح البخاری و مسلم و سنن ابی داؤد و النسائی و ابن ماجه عن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه لايجعل احدکم للشيطان شيئًا من صلاته يری ان حقًا عليه ان لاينصرف الاعن يمينه لقد رأيت رسول ﷺ کثيرا ينصرف عن يساره. فقط و الله تعالی اعلم.

**(احسن الفتاوی جلد اول صفحه ٣٦٥)**

علامه طيبي رحمه الله فرمايلي دي: انه ﷺ کان يدعو کثيرا کما فی الصلوة والطواف وغيرهما من الدعوات الماثورة دبر الصلوة وعند النوم وبعد



الاکل وامثال ذلک ولم يرفع يديه. **(السعايه جلد٢ صفحه ٢٥٨)**

يعني جناب رسول الله ﷺ به په کثرت سره دعاوي ويلې لکه د لمانځه په دننه کې، د طواف په دوران کې د فرضو لمونځونو وروسته ماثورة دعاګانې ، د بيدېدلو په وخت کې ،د خوراک څخه وروسته او ددې په شان داسي نورو ځايو کې مګر په دغو ځايونو کې به يې لاسونه نه پورته کول

## په دعاء کي د لاس پورته کول او بيا پر مخ راتېرول په صحيح احاديثو ثابت دي:

**پوښتنه**: زموږ په علاقه کې يو سړی دی، دی وايي چې په هيڅ دعاء کي د لاس پورته کول په احاديثو ثابت نه دي ، نو دا کار کول بدعت دی، آيا ددغه سړي خبره صحيح ده او که نه؟

**جواب**: وروره! ددغه سړي خبره بيخي غلطه ده، ده ته دي خدای ﷻ هدايت وکړي، چې د آينده لپاره دغسي غلطي خبري ونه کړي.

د دعاء په شروع کي د لاس پورته کول او په پای کي پر مخ راتېرول په صحيح احاديثو ثابت دي، امام بخاري رحمه الله او نور د احاديثو ډېرو غټو امامانو رحمهم الله تعالی په خپلو کتابونو کي د باب رفع الايدی فی الدعاء عنوان قائم کړی دی، شارح بخاري حافظ ابن حجر عسقلانی رحمه الله د فتح الباري د ١١ جلد په ١٢٠ صفحه کي داسي ډېر روايتونه ذکر کړي دي چې په هغه کي جناب رسول الله ﷺ د لاس د پورته کولو او دعاء کولو ذکر راغلی دی

همدارنګه علامه هیثمی رحمه الله د مجمع الزوائد د لومړي جلد په ۱۶۸ صفحه کې د حضرت عائشه رضی الله عنها یو روایت رانقل کړی دی چې په هغه کې د جناب رسول الله ﷺ د لاس د پورته کولو او دعاء کولو ذکر راغلی دی.

کان رسول الله یرفع یدیه یدعو حتی انی لاسام له مما یرفعهما.

ددې په اړه علامه هیثمی رحمه الله فرمایلي دي چې: **رواه احمد بثلاثة اسانید ورجال کلها رجال الصحیح.** مطلب دادی چې د مطلق دعاء لپاره د لاس پورته کېدل د دعاء یو ادب دی.

## آیا تر فرائضو وروسته پر سر لاس اېښوول او دعاء کول ثابت دي که نه:

**پوښتنه**: آیا تر فرائضو وروسته پر سرلاس اېښوول او دعاء کول ثابت دي که نه؟

**جواب**: ستاسي د پوښتني په جواب کي فتاوی دارالعلوم دیوبند لیکي: هو، تر فرائضو وروسته پر سر لاس اېښوول او دغه دعاء ویل په حدیث شریف کي راغلي دي: بسم الله لا اله الا هو الرحمن الرحیم اذهب عنی الهم والحزن. (**الحصن الحصین**)

وکان ﷺ اذا صلی وفرغ من صلوته مسح یمینه علی راسه وقال بسم الله لا اله الا هو الرحمن الرحیم اذهب عنی الهم والحزن.



## د دین په کارونو کې تر خپلې اندازې د تجاوز کولو ممانعت:

د شریعت په پاک دین کي تر خپلي اندازې و تجاوز کولو ته اجازه نه شته لکه الله ﷻ چې فرمایي: قُلْ يَـٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَـٰبِ لَا تَغْلُوا۟ فِى دِينِكُمْ.

(**سورة المائدة آیت ۷۷**)

**ترجمه**: ووایه (اې محمده!) چې اې اهل کتابو مه کوئ تجاوز (له حده او مه کوئ مبالغه) په دین خپل کې.

او په سورت المائدة کې بیا فرمایي:

يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تُحَرِّمُوا۟ طَيِّبَـٰتِ مَآ أَحَلَّ ٱللَّهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوٓا۟ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلْمُعْتَدِينَ. (**سورة المائدة آیت ۸۷**)

**ترجمه**: اې هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی یعني اې مؤمنانو مه حراموئ تاسې پاک لذیذ له هغو شیانو څخه چې حلال کړي دي الله ﷻ لپاره ستاسې او مه کوئ تېری تاسې (له حدودو د الله) بې شکه چې الله نه خوښوي تېرېدونکي له حدودو څخه.

او همدارنګه په حدیث کې راغلي دي چې دري نفره د جناب رسول الله ﷺ و
کور ته راغلل او د جناب رسول الله ﷺ د مبارکو بیبیانو څخه یې د جناب رسول الله ﷺ
د معمولاتو او عباداتو په هکله پوښتنه وکړل، نو څه وخت چې بیبیانو مبارکانو
جناب رسول الله ﷺ حالات ورته بیان کړل، نو دغو درو کسانو دا لږ وبلل
ویې ویل چې موږ خپل ځانونه پر جناب رسول الله ﷺ څنګه قیاسولای شو؟ ځکه چې

جناب رسول الله ﷺ خو يو بخښل شوی بنده دی، موږ ته په کار دي چې تر هغه زياته مجاهده وکړو ، نو په دوی کې يوه وويل چې زه به د شپې له خوا لا دومره عبادت کوم چې بيد بېړم به نه، بل بياوويل چې زه به ټوله عمر روژه نيسم او دريم نفر بيا وويل چې زه به هيڅکله واده ونه کړم.

څه وخت چې جناب رسول الله ﷺ وکور ته تشريف راوړی، نو جناب رسول الله ﷺ ته د دوی درو سرو خبرې معلومې شوې، نو ده مبارک ددغو درو خلکو دا راز خبرې نه کړې خوښې او ورته ويې فرمايل: په ياد ولرئ، زه خوب هم کوم او نکاح هم کوم، روژه هم نيسم او خورم يې هم، ښه سر خلاص کړئ! دا زما طريقه ده، او کوم څوک چې زما طريقه پرېږدي، نو د هغه سره زما هيڅ تعلق نه شته، دا ډول سړی زموږ د ډلي څخه نه دی، دا حديث د صحيح بخاري په باب الترغيب في النكاح او د صحيح مسلم په باب استحباب النكاح لمن تاقت نفسه اليه، او د سنن نسائی په باب النهی عن التبتل کي راغلی دی عربی الفاظ يې په دې ډول دي:

عن أنس رضي الله عنه أنه قال: جاء رهط إلى بيوت أزواج النبيّ ﷺ يسألون عن عبادة النبيّ ﷺ فلمّا أُخبروا كأنّهم تقا لّوها، قالوا: فأين نحن من رسول الله ﷺ وقد غُفِرَ له ماتقدَّم من ذنبه وماتأخَّر؟ قال أحدهم: أمّا أنا فأصلّي الليل أبداً. وقال الاخر: وأنا أصوم الدهر ولا أُفطر. وقال الاخر: وأنا أعتزل النساء ولا أتزوّج أبداً. فجاء رسول الله ﷺ فقال: "أنتم الذين قلتم كذا وكذا؟ أما والله إنّي لاخشاكم لله تعالى وأتقاكم له، ولكنّي أصومُ وأُفطِرُ، وأصلّي وأرقد، وأتزوّج النساء، فمن رغب عن سنّتي فليس منّي"



وزاد في رواية النَّسائي: "وقال بعضهم: لا آكل اللَّحْم".

وګورئ جناب رسول الله ﷺ پر دغو خلکو باندې د غلوفی الدين په وجه سره څومره غټ تشدد وفرمايه او ورته ويې ويل چې ددغه ډول سړي زما سره هيڅ تعلق نه شته او دا ډول سړی زموږ د ډلي څخه نه دی.

يوه بله واقعه په دې ډول راغلې ده چې يو وخت جناب رسول الله ﷺ و مسجد ته تشريف راوړی که ګوري چې د دووستونو په منځ کې يوه رسی ترلې ده، جناب رسول الله ﷺ چې دا رسی وليده نو يې پوښتنه وکړه چې دا رسی ولې ترلې ده؟

صحابه وو ورته وويل: چې دغه رسی بي بي زينبې ترلې ده ، څه وخت چې دا نوافل مسلسل کوي نو چې خوب يې په عذابوي د سوستی د ختمولو لپاره پر دغه رسی تکيه کوي، ده مبارک چې دا خبره واورېدله نو سمدلاسه ورغی او هغه رسی يې پرې کړه او ويې فرمايل : چې پر نفس باندې دومره تشدد نه دی په کار، اوددې تر څنګ يې دا هم وفرمايل چې کله خوب درشي نو بايد بيده شئ ، چې بيا کله سستي له منځه ولاړه شي ، بېرته مشغول شئ.

**(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۱۲۲)**

پورتنی مبارک حديث د حديثو په مختلفو کتابونو کي راغلی دی د مثال په توګه د صحيح بخاري د في التهجد باب مايكره من التشديد في العبادة او د صحيح مسلم په في صلوة المسافرين باب من نعس في صلاته او د نسائی په قيام الليل باب الاختلاف على عائشه رضي الله عنها في احياء الليل کي راغلی دی عربی الفاظ يې څه په دا ډول دي: عن أنس رضي الله عنه: دخل رسول الله ﷺ المسجد، فإذا حبلٌ ممدود بين الساريتين، فقال: "ما هذا الحبل؟". فقالوا: حبل لزينب، فإذا

فترتْ تعلقت به. فقال: "لا، حلُّوه، لِيُصل أحدكم نشاطه، فإذا فَتَرَ فليقعدْ".

همدارنګه جناب رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي پر ځانونو باندي تکليف مه راولئ که نه نو خداى ﷻ به پر تاسي تکليف راولي، کوم قوم چي پر خپلو ځانونو تکليف راوستلى دى او خپل ځانونو يې په مشقت او تکليف کي اچولي دي، خداى ﷻ دوى نور هم په تکليف کړي او سختي يې پر جوړه کړې ده. دغه مبارک حديث د ابوداؤد په کتاب الادب باب فى الجسد او د حديثو په نورو معتبرو کتابونو کي راغلىٰ دى، د حديث عربي الفاظ په دې ډول دي:

عن أنس رضي الله عنه أنّ رسول الله ﷺ قال: "لا تُشدّدوا على أنفسكم، فيشدد الله عليكم، فإنّ قوماً شدّدوا على أنفسهم، فشُدّد عليهم، فتلك بقاياهم في الصّوامع والدّيار، (وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ).

(سورة الحديد الاية ۲۷)

## سختي نه ده په کار:

الله ﷻ په خپل لوى کتاب قرآن کي فرمايي:

يُرِيدُ اللّٰهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَايُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ. (سورة البقرة الاية ۱۸۵)

**ترجمه**: ستاسي لپاره الله ﷻ د اسانتيا اراده لري او ستاسي لپاره د سختى اراده نه لري.

همدارنګه الله ﷻ په سورة النساء کي فرمايي:

يُرِيدُ اللّٰهُ أَن يُخَفِّفَ عَنكُمْ وَخُلِقَ الاِنسَانُ ضَعِيفًا. (سورة النساء الاية ۲۸)



**ترجمه**: الله ﷻ ددې اراده لري چي سپک کړي (بار) له تاسي څخه او (ځکه چي) انسان ضعيف پيدا کړل شوى دى.

همدارنګه الله ﷻ په سورة المائده کي فرمايي:

مَايُرِيدُ اللّٰهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُم مِّنْ حَرَجٍ. (سورة المائدة الاية ۶)

**ترجمه**: الله ﷻ پر تاسي باندي د تکليف (تنګوالي او سختى) د مقررولو اراده نه لري.

همدارنګه الله ﷻ په سورة الاعراف کي فرمايي:

قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ اللّٰهِ الَّتِى أَخْرَجَ لِعِبَادِهِ، وَالطَّيِّبَاتِ مِنَ الرِّزْقِ قُلْ هِىَ لِلَّذِينَ اٰمَنُوا فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا خَالِصَةً يَّوْمَ الْقِيَامَةِ. (سورة الاعراف الاية ۳۲)

**ترجمه**: ووايه (اى محمده! دوى ته) چي چا حرام کړى دى زينت د الله هغه چه ايستلى يې دى لپاره د بندګانو خپلو؟ او (چا حرام کړي دي) پاک خوندور شيان له رزقه څخه (چه د خوړلو او څښلو دي؟ يعنى دا يو هم نه دى حرام) ووايه (اى محمده! دوى ته) چه دغه (زينت او طيبات او نور نعمتونه اصلاً) په دې دنيا کي لپاره د مؤمنانو پيدا کړل شوي دي (مګر د دوى په وجه کفارو ته هم رسيږي) خو په اخرت کي يوازي د مؤمنانو لپاره دي.

همدارنګه الله ﷻ په سورة طه کي فرمايي:

مَآ أَنزَلْنَا عَلَيْكَ الْقُرآنَ لِتَشْقَىٰ اِلاَّ تَذْكِرَةً لِّمَن يَّخْشَىٰ. (سورة طه الاية ۱)

**ترجمه**: موږ قرآن ددې لپاره پر تا نه دى نازل کړى چي تاسي په مشقت (او تکليف) کي ولوېږئ مګر (نازل کړى مو دى موږ دغه قرآن) تذکره او پند لپاره د هغه

همدارنګه الله ﷻ په سورة المائده کي فرمايي:

وَمَاجَعَلَ عَلَيْكُمْ فِى الدِّيْنِ مِنْ حَرَجٍ. **(سورة الحج آيت ۷۸)**

**ترجمه**: او نه يې دی ګرځولی پرتاسي باندي په دين کي هيڅ حرج (مشقت او تکليف).

همدارنګه الاشباه والنظائر ليکي: **وفى الحديث احب الدين الى الله تعالى الحنفية السمحه، قال العلماء يتخرج على هذه القاعدة جميع رخص الشرع وتخفيفاته. (الاشباه والنظائر صفحه ۹۵-۹۶)**

همدارنګه جناب رسول الله ﷺ فرمايلي دي: چي الله ﷻ که له يوې خوا دا نه خوښوي چي تاسي دي ګناه وکړئ له بله اړخه بيا ذا خبره خوښه لري چي تاسي په رخصتونو عمل وکړئ او تنګي جوړه نه کړئ لکه چي فرمايي:

**عن ابن عمر رضي الله عنهما أنّ النبيّ ﷺ قال: "إنّ الله تبارک وتعالى يحبّ أنْ تؤتى رُخصه كما يكره أنْ تُؤتى معصيته" وفي رواية (ابن خزيمة): "كما يحبّ أن تترک معصيته". (اسناده صحيح. رواه احمد ۵۸۶۶، والبزار ۹۸۸، والطبراني في الاوسط ۵۳۰۲، وابن خزيمه ۹۵۰)**

همدارنګه طريقه محمديه والاختيار نومي فتاوى ته په حواله کولو سره ليکي چي د رياضت په نامه دومره لږ خوراک کول چي د انسان د ضعيفوالي سبب شي روا نه دی لکه چي فرمايي: **قال في الاختيار: لايجوز الرياضة بتقليل الاكل حتى**



**يضعف عن أداء الفرائض، قال ﷺ: "إنّ نفسک مطيّک فارفق بها" وليس من الرِّفق أن تُجيعها وتذيبَها، ولانّ ترک العبادة لايجوز فكذا مايُفضي إليه.**

## د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه قصه:

"حضرت معاذ بن جبل" (چي د لويو اصحابو څخه ؤ) په يوه محله کي يې امامت کاوه او د سهار په لمانځه کي به يې ډېر اوږده اوږده سورتونه لوستل. يو سړی راغی او جناب رسول الله ﷺ ته يې دا شکايت وکړ چي حضرت معاذ د سهار په لمانځه کي دومره اوږده سورتونه لولي چي زه په هغه پسي لمونځ نه شم کولای

"ابو مسعود انصاري" فرمايي چي ما جناب رسول الله ﷺ هيڅکله دومره په قهر نه ؤ ليدلی لکه چي په دغه وخت کي مي وليد، جناب رسول الله ﷺ خلکو ته خطاب وکړ او ويې ويل: چي "ځيني دا راز خلک شته چي هغوی خلک متنفر کوي يعني په خلکو کي (د جماعت او اسلام په مقابل کي) کرکه پيدا کوي کوم خلک چي له تاسي څخه خلکو ته لمونځونه ورکوي، بايد هغوی لمونځونه اوږده نه کړي، دا ځکه چي په لمونځ کوونکو کي زاړه، کمزوري، د ضرورت او کار خاوندان او نور هر ډول خلک موجود وي. ددې حديث عربي الفاظ په دې ډول دي:

**عن ابى مسعود الانصارى جاء رجُل الى رسول الله ﷺ فقال يا رسول الله انى والله لاتَاخَّر عن صلوة الغَداة من اَجْل فلان (كناية عن معاذ بن جبل) مما يُطيل بنا فيها قال فما رايتُ النبى ﷺ قطُّ اشدَّ غضبا فى موعظة منه يومئذ ثم قال ايّها الناس ان منكم منفرين فايّكم ماصلى بالناس فليُوجز فان فيهم الكبيرِ والضعيف وذاالحاجة. (صحيح بخاري شريف جلد۲ صفحه ۱۰۶۰)**

## د ماعز اسلميؓ قصه:

جناب رسول الله ﷺ به په حد او قصاص کې ډېر زيات احتياط کاوه او تر څو چې به ممکنه وه له دې شيانو څخه به يې تېرېدل غوښتل، "ماعز اسلمی" يو صحابي ؤ، هغه يو وخت ديوچا سره زنا کړې وه، وروسته فوراً مسجد ته راغی او ويې ويل چې يا رسول الله ما بد کاري وکړه.

جناب رسول الله ﷺ له ده څخه مخ واړاوه، ما عز د رسول الله ﷺ بل اړخ ته راغی، جناب رسول الله ﷺ بلې خوا ته مخ ځيني وگرځاوه، لنډه دا چې جناب رسول الله ﷺ به له هغه څخه بيا بيا مخ اړاوه او هغه به بيا بيا د هغوی مخې ته راتلی او د زنا اقرار به يې کاوه، لنډه دا چې جناب رسول الله ﷺ هغه ته وويل: چې ته خو به لېوني شوی نه يې؟ هغه وويل: نه صاحب! لېونی شوی نه يم، يقيني مې زنا کړې ده.

بيا يې ورڅخه پوښتنه وکړه چې تا واده کړی دی؟ هغه وويل: چې هو! جناب رسول الله ﷺ ورته وويل: چې تا به صرف لاس وروړی وي؟ ماعز وويل: چې نه، بلکې جماع مې ورسره وکړه، ددې ټولو خبرو په پای او نتيجه کې جناب رسول الله ﷺ دې کار ته اړشو او حکم يې وکړ چې سنگسار دې کړل شي.

دا مبارک حديث د بخاري شريف په څو بابونو کې راغلی دی چې د يوه باب عربي الفاظ يې په دې ډول دي:

ان ابا هريرة قال اَتى رسول الله ﷺ رجُلٌ من الناس وهو فى المسجد فنا داه يار سول الله انى زَنَيْتُ يُريد نفسه فاعَرض عنه النبى ﷺ فَتَنَحّى لشقَ وجهه الذى اَعرض عنه قِبَله فقال يا رسول الله انى زَنَيْتُ فاعرض عنه فجاء لشقَ وَجه النبى ﷺ الذى اَعْرض عنه فلماشهد على نفسه اربعَ شهاداتٍ دعاه



النبى ﷺ فقال اَبک جنونٌ قال لا يا رسول الله فقال احصنتَ قال نعم يا رسول الله قال اذهبوا به فارجُموه. (صحيح البخاري جلد۲ صفحه ۱۰۰۸)

## د صحيح بخاري يوه بله قصه:

يو وخت يو سړی راغی جناب رسول الله ﷺ ته يې عرض وکړ چې ما گناه کړې ده، تاسې د حد يعني د سزا حکم صادر کړئ. جناب رسول الله ﷺ د دغه سړي په جواب کې هيڅ ونه ويل او چپ پاتې شو، په دې وخت کې د لمانځه وخت شو، دغه سړي هم د جناب رسول الله ﷺ سره لمونځ وکړ، د لمانځه څخه وروسته دغه سړی بيا راغی او د جناب رسول الله ﷺ په مخکې ودرېدی او خپله لومړی غوښتنه چې ما ته سزا راکړه بيا تکرار کړه، جناب رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې ايا تا او س لمونځ ونه کړ؟ هغه ورته وويل: چې هو! لمونځ مې وکړ، وروسته جناب رسول الله ﷺ ورته وويل: نو څه ولاړ شه خدای ستا گناه وبخښله. ددې مبارک حديث عربي الفاظ په دې ډول دي:

عن انس بن مٰلک قال کنتُ عند النبى ﷺ فجاءه رجل فقال يا رسول الله انى اصبتُ حدًا فاقِمه علىّ ولم يسأله عنه قال وحَضَرتِ الصلوة فصلّى مع النبى ﷺ فلما قضى النبّى ﷺ قام اليه الرجل فقال يا رسوَل الله انى اَصبت حدًّا فاقِمْ فِىَّ کتابَ الله قال اَلَيس قد صَلَّيْتَ معنا قال نعم قال فانَ الله قد غفَر لک ذنبک او قال حدَّک. (صحيح بخاري جلد۲ صفحه ۱۰۰۸)

## د غامد نومې قبيلې د يوې ښځې قصه:

يو وخت د "غامد" نومې قبيلې يوه ښځه راغله او جناب رسول الله ﷺ ته يې وويل

چې ما بد کاري وکړه، جناب رسول الله ﷺ ورته ووېل: چې ځه ولاړه شه، دغه ښځه هم ولاړه او په دا بله ورځ بیا راغله او جناب رسول الله ﷺ ته یې ووېل چې ایا ته داغواړې چې ما د ماعز غوندې خوشې او خلاصه کړې؟ زما دې په خدای قسم وي ما حمل اخیستی دی یعني زه حامله شوې یم.

جناب رسول الله ﷺ بیا ورته ووېل: چې ځه ته اوس ولاړه شه. دغه ښځه ولاړه او په دریمه ورځ بېرته بیا راغله او خپله هغه غوښتنه یې چې ما ته سزا راکړه بیا تکرار کړه وروسته، جناب رسول الله ﷺ ورته ووېل: چې د کوچني د پیدا کېدو پورې صبر او انتظار وکړه، دا هم ولاړه څه موده وروسته یې کوچنی پیدا شو، که ګوري چې کوچنی یې په غېږ کې دی او بیا راغله د جناب رسول الله ﷺ په مخ کې ودرېده او بیا یې خپله پخوانۍ غوښتنه تکرار کړل او جناب رسول الله ﷺ ته یې ووېل چې بس ته اوس نو سزا راکړه یعني بس ته اوس نو د زنا د سزا په عملي کولو کې فکر او تامل د څه لپاره دی؟ تر دې وروسته جناب رسول الله ﷺ ورته ووېل چې ولاړه شه و کوچنې ته د شیدو د ورکولو تر مودې پورې صبر وکړه څه وخت چې دې کوچنی دتې څخه پرې کړی بیا راشه، دا هم ولاړه څه وخت چې یې د کوچني د تې د ورکولو یعني رضاعت موده تېره شوه نو بیا د جناب رسول الله ﷺ حضور ته راغله او ورته ویې وېل: چې بس ته نور نو سزا راکړه.

په دې وخت کې جناب رسول الله ﷺ مجبوره شو او ددې د سنګسارېدو حکم یې وکړ. هر کله چې پر دې باندې د ډبرو په ورولو پیل و شو نو د یو صحابي ډبره ددې پر مخ ولګېدله او د هغې د وینو څاڅکي ددغه صحابي پر مخ وموښتله، دغه صحابي دې ښځې ته ښکنځل وکړه، جناب رسول الله ﷺ دغه صحابي ته ووېل چې خوله دې ونیسه زما دې په خدای قسم وي چې دې ښځې داسې توبه ایستلې ده چې که په زور او جبر محصول اخیستونکي شخص هم ددې ښځې په شان توبه



ایستلې وای، نو هغه به لا خدای بخښلی وای. **(ابو داؤد کتاب الحدود)**

## د غیر مسلمو په لوښو کې خوراک کول:

یو وخت یوه صحابي جناب رسول الله ﷺ ته دا عرض وکړ چې مونږ د یهودیانو او عیسایانو په ملکونو کې اوسیږو نو ایا مونږ د هغو په لوښو کې خواړه وخورو؟ جناب رسول الله ﷺ په جواب کې ورته ووېل: چې که نور لوښي مو پیدا کولای شول نو د هغو په لوښو کې خواړه مه خورئ او که مو نه شوه پیدا کولای نو د پرېوللو وروسته د هغو په لوښو کې خوراک کولای شئ، ددې مبارک حدیث عربي الفاظ په دې ډول دي:

**عن ابی ثَعْلَبَةَ الخُشَنِیَّ قال قلتُ یا نبیَّ الله انّا بـاَرْضِ قَـومِ اَهـلِ الکتـاب افنأکُلُ فی انِیتهم ....قال .... فان وجدتُم غَیْرَها فـلا تـاکُلُوا فیهـا وان لـم تجدوا فاغسِلو وکُلُواْ فیها.(صحیح بخاري ۲ جلد صفحه ۸۲۳)**

## د یو بل صحابي قصه:

یو وخت یو صحابي د جناب رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او دا عرض یې وکړ چې یا رسول الله! زه برباد شوم او په روژه کې مې د خپلې ښځې سره جماع وکړه، جناب رسول الله ﷺ ورته ووېل: چې آیا ته یو مریی ازاد ولای شې؟ هغه ورته ووېل: نه.

جناب رسول الله ﷺ ورته ووېل: چې دوې میاشتې پرله پسې روژې نیولای شې؟ هغه ورته ووېل: نه.

جناب رسول الله ﷺ بیا ورته ووېل: چې شپېتو مسکینانو ته ډوډۍ ورکولای شې؟

هغه ورته وویل: چې ددې کار قدرت هم نه لرم.
جناب رسول الله ﷺ ددې صحابي په خبره ډېر په فکر کې ډوب شو که ګوري چې یو ګړی نه دی تېر شوی چې یو سړی راغی او جناب رسول الله ﷺ ته یې د خرما یوه ټوکرۍ تحفې په ډول وړاندې کړه، جناب رسول الله ﷺ د خرما دغه ټوکرۍ واخیستله او ویې ویل چې هغه پوښتنه کوونکی سړی څه شو؟ هغه سړي وویل: یا رسول الله! دغه یم.
جناب رسول الله ﷺ ورته وویل: چې دا خرما یوسه او یو غریب ته یې د خیرات په ډول ورکړه، پوښتنه کوونکي عرض وکړ چې یا رسول الله! په مدینه کې به له ما څخه بل څوک غریب وي؟ ددې خبرې په اورېدو سره جناب رسول الله ﷺ وخندل او ویې ویل: ولاړ شه او د کور په خلکو یې وخوره.

**(صحیح بخاري شریف اذا جامع فی رمضان)**

## د ادب مدار پر عرف ولاړ دی:

د ادب مدار پر عرف ولاړ دی، نو ددې سببه د زمانو په بدلېدلو سره دی هم بدلیږي، مثلاً پلار د زوی د ماله څخه ګټه پورته کولای شي، نو ددې نفعې اخیستلو په وجه دا روانه ده چې زوی خپل پلار ته "برخوردار" منتفع لیکل شروع کړي. حال دا دی چې د دواړو مطلب یو دی.
دا لفظ د پلار لپاره ځکه ناروا دی چې عرفاً دغه لفظ د زوی لپاره استعمالیږي، نو ددې وجې د پلار لپاره دغه لفظ استعمالول بې ادبي ده، یا مثلاً ددې پر ځای چې ووایي چې زما پلار په کور کې دی داسې ووایي: "زما د مور مېړه په کور کې دی"، نو باید ووایم چې د پلار لپاره داسې لفظ استعمالول عرفاً ډېر زیاته بې ادبي ده، که څه هم چې د پلار او د مور د مېړه خو یوه معنی ده، مګر دا چې و پلار ته د



مور د مېړه په لفظ سره ویل د پلار سره ډېره غټه بې ادبي ده، نو ځکه د پلار لپاره دغه لفظ استعمالول د شریعت له نظره ناروا ګرځي.
یا مثلاً یو څوک و یو چا ته یو شی ورکړي، نو که ورکوونکی غټ او مشر سړی وي، نو د شکریې او تشکر په ډول **"سلامت اوسې"** ورته ویل کیږي، ځکه چې ځینې وخت غټ او مشر چاته "جزاک الله" ویل بې ادبي معلومیږي.
په تحفة العلماء کې راغلي دي چې د **"السلام علیکم"** پر ځای "سلامت اوسې" ویل د سنت خلاف معلومیږي نو آیا دا څنګه کار دی؟ نوموړی کتاب ددې په جواب کې داسې لیکي: د تسلیم څخه دلته سلام مقصود نه دی، بلکې دا یو اصطلاح ده چې د تشکر پر ځای "سلامت اوسې" لفظ ورته ویل کیږي، دا څه پروا نه لري. بلکې په دې ځای کې "السلام علیکم" استعمالول غالبًا فی غیر محلّه او بې خونده معلومیږي. **(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۱۲۳)**
الله ﷻ په خپل کلام قران شریف کې د مور او پلار په هکله داسې فرمایل دي
فَلَا تَقُل لَّهُمَا أُفٍّ . **(سورة بن اسرائیل آیت ۲۳)**
**ترجمه**: نو مه وایه ته دوی دواړو ته (یعني مور او پلار ته کلمه د) اُف
په دې هکله فقهاوو لیکلي دي چې په حقیقت کې ددغې نهې څخه مراد مور او پلار ته تکلیف ور رسول دي، هغه که په هر لفظ سره وي حرام دي نو که تافیف موجب د ضرر وي دا هم حرام دی او که بل لفظ وي هم حرام دی. او که چیرې په یو وخت کې عرف بدل شو او تافیف موجب د ضرر نه ؤ، په هغه صورت کې بیا تافیف حرام نه دی، نو په یوه سیمه کې په هر لفظ سره چې خلکو ته ضرر رسېدی. هغه حرام دی، مثلاً په یو قوم کې یو لفظ موجب د ایذاء وي. هلته په دغه لفظ سره

تلفظ حرام دی او په بل قوم کې بیا دغه لفظ موجب د ضرر نه وي ، نو هلته بیا دغه لفظ حرام نه دی ، مطلب دا دی په یوه سیمه کې چې کوم الفاظ د ضرر رسولو لپاره استعمالیږي ، بس په هغه سیمه کې دغه الفاظ استعمالول د شریعت له نظره حرام دي، ځکه، چې اصل حکم پر ضرر رسولو باندې مرتب کیږي.

یوه سړي د بل سړي څخه پوښتنه وکړه ویل که چیرې یو سړی پر چارپایي باندې ناست وي او پښې یې لاندې راځړولې وي او بل سړی تر چارپایي لاندې ناست وي او په رحیل کې یې قران شریف ایښی وي او لولي یې نو آیا دا کار روا دی او که نه؟هغه سړي په جواب کې ورته وویل: چې نه! دا کار روا نه دی، ځکه چې دا د قرآن شریف بې ادبي ده.

دغه سړي بیا ورڅخه وپوښتل ویل ښه دا راته ووایه که قرآن شریف لاندې پر بالښته پروت وي او یو سړی راشي د قرآن شریف په مخکې ودریږي آیا دا روا دي او که نه ؟ هغه سړي په جواب کې ورته وویل: چې هو دا روا دي، مخکني سړي ورته وویل چې صاحبه دا دي څنګه خبره وکړل په هغه صورت کې یې بې ادبي بولې او په دغه صورت کې یې بې ادبي نه بولې، ځکه چې که بې ادبي د پښو په لوړوالي سره شي نو په دواړو صورتونو کې تر قرآن شریف پښې لوړې شوې، هغه سړی بې چاره حیران پاته شو او خاموشه شو.

حکیم الامت تهانوي رحمه الله ددغه سړي په هکله فرمایي: چې دغه سړی فقیه نه ؤ چې د هغه سړي د خبرې جواب یې ورنه شو کړای ، که چیرې فقیه وای نو به یې ورته ویلي وای چې د ادب مدار پر عرف دی ، او په عرف کې په لومړي صورت کې بې ادبي راځي او په دوهم صورت کې بې ادبي نه راځي ، مطلب دا دی چې د ادب مدار پر عرف ولاړ دی ، په دې خبره فقهاء ډېر ښه پوهیږي.

تحفة العلماء تر یوې قاعدې لاندې لیکي: د ادب مدار پر عرف دی یعني که یو



کار په خپل ځان کې روا وي ، مګر عرفًا بې ادبي ګڼل کیږي، نو شرعًا دغه کار په بې ادبۍ کې شمار دی او د شریعت له نظره ناروا ګرځي، نوموړی کتاب لږ وروسته لیکي چې کله نا کله عرفي ادب تر واجب لا هم اوړي مثلاً جناب رسول الله ﷺ د خپل مبارک نامه د خرابېدلو امر و حضرت علي رضی الله عنه ته وکړ دغه امر د وجوب لپاره ؤ، مګر حضرت علي رضی الله عنه دغه امر نه شوای عملي کولای او جناب رسول الله ﷺ ته یې عرض وکړ چې یا رسول الله ﷺ دغه کار زه نه شم کولای (ددې څخه هم عرفي ادب ثابتیږي او دا خبره ښیخي صحیح ده چې ادب تر حکم لوړیږي).

(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۱۲۶)

## د تشبه یا مشابهت تعریف:

هغه شیان چې په لیدلو سره یې دعامو خلکو په ذهن کې دا فکر پیدا کیږي چې دغه وضع خو د فلاني خلکو ده ، نو که چیرې دا د هغو خلکو یو ځانګړی خصوصیت ؤ، نو په هغه صورت کې دا کار منع ګرځي لکه زموږ په ملک کې کورتۍ او پتلون اغوستل، یا د ښځو لپاره لنګ اغوستل.

(تحفة العلماء جلد ۲ صفحه ۱۵۴)

## آیا دا حدیث چې من تشبه بقوم فهومنهم قوي دی او که ضعیف؟

حکیم الامت اشرف علي تهانوي رحمه الله د تحفة العلماء په دوهم جلد کې په دې هکله فرمایلي دي: یو وخت د هندوستان په مشهوره مدرسه یعني دارالعلوم دیوبند کې د ځینو طالبانو څخه واورېدل شول چې دغه پورتنی حدیث ضعیف دی،

حكيم الامت وايي ما ورته وويل چې دغه حديث په هکله ما تحقيق نه دی کړی
چې د سند له لحاظه څنګه دی ، مګر دغه مضمون يعني د تشبه مسئله زه د قران
څخه درته ثابتوم چې الله ﷻ فرمايلي دي:

ولاتركنوا الى الذين ظلموا فتمسكم النار .**(سورت هود ايت۱۱۳)**

**ترجمه**:او مه مائله کېږئ تاسي په طرف د هغو کسانو چې ظلم يې کړی دی،
نو وبه رسيږي تاسي ته اور.

که غواړئ چې د دې مبارک آيت تفسير او د دې مبارک آيت څخه د تشبه د منع
والي ثبوت د حکيم الامت اشرف علي تهانوي د خولې واورئ نو سمدلاسه تحفة
العلماء، جلد ۲ صفحه ۱۲۷ ته رجوع وکړئ هلته به دا هم درته معلومه شي چې شيخ
الاسلام حافظ ابن تيميه رحمه الله دغه حديث تصحيح فرمايلي ده .

نوموړی کتاب زياتوي چې په دې هکله يعني د تشبه د منع والي په هکله عقلي او
عرفي دلائل هم شته، وروسته د يو شريفه سړي مثال را اخلي او وايي که چېرې يو
شريفه سړی د خپلې ښځې رنګ داره (او زرين) کالي وا غوندي او راشي په يوه غونډه
کې پر يوه څوکۍ کښېني،آيا دی به د ځان لپاره دا کار خوښ کړي او که به نور کتونکي
دده دا کار ښه وبولي؛ نو آيا په دې کار کې بې له تشبه او مشابهته بله څه بدي ده؟

نو دا چې ته د يوې مسلمانې ښځې سره چې ديندارې به يې هم شايد تر تا زياته
وي مشابهت نه خوښوې ، نو د کفارو ، فاسقانو او فاجرانو سره مشابهت څنګه
خوښوې ؟ تر دې وروسته يو بل مثال راوړي او وايي: په يوه سيمه کې يوه سړي يوه
ترکۍ خولۍ پر سر کړې وه او محکمې ته راغی، حاکم دده پر دې کار ډېر ناراضه
شو او ده ته يې وويل چې ولې دې زموږ د حکومت د مخالفينو په ډول خولۍ پر سر
کړې ده او بيا ښه راغلې او زموږ په مخ کې ودرېدې ، نو هغه ؤ چې دغه سړی يې



ګرفتاره کړی (او مجازات يې کړی) .

دا په دې وجه چې په اوس وخت کې برطانويان جرمنی دريښي اغوستل جرم
بولي ، ځکه چې نن سبا د برطانيې او ترکيې دښمني روانه ده ، نو دا چې برطانيه
دا حق لري چې خپل خلک د دښمن سره د مشابهت څخه را وګرځوي او دده خلک د
دښمن سره په مشابهت کولو کې د خپل ځان سپکاوی ګڼي نو آيا جناب رسول
الله ﷺ ته دا حق نه شته چې د الهي دښمنانو وضع دې جرم وبولي، نو زه درته وايم
چې د من تشبه بقوم فهو منهم مسئله عقلي هم ده.

## نوموړی کتاب د تشبه صحيح تعريف په دې ډول را اخلي:

يو داسي کار کول چې هغه د کفارو ، يا فاسقانو او غلطو خلکو مخصوصه او
يوه ځانګړې علامه وي او د خلکو ذهن د هغوی وطرف ته ځي نو دې ته تشبه ويل
کيږي چې د شريعت له نظره روا نه دي او که داسې نه وي يعني د هغوی مخصوصه
او ځانګړې علامه نه وي نو په هغه صورت کې بيا دغه شی د تشبه څخه وتلی دی.

## د کفارو سره د مشابهت اقسام:

۱- د کفارو سره په اعتقاداتو او عباداتو کې مشابهت کفر دی او په مذهبي
رسوماتو کې حرام دی لکه د نصارا وو په ډول پر سينه باندې صليب راځړول ، يا د
هندوانو په ډول زنار تړل ، بايد ووايم چې دا ډول تشبه بې له شکه حرامه ده او
داسې شيان اختيارول کفر دی .**(سيرة المصطفى په حواله د تهانوي)**

۲- په معاشرت ، عبادات او قومي شعار کې تشبه مکروه تحريمي ده، مثلاً د يو
قوم يو مخصوص لباس استعمالول چې هغه خاص د هغوی وطرف ته منسوب وي،
او د دغه خاص لباس استعمالوونکی په دې کار سره د خلکو په نظر کې د هغه قوم

يو فرد ګڼل کيږي، دا ټوله ناجائز او ممنوع دي او په تشبه کې داخل دي.

٣- او کوم شيان چې نه خو د نورو قومو قومي وضع او نه يې هم مذهبي وضع وي ، بلکې د دوی ايجاد وي، نو د هغوی استعمالول (بې له څه شکه د شريعت له نظره) روا دي .

٤- په مسلمانانو کې چې کوم فاسقان يا بدعتيان وي د هغوی وضع اختيارول هم ګناه ده، نو په دې ټولو ناروا وضعو کې که چيرې پوره وضع اختيار کړل شي نو زياته ګناه ده او که نيمه اختيار کړل شي، تر هغه يو څه کمه ګناه ده .

**(تحفة العلماء جلد ٢ صفحه ١٢٩)**

مطلب دا دی چې د کفارو سره مشابهت په مذهبي کارونو کې حرام دی او په قومي شعارکې مکروه تحريمي دی. په نورو ايجاداتو او انتظاماتو کې روا دی ، ځکه چې دا په حقيقت کې تشبه ده نه **(وعظ الحدود)**

## آيا په لندن کې د کورتۍ او پتلون په اغوستلو سره د کفارو سره مشابهت راځي او که نه؟

حکيم الامت علامه اشرف علي تهانوي رحمه الله پخپل کتاب حيات المسلمين کې په دې هکله دا راز فرمايي: يو صاحب زما څخه پوښتنه وکړه ويل که چيرې يو سړی په لندن کې مسلمان شي او هلته کورتۍ او پتلون اغوندي نو آيا دا د کفارو سره مشابهت بلل کيږي او که نه ؟ ما ورته وويل چې په هغه ځای کې کورتۍ او پتلون اغوستل د کفارو سره مشابهت نه دی ، ځکه چې هلته د خلکو په فکر کې دا نه ورګرځي چې دا د پردو خاص لباس دی، هلته خو د ټولو خلکو لباس همدا دی که مسلمان وي او که غير مسلمان، هلته په دې هکله هيڅ



امتياز نشته، که چيرې دلته هم کورتۍ او پتلون دومره عام شي، چې د ذهن څخه دا خصوصيت ځي (چې دا د پردو خاص لباس دی) نو دلته هم (د کورتۍ او پتلون اغوستل) هيڅ پروا نه لري، او په تشبه کې نه داخليږي.

**(تحفة العلماء په حواله د حياة المسلمين جلد٢ صفحه ١٣١)**

## د عموم بلوی بيان:

حکيم الامت رحمه الله فرمايي چې نن سبا دوه شيان په منکراتو کې ډېر عام شوي دي چې يو تصوير او مجسمي دي او بل د شرابو استعمال دی، يو چا پوښتنه وکړه چې آيا په دغو شيانو کې د ابتلاء عام او عموم بلوی د رعايت حکم ورکول کېدای شي او که نه؟ په جواب کې يې حکيم الامت وفرمايل چې: په حلالوالي او حراموالي کې عموم بلوی نه ده معتبره، بلکې په نجاست او په طهارت کې معتبره ده، هغه هم په هغه ځای کې چې د مجتهدينو پکښې اختلاف وي.

محض د عموم بلوی تاويل نه شي کېدای، که نه نو په غيبت کې ډېره غټه عموم بلوی ده، بلکې عموم بلوی په هغه صورت کې معتبرېدای شي په کوم ځای کې چې مسئله مختلف فيه وي نو په دغه صورت کې خپل مسلک يعني خپل مذهب د عموم بلوی په وجه پرېښودل کېدای شي. **(کمالات اشرفيه)**

د عوامو د رعايت لحاظ جناب رسول الله ﷺ هم کړی دی لکه حطيم چې يې په کعبه کې د خلکو د رعايت د وجې داخل نه کړی، مګر په هغه ځای کې چې د عمل کولو ضرورت يا مصلحت قوي وي، هلته بيا د عوامو رعايت نه شي کېدای. لکه د حضرت زينب رضی الله تعالی عنها سره د نکاح په مسئله کې، نو بايد ووايم په کوم ځای کې چې د دين نقصان راځي هلته د عوامو رعايت نه دی په کار، د حطيم په واقعه

کې د دین نقصان نه راتلی او د حضرت زینب رضی الله تعالی عنها سره د نکاح په مسئله کې په تبلیغ کې کوتاهي راتله ځکه چې د هغه تبلیغ عملي کول ضروري ؤ.

## د محققینو مسلک:

د محققینو مسلک دا ؤ چې پخپله به یې ډېر احتیاط کاوه او د خپل ځان لپاره به یې هغه ګران شی خوښاوه، مګر په رایه او فتوی کې به یې وسعت او پراختیا راوستله. یعني د خلکو لپاره به یې اساني راوستله تنګي به یې نه جوړوله لکه حدیث شریف چې دی: ماکرهت فدعه ولاتحرمه علی احد.

حضرت اشرف علي تهانوي رحمه الله د عموم بلوی او عامه ضرورت پر بناء په مسائلو کې د توسع او پراختیا د حدودو د بیانولو په ترڅ کې فرمایلي دي: ما اراده درلوده چې د معاملاتو د احکامو په هکله یو داسې رساله جوړه کړم چې په هغو معاملاتو کې چې عوام مبتلا دي، که چیرې دغه صورتونه په هر مذهب کې روا وه. د هغوی اجازه ورکړو، ترڅو چې د مسلمانانو کارونه په یو ډول نه یو ډول صحت پیدا کړي، نو په دې هکله ما احتیاطاً د حضرت مولانا رشید احمد ګنګوهي رحمه الله څخه فتوی وغوښتله چې آیا په داسې مسئلو کې د بل مذهب موافق فتوی ورکول روادي او که نه؟ حضرت ګنګوهي رحمه الله هم ددې اجازه راکړه.

ددې خبرې وروسته حضرت اشرف علي تهانوي رحمه الله فرمایي چې حضرت مولانا رشید احمد ګنګوهي ډېر پوخ حنفي ؤ، حضرت تهانوي رحمه الله لږ وړاندې لیکي: چې دغه توسع او پراختیا په معاملاتو کې راتلای شي په دیاناتو کې نه شي راتلای، ځکه چې په هغو کې کوم اضطرار نشته. نوموړی وایي چې په مختلف فیه مسائلو کې وسعت او پراختیا په کار ده یو خو به د شریعت سره مینه او محبت پیدا شي او بل به خلک ارام پیدا کړي.



تر دې وروسته حکیم الامت د عوامو د رعایت په هکله یو مثال وایي: زما څخه فتوی وغوښتل شوه چې زموږ په سیمه کې یو امام دی دده دا عادت دی چې "ایاک نستعین" باندې وقف نه کوي، بلکې دغه نون د "اهدنا" سره یو ځای پر وایي، نو د خلکو او دده ترمنځ ډېر جنجال منځ ته راغلی تر دې چې خبره تر حکومته ورسیده، ما په جواب کې ورته ولیکل چې دغه ډول قرائت ویل لکه دغه امام چې یې وایي روا خو دی، مګر دغه امام باید معزول کړل شي. دا ځکه چې دغه امام د خلکو ترمنځ فتنه راپورته کوي موقع او محل نه ګوري.

## د عموم بلوی په اړه څو جزئیات:

## د شیدو لپاره مصنوعي حیوان جوړول روا دی او که نه؟

**پوښتنه**: که چیرې د یو حیوان بچی مړ شي، نو د شیدو د نه وچېدو لپاره مصنوعي بچی جوړول روا دي او که نه. ځکه چې بې له بچي لیدلو دغه حیوان شیدې نه کوي.

**جواب**: هو! روا دی. **(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۱۳۴)**

## لېږي انسان جوړول او پر هغه ډاکټري زده کول:

**پوښتنه**: ډاکټران لېږي انسان جوړ کړي او د هغه په مرسته و خپلو شاګردانو ته تعلیم ورکوي آیا دا روا دي او که نه؟

**جواب**: اشرف علي تهانوي ﷫ وايي چې هو! دا کار روا دی او د تعليم لپاره دا ښه صورت دی، مګر دا چې په دې کې د تصوير حرمت راځي، نو ددې (صحيح او ښه) طريقه دا ده چې سر يې بايد جلا کښېښودل شي.

(تحفة‌العلماء جلد۲ صفحه۱۳۵)

## د خطرناکو حيوانانو سوځل روا دي او که نه؟

**جواب**: که چيري دا په بل ډول له منځه نه ځي، نود مجبوری په وجه سره روا دي او که په بله طريقه مړ کېدای شي، نو بيا يې سوځل نه دي روا. (امداد الفتاوی)

# د حيلو بيان

## په زکات کي حيلې جوړول:

حيلې پر دوه قسمه دي يو يې هغه دي چې د شريعت د اغراضو مبطل وي لکه د زکات په نه ورکولو کي حيله جوړول، دا ډول حيلې جوړول سخت ناروا عمل دی او بل هغه حيله ده چې د يو شرعي مقصود د تحصيل او تعميل لپاره وي دا روا دي نو بايد ووايم چې حيله کله د شرعي مقصود د ابطال لپاره وي هغه حرامه ده او کله بيا د شرعي مقصود د تحصيل او تعميل لپاره وي، هغه بيا روا ده، او ځيني داسي حيلې هم شته چې په هغو سره د عوامو په فتنه کي د اخته کېدلو بېره وي، هغه حرامي دي لکه د سود څخه د ځان ساتلو لپاره داسي حيلې چې آخير خلک سود حلال وګني ، داسي حيلې ټولي حرامي دي.



مطلب دادی چې په ديانــاتو کي حيلې نه شي کېدای، د مثال په توګه يو سړی د زکات د نه ورکولو لپاره داسي حيله جوړوي چې د کال تر پوره کېدو مخکي خپله ټوله دارايي د خپلي ښځي پر نامه کړي او هغي تـه يې وروبخښي او هغـه يې قـبض هم کړي خو په حقيقت کي يې د هبې او بخښلو نيت نه وي، بلکې په دې کي يې دا قصد وي چې کله دا بل کال پر پوره کېدو شي، هغه به يې بېرته مـا تـه راوبخښي او زه به د زکات د ورکولو څخه خلاص شم.

دا ډول حيلې حرامي او ډېره سخته ګناه ده، بلکې ددې ګناه تر هغـه لا هم ډېره سخته ده چې بيخي يې زکات ورکول په خيال کي نـه وي ،ځکه چې دا ډول حيلې د الله ﷻ د فرضو څخه د ځان خلاصولو لپاره دي، چې د دياناتو سـره تعلق لـري، همدارنګه ځيني ملاامامـان نن سبا د زکات د اخيستلو لپاره ځانونو تـه ډول ډول حيلې جوړوي، يعني ډېر ملاامامان د نصاب څښتنان او غنيان وي چې د شريعت له نظره زکات اخيستل نه وي ورتـه روا . بلکي پر ده لا د زکات ورکول فرض وي، مګر بيا هم زکات اخلي، دا ډول حيله جوړوونکي امامان دي لـوی خدای ﷻ ددغـه بې کاره او بيخي بې خونده عمل څخه وساتي، زکات اخيستل د مسکين حق دی ددې لپاره چې دوی نور عوامو خلکو ته ښه اخلاق،دلوی خدای ﷻ سره اخلاص او حلالـه ګټه وروښيي پخپله په دغه حرامه ګټه اخته کيږي.

آخير مسلمان بايد د خدای ﷻ سره پوره پوره اخلاص ولـري، خدای ﷻ تـه دوکـه ورنه کړي، ځکه چې خدای ﷻ تـه دوکـه ورکـول پـه حقيقت کي خپـل ځان تـه دوکـه ورکول دي، مسلمان بايد پر دې پـوره پـوره ايمان ولـري چې زمـا د زړه پـه هر رګ الله ﷻ خبر دی، نو داسي حيلې جوړول په حقيقت کي خپله ګناه نوره درنه کول دي او ځان په ګناه کي ډوبول دي.

پر بني اسرائيلو باندي د شنبې په ورځ د ماهيانو ښکار کول حرام وه، خو دوی د

ښکار لپاره حيلې جوړولې نو هغه ؤ چې د الله ﷻ د غضب سره مخامخ شول او عذاب پر نازل شو. (مجالس حکيم الامت)

## ناجائزي حيلې:

فتاوى دار العلوم ديوبند په دې هکله داسې ليکي: هغه حيلې چې حرامې او مکروه وي، د مفتي لپاره د هغوى اختيارول صحيح نه دي، همدا ډول د داسې رخصتونو په تلاش پسې ګرځېدل هم صحيح نه دي د کومو څخه چې ځينې خلک غلطه استفاده کول غواړي، حافظ امام ابن قيم ؒ پخپل کتاب اعلام الموقعين کې څه دا راز ليکي:

لا يجوز للمفتى تتبع الحيل المحرمة والمكروهة ولاتتبع الرخص لمن اراد نفعه فان تتبع ذلک فسق وحرام استفتائه.

**(اعلام الموقعين جلد٢ صفحه ٢٥٨)**

يعني د حرامو او ناجائزو حيلو تلاش د مفتي لپاره صحيح نه دى، همدا راز د داسې سړي لپاره د رخصتونو په تلاش کې غوټه کېدل روا نه دي چې د غلطي استفادې کولو اراده يې وي، ځکه چې دا فسق دى او دا قسمه استفتاء حرامه ده. همدا رنګه په طحطاوي کې راغلي دي:

ويحرم التساهل فى الفتوى واتباع الحيل ان فسدت الاغراض.

**(طحطاوي على الدرالمختار جلد٣ صفحه ١٧٥)**

يعني په فتوى کې تساهل او د حيلو پيروي چې د اغراضِ فاسده وو پېش نظر وي، حرام دى.



## جائزې حيلې:

البته هغه شرعي حيلې چې د امت فقهاوو په هغوى عمل کول جائز بللى دى او په هغوى کې هيڅ شرعي مفسده نه وي، په هغوى سره فتوى ورکول صحيح دي لکه حافظ ابن قيم ؒ چې ليکي:

فان حسن قصده فى حيلة جائزة لاشبهة فيهاولامفسدة لتخليص المستفتى بها من حرج جاز ذلک بل استحب وقد ارشد الله تعالى نبيه ايوب عليه السلام الى التخلص من الحنث بان ياخذ بيده ضغثا فيضرب به المرأة ضربة واحدة وارشد النبى ﷺ بلالا الى بيع التمر بدراهم ثم يشترى بالدراهم تمرا آخر. **(اعلام الموقعين جلد٢ صفحه ٢٥٨)**

**ترجمه**: که چيري يو څوک يوه جائزه حيله په ښه نيت سره اختيار کړي په کومه کې چې نه څه شر وي او نه مفسده، بلکې منشاء يې مستفتي د تنګئ څخه ايستل وي، نو دا جائز بلکې مستحب دي، پخپله الله ﷻ خپل نبى حضرت ايوب عليه السلام ته د حنث (يعني د قسم د ماتولو د ګناه) څخه د ساتلو لپاره رهنمايي فرمايلې ده او دا يې ورته ښودلې وه چې هغه دې پخپل لاس کې د ډکو يوه دسته راواخلي خپل کوروالا دې يو وار په ووهي او همدا راز جناب رسول الله ﷺ حضرت بلال رضي الله عنه ته ښودلې وه چې هغه دې خرماوې د دراهمو په بدل کې خرڅې کړي او بيا دې په هغو دراهمو نورې خرماوې رانيسي.

## په معاملاتو کې توسع او پراختيا اختيارول:

حکيم الامت فرمايي چې په شريعت کې وسعت دى، که چيري په يوه مسئله کې

د مجتهدينو اختلاف وي نو د ابتلاء عام په وجه پر دغه شي د جائز فتوى ورکول په کار دي، وجه داده چي نن سبا معاملې ډېرې مرداري رواني دي که چيري مختلف فيه شيان حرام وبلل شي، او که په دغه کار عمل وکړل شي نو تنګي جوړيږي. ددې نتيجه دا راوزي چي خلک به شريعت يو تنګ نظره دين وګڼي (نو ښکاره خبره ده چي دغه سړى به هم خپل ځان او هم به نور ټول خلک په ګناه کي غرق وبولي او بل ځاى به هم احتياط نه کوي وايي به چي اوس نو پور تر سلو تېر دى) ددې وجې تنګي نه ده په کار، بلکې وسعت او پراختيا په کار ده.

ددې فائده داده چي په وسعت کېدلو کي اعتقاد سميږي وايي به چي شريعت څنګه ښه شى دى او څنګه ښه رحمت دى، څوک چي د فقهې علم ولري هغه ته ددې خبرې ډېر ښه درک معلوميږي چي په وسعت کي يو خو د شريعت سره محبت پيدا کيږي دوهم به ګټه پورته کړي او ارام به اوسي او د الله ﷻ سره به يې محبت ډېر شي

## ډېر خلک دا فکر کوي چي په شريعت کي د هر شي لپاره لايجوز راغلى دى:

حکيم الامت فرمايي چي اکثره خلک دا فکر کوي چي په شريعت کي د هر شي لپاره لايجوز راغلى دى يعني په شريعت کي هر شى نه دى روا، حال دادى چي دا خبره بيخي غلطه ده، ځکه چي په شريعت کي لايجوز ډېر کم راغلى دى، بلکي يجوز په کثرت سره راغلى دى، (څوک چي د فقهې علم ولري هغه ته ددې خبرې ډېر ښه درک معلوميږي اوهم ددې خبرې ډېر ښه درک ورمعلوميږي چي په شريعت کي څومره ډېر وسعت دى، داچي ځينو ناپوهو خلکو ډېره تنګي جوړه کړې ده .داد هغوى ناپوهي ده. (**تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۲۲۰**)



## پر اسانه اړخ او رخصت باندي فتوى ورکول په کار دي:

کوم شيان چي بې له مکروه والي جائز وي او په شريعت کي د هغوى لپاره رخصت وي، نو د مفتي لپاره په کار دي چي د عوامو لپاره دغه سهل او اسانه اړخونه اختيار کړي او پر دې باندي فتوى ورکړي. يعني مفتي بايد د عوامو ډېر خيال وساتي، عوام بايد په تکليف او مشقت کي اخته نه کړي لکه حضرت شاه ولى الله محدث دهلوي رحمه الله چي ليکي:

وفى عمدة الاحكام من كشف البزدوى يستحب للمفتى الاخذ بالرخص تيسيرًا على العوام مثل التوضى بماء الحمام والصلوة فى الاماكن الطاهرة بدون المصلى الخ. (**عقدالجيد صفحه ۷۳**)

**ترجمه**: د کشف البزدوي په حواله سره په عمدة الاحکام کي راغلي دي چي د مفتي لپاره مستحب دي چي د عوامو د اسانى په غرض سره پر رخصتونو باندي فتوى ورکړي لکه د حمام په اوبو سره اودس تازه کول او پر پاکو ځايونو باندي بې له جاى نمازه لمونځ کول او داسي نور.

هغه خلک چي محتاط او خاص خلک دي د هغوى لپاره پر عزيمت عمل بهتر دى لکه حضرت شاه ولى الله محدث دهلوي رحمه الله چي ليکي:

ولا يليق ذلک باهل العزلة بل الاخذ بالاحتياط والعمل بالعزيمة اولى بهم. (**عقدالجيد لشاه ولى الله صفحه ۷۳**)

**ترجمه**: دغه رخصت د ګوښه نشينو لپاره مناسب نه دى، بلکې د هغوى

لپاره ښه دادي چې هغه احتیاط والا اړخ چې کوم دی هغه غوره کړي او پر عزیمت باندي عمل وکړي

## د جناب رسول الله ﷺ دا فرمان چې اساني کوئ او تنګي مه کوئ:

د مفتي لپاره دا هم په کار دي چې خلکو ته د داسي خبري فتوی ورکړي چې د هغوی په حق کي اسانه وي، په ځانګړي توګه بیا د کمزورو لپاره لکه حضرت شاه ولی الله دهلوي رحمه الله چې فرمايي:

**ينبغي ان ياخذ بالايسر في حق غيره خصوصاً في حق الضعفاء لقوله عليه السلام لابي موسى الاشعري ومعاذ حين بعثهما الى اليمن يسرا ولاتعسرا. (عقدالجيد صفحه ۷۴)**

**ترجمه**: د مفتي لپاره مناسب دي چې پر داسي قول فتوی ورکړي چې د نورو په حق کي خصوصاً بیا د کمزورو خلکو په حق کي زیات اسانه وي، ځکه چې جناب رسول الله ﷺ چې څه وخت حضرت ابوموسی اشعري رضی الله عنه او حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه د یمن ولور ته استول، نو ورته ویې فرمایل چې تاسي دواړه اساني کوئ او تنګي مه کوئ.

## آیا اول صف بل چا ته ورپرېښودل او پخپله په دوهم صف کي درېدل روا دي او که نه؟

ډېر څله صوفیان اول صف یو مشر یا بزرګ ته ورپرېږدي او پخپله په دوهم



او یا دریېم صف کي درېږي یعني ډېر څله صوفیان داسي کوي چې کله په لومړي صف کي ولاړ وي خو چې یو مشر یا بزرګ راشي نو دی لومړی صف هغوی ته پرېږدي او پخپله په دوهم یا دریېم صف کي درېږي، د دوی پر دې کار ځیني فقهاء اعتراض کوي او وايي چې ولي په لاسي لاس د لومړي صف ثواب بل ته پرېږدې دا ښه کار نه دی. ځکه چې په دې کار کي خو **استغناء عن الثواب** راځي.

د صوفیانو له اړخه دوی ته جواب ورکول کیږي چې یو ثواب خو په اول صف کي د درېدلو دی، او دوهم ثواب د خدای ﷻ د دوستانو او مشرانو تعظیم دی چې تر لومړي ثواب زیات دی، نو موږ په ظاهره یو ثواب پرېږدو چې په لومړي صف کي د درېدلو ثواب دی، مګر په باطن کي دوهم غټ ثواب لاس ته راولو چې د مشرانو تعظیم دی، نو په دې کي استغناء عن الثواب د کومه شوه، په دې کي خو هم د ثواب غوښتنه ده.

او دا شرعي قاعده ده چې الدال علی الخیر کفاعله یعني د خیر ورښودل، پخپله د خیر کوونکي په مثل دی، نو که یو څوک صف اول ته ولېږل شي او هغه په صف اول کي ودرېږي، نو دغه سړي چې د اول صف فضیلت زما په وجه تر لاسه کړی، ددې ثواب ما ته هم رسیږي.

نو د اول صف د درېدلو د ثواب څخه هم بې برخي نه شوم او هم مي ددې تر څنګ دوهم ثواب چې د مشرانو او بزرګانو عزت دی تر لاسه کړی، نو په دې کي استغناء عن الثواب د کومه شوه ځکه چې د یوه ثواب پر ځای مي دوه ثوابه تر لاسه کړل.

## په ګناه کي نېک اوښه نيت فائده نه کوي:

دا حديث چي فرمايي: **انما الاعمال بالنيات** يعني ټوله عملونه په نيتو سره دي، دا د مباحاتو او طاعاتو په هکله دی د معاصي او ګناه په هکله نه دی، مطلب دادی که چيري په طاعاتو کي نېک نيت وکړل شي نو دا مقبول ګرځي او همدارنګه په يو مباح او روا کار کي که د دين نيت وکړل شي نو هغه مقبول ګرځي، ددې دا معنی نه ده چي که په ګناه کي هم ښه او نېک نيت وکړل شي هغه به عبادت وګرځي، نه وروره! هيڅکله داسي نه ده.

دا سمه خبره ده چي په نېک نيت سره يو مباح او روا کار عبادت جوړيږي، مګر ګناه په ښه او نېک نيت سره مباح او روا نه ګرځي که څه هم چي هر څومره ډېري ګټي او مصلحتونه به پکښي وي، مثلاً که يو سړی په ظلم سره د يو چا څخه مال واخلي او يا په غلا سره پيسې راټولي کړي، په دې نيت سره چي پر مسکينانو او محتاجانو يې ووېشي، نو دا هيڅکله هم نه روا کيږي او نه پر دې کار ثواب ورکول کيږي، بلکې په دې کار سره عذاب ورکول کيږي، خدای دي وکړي چي هر څومره ډېري ګټي به پکښي کي وي.

## په غير اختياريه اعمالوکي بې له نيته هم ثواب لاسته راتلای شي:

او بله خبره داده چي بې له نيته هم ثواب لاسته راتلای شي، مثلاً که يو پلار وخپل اولاد ته يو شی ورکړي، نو په دې کي خو يې د ثواب نيت نه دی



کړی، مګر پلار ته ثواب رسيږي لکه په حديث شريف کي چي راغلي دي چي که چيري يو سړی وخپلي ښځي ته په خوله کي ډوډی ورکړي نو مېړه ته په دې کار سره ثواب رسيږي حال دادی چي خپلي ښځي ته خو يې ګوله د ثواب په نيت سره نه ده ورکړې، بلکې که هغې ته د مېړه د ثواب نيت ورمعلوم شي، نو شايد دغه کار دا ښه ونه ګڼي او خپل مېړه ته ووايي چي آيا زه ستا خيرات خوره يم چي ته ما ته خيرات راکوې.

که چيري يو چا ته دا سوال ورپيدا شي چي د **انما الاعمال بالنيات** له رويه بې له قصده ثواب څنګه رسيږي، نو ددې جواب دادی چي هو، بې له نيته خو ثواب نه رسيږي، لېکن د غير اختياري خير ثواب رسيږي، لکه جناب رسول الله ﷺ چي فرمايلي دي که چيري يو سړی په مځکه چي تخم وکري او يا په مځکه کي درخته کښېږدي او بيا د هغه څخه انسان او يا حيوان خوراک وکړي دغه سړي ته يې ثواب رسيږي، نو ته فکر وکړه، دلته نيت د کومه ؤ، بلکې دده نيت خو د ځان د مړولو او يا د پيسو د ګټلو دی، انسان او حيوان ته خو يې ورکول بېخي په خيال کي لا نشته، بلکې که يو حيوان دده و باغ ته ورواوړي نو ته به ګورې چي تر وهلو يې په ځغلولو ستړی کوي او که نه، مګر بيا هم ده ته اجر رسيږي.

مطلب دادی چي په اعمال اختياريه وو کي ثواب پر نيت موقوف دی او په غير اختياريه وو کي بې له نيته هم ثواب رسيږي.

**(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۱۴۵)**

## که هر څومره غټ عالم هم وي، خو په ناعلمۍ ښکاره کولو کې لږ شرم هم نه دی په کار:

وګورئ حضرت امام مالک رحمه الله څومره غټ عالم ؤ، دده څخه په یوه غونډه کې یوڅا څلوېښت مسئلې وپوښتلې، خو ده د شپږدېرشو پوښتنو په جواب کې لا ادري وویل یعنې ددغو پوښتنو جواب نه لرم او صرف د څلورو پوښتنو جوابو نه یې ورکړل، آخیر د خدای ﷻ څخه بېره خو هم یو شی ده که نه.

همدارنګه یو وخت د جناب محمد رسول الله ﷺ څخه یو چا پوښتنه وکړل چې تر ټولو ښه ځای کوم یو دی او تر ټولو بد ځای کوم یو دی، خو جناب رسول الله ﷺ په جواب کې ورته وویل چې ما ته په دې هکله معلومات نشته، زه به د الله ﷻ څخه پوښتنه وکړم بیا به تا ته جواب درکړم.

نو ته فکر وکړه آیا جناب رسول الله ﷺ په دې هکله څه نه شوای ورته ویلای ځکه چې دا دومره باریک سوال هم نه ؤ، که چیرې زما غوندې نالائق په دې کې فکر وکړي لا ویلای شي چې په کوم ځای کې چې عبادت کیږي هغه ځای تر ټولو ښه دی او په کوم ځای کې چې ګناه کیږي هغه ځای تر ټولو بد دی، مګر جناب محمد رسول الله ﷺ مبارک چې تر ټوله مخلوق یې علم زیات دی پر خپل سر جواب ورنه کړ.

دا خبره ما محض د مثال په ډول درته وکړل چې یعنې ددې سوال جواب دومره مشکل نه ؤ، لیکن بیا هم جناب محمد رسول الله ﷺ چې خیرالبشر دی او



تر ټول مخلوق یې عقل او فکر زیات دی په دې هکله رایه زني روا ونه بلل او ویې فرمایل چې په دې هکله ما تحقیق نه دی کړی، زه به د الله ﷻ څخه پوښتنه وکړم او بیا به جواب درکړم.

نو چې کله حضرت جبرئیل عليه السلام د جناب رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو، نو جناب رسول الله ﷺ دده څخه دا پوښتنه وکړل، هغه هم دا ورته وفرمایل چې په دې هکله ما تحقیق نه دی کړی خو بیا حضرت جبرئیل عليه السلام د الله ﷻ څخه جواب وغوښتی، او الله ﷻ په جواب کې ورته وفرمایل: چې تر ټولو ښه ځای مسجد دی چې د خدای ﷻ عبادت پکښې کیږي او ولوی خدای ﷻ ته خلک پر سجده پکښې پریوزي او تر ټولو بد ځای بازار یعنې هغه ځای دی چې د لوی خدای ﷻ نافرماني پکښې کیږي، نو بیا دغه خبره جبرئیل عليه السلام و جناب رسول الله ﷺ ته راورسوله او څه وخت چې هغه سړی چې په دې هکله یې د جناب رسول الله ﷺ څخه پوښتنه کړې وه راغی نو جناب رسول الله ﷺ همدغه جواب ورکړ. **(مشکوة شریف صفحه ۷۱)**

وګورئ جناب رسول الله ﷺ د سوالونو په جوابونو کې د نص یعنې وحې انتظار کاوه، او موږ چې کوم یو د اټکل څخه کار اخلو، چې هر څه پر خوله راغله، بس هغه تر خوله راباسو، دا نه ګورو چې آیا دا خبره صحیح ده، د کتاب سره برابره ده او دا مسئله ما په یو معتبر کتاب کې لیدلې ده او که نه.

نن سبا داسې وخت دی چې د یو ادنی طالب العلم څخه پوښتنه وکړې هغه به د یوې غټې مسئلې جواب درکولو ته تیار وي دا به نه وایي چې دا مسئله ما ته نه ده رامعلومه، حال دادی چې دا یوه غټه ذمواري ده او بله خبره داده

چي د جناب رسول الله ﷺ اتباع په هر شي کي ضروري ده، نو دا چي جناب رسول الله ﷺ فرمايي چي په دې مسئله کي ما ته تحقيق نشته، نو بايد ته هم په هغه مسئله کي چي معلومات، نه وي درته د جناب رسول الله ﷺ اتباع وکړې.

په هغه مسئله کي چي تا ته معلومات نه وي او تحقيق دې نه وي کړى او وايې چي ما ته معلومات نشته او ما تحقيق نه دى کړى، دا د جناب رسول الله ﷺ عين اتباع ده.

## سراج الامت حضرت امام مالک رحمة الله عليه فرمايي:

د چا څخه چي د يوې مسئلې پوښتنه وکړل شي نو دده لپاره په کار دي چي اول خپل ځان پر جنت او دوزخ پېش کړي او دا فکر وکړي چي په آخرت کي به څنګه خلاصون راته حاصليږي (**فتاوى دارالعلوم ديوبند جلدا صفحه ۴۱**)

## همدارنګه امام اهل سنت حضرت امام احمد بن حنبل رحمة الله عليه فرمايي:

چا چي خپل ځان د فتوى لپاره وړاندي کړى هغه امر عظيم پورته کړى، تر څو چي مو ضرورت مجبوره نه کړي تر هغو پوري پر دغه منصب د ربدلو جرئت مه کوئ (**فتاوى دارالعلوم ديوبند جلد ١ صفحه ۴١**)

## د هر مولوي او حافظ څخه مسئلې مه پوښتئ:

حکيم الامت وايي چي په ډېرو خلکو کي دا مرض پيدا شوى دى چي بې له تحقيق کولو د خلکو څخه مسئلې پوښتي يعني دا تحقيق نه کوي چي واقعي



دا سړى عالم دى او که نه، بس چي د يو مولوي نوم واوري که څه هم چي هغه به په هيڅ نه پوهيږي صرف سپينه لنګوټه او يا سپين کالي به يې اغوستي وي، د يو مسجد ملا امام به وي او دى به د غټو غټو مسئلو پوښتنه ځيني کوي، يا داسي وي چي عالم خو وي، مګر دى دې ته نه ګوري چي دغه سړى د کومي عقيدې سړى دى؟ د داسي سړي په جواب سره ځيني وخت په عقيده او يا اعمالو کي خرابي پيدا کيږي، او ځيني وخت بيا په شک او تردد کي لويږي.

## د جائز او ناجائز د اختلاف راتللو په صورت کي څه کول په کار دي:

حکيم الامت د دغه سوال په جواب کي "چي د جائز او ناجائز د اختلاف راتللو په صورت کي بايد سړى څه وکړي داسي فرمايي:

که چيري تاسي په خپل ځان کي دومره لياقت نه وينئ چي دا معلومه کړى چي کوم عالم پر حق دى او کوم پر ناحقه دى او يا دومره وخت نه لرې چي په دې هکله تحقيق وکړې، نو په دې صورت کي ستاسي لپاره په کار دي چي پر احتياط عمل وکړئ.

احتياط دادى چي دا عقيده به لرئ چي الله اعلم يعني الله ﷻ تر ټولو ښه پوهيږي چي کومه خبره حق ده، يعني کومه خبره چي د الله ﷻ په نزد حق وي پر هغه موږ يقين لرو او پر زړه او سترګو يې منو، او عمل مو بايد دا وي په کوم شي کي چي د روا او ناروا اختلاف وي هغه بايد پرېږدئ يعني هغه کار بايد

عملي نه کړئ که چیري هغه کار حق ؤ، خو صرف ثواب به په لاس در نه شي، د ثواب کارونه خو لږ نه دي، په بل کار سره چي د اختلاف څخه وتلی وي ثواب لاسته راولئ، او که چیري ناحقه کار ؤ او تا وکړ، نو بیا خو د عذابه سره مخامخ کیږئ، دا سمه خبره ده چي په احتیاط کي به په ثواب کي کمي راشي، مګر د عذاب څخه خو به خلاص شئ.

له یوه اړخه که حکیم الامت تهانوي رحمه الله خلکو ته دا حکم کوي چي د هر مولوي او ملا څخه پوښتني مه کوئ، تر څو چي دا ښه درته معلومه نه وي چي دی د دې شي لیاقت لري او که نه. له بله اړخه بیا خلک د بې ځایه او بې فائدې پوښتنو څخه هم راګرځوي او ورته وایي چي هیڅکله په بې ځایه پوښتنو خپل ماغزه مه خرابوئ، او مه په بې ځایه فرضی پوښتنو کي خپل قیمتي وخت ضائع کوې، راشئ چي دده څخه د بې ځایه پوښتنو د کېدلو په هکله دده مبارک عکس العمل ووینو:

## د حکیم الامت اشرف علي تهانوي رحمه الله څخه سوالونه او دده له خوا حکیمانه جوابونه:

## د اصحاب کهف نومونه څه شی وه:

١- یو سړي د اصحاب کهف په باره کي د حکیم الامت څخه پوښتنه وکړل ویل د اصحاب کهف نومونه څه شی وه؟ ده په جواب کي ورته وویل: چي ته د هغوی نومونه څه کوې، د هغوی د اعمالو په باره کي پوښتنه وکړه، ته هم باید د اصحاب کهف د خلکو په ډول ځان جوړ کړې.



## یوه سړي چي خپلي ښځي ته یې طلاق ورکړی ؤ خو اوس پر دې کار بیرته پښېمانه ؤ نو غوښتل یې چي یوه حیله ورته جوړه کړي:

۲- یوه سړي خپلي ښځي ته طلاق ورکړی ؤ خو اوس یې غوښتل چي یوه حیله ورته جوړه کړي نو حکیم الامت ته یې وویل چي: ما خپلي ښځي ته د طلاق لفظ نه دی ویلی بلکي "تلاک" مي ورته وواېه یعني په تاء او په کوچني کاف، نو په دې سره خو به پر ما ښځه نه طلاقیږي؟

حکیم الامت په جواب کي ورته وفرمایل چي: د نکاح پر وخت خو هم تا د نکاح لفظ نه دی ویلی بلکي "نکاه" دي ویلی دی یعني په کوچنی هاء دي ویلی دی نو دا چي د لویه سره څخه ستاسي نکاح صحت نه ده پیدا کړې، نو اوس باید ستا څخه پر هغه اساس ښځه جلا شي.

## یو سړی د یوه هلک سره پاک محبت لري، غواړي چي دغه هلک صرف وده ته یوه مچه ورکړي نور بې کاره نیت نه لري آیا دا کار روا دی او که نه:

۳- حکیم الامت فرمایي چي ما ته یو سړي خط را واستاوه چي پکښي لیکلي یې وه ویل: دلته زموږ په سیمه کي یو هلک دی، دده سره یو سړی پاک

محبت لري او دغه سړی پر دغه هلک عاشق دی، دغه سړی د دغه هلک څخه نور د هیڅ شي غوښتنه نه کوي ، خو صرف دده څخه یوه مچه غواړي، هلک انکار کوي او ورته وايي چي ورشه د یو معتبر عالم څخه فتوی راوړه، که چیري یو معتبر عالم فتوی درکړه ، زه ومچي درکولو ته تیار یم، دغه سړی قسم اخلي چي زه د دې هلک سره پاک محبت لرم، د مچي اخیستلو څخه ماسېوا بله هیڅ ناروا اراده په زړه کي نه لرم، نو که چیري دغه هلک مچه ورنه کړي د دغه سړي د مرګ بېره ده یعني امکان لري چي دغه سړی دي مړ شي، نو تاسي فتوی ورکړئ چي دغه سړی د مرګ څخه وژغورل شي.

حکیم الامت فرمایي چي ما په جواب کي ورته ولیکل چي دغه راز محبت هیڅکله هم نه شي پاک کېدای او د داسي مردار خورو لپاره مرګ بهتر دی، ښه دی چي دا مردار خور مړ شي. و افرین دي پر دغه هلک وي چي انکار يې کړی دی او بله خبره داده چي لغړزني هلکان باید د داسي مردار خورو او خبیث النفس خلکو د ناستي ولاړي څخه بیخي په کلکه راوګرځي.

## د یو سړي دا پوښتنه چي ویل کارګه حلال دی او که نه:

۴- حکیم الامت فرمایي چي یو سړي زما څخه پوښتنه وکړل ویل کارګه حلال دی او که نه؟ ما په جواب کي ورته وویل: چي اول دا راته ووایه چي آیا ته یې د خوراک اراده لرې چي دا پوښتنه درته پیدا شوې ده او که نه؟ ده راته وویل: چي نه ، صاحب! کارګه به ولي خورم، ما ورته وویل: چي د



خوړلو اراده يې نه لرې، نو بیا پوښتنه ولي کوې، دا خو فروعي مسئله ده، د اصولو او عقایدو مسئله نه ده، چي د قیامت په ورځ به ستا څخه پوښتنه کېږي چي په دې هکله تا څه عقیده درلوده، وروره! دا ډول پوښتني بیخي ډېري دي، په دې ډول خبرو خپل سر مه خوږوه، داسي خبري زده کړه چي تا ته په ښه درځي او د سبا ورځي لپاره کار درکړي، که چیري ته په دا ډول بې فائدې پوښتنو او جوابونو مصروف شې، نو به نه یوازي دا ډول پوښتني پای ته ونه رسوې او له بله اړخه به دي خپل ماغزه هم په بې ځایه خبرو خوړلي وي او د اصلي خبرو د زده کړي لپاره به ستړی شوی يې او بالاخر د مقصودي خبرو د حاصلولو څخه به بې برخي پاته شوی يې، چي دا ډېر غټ نقصان دی.

حکیم الامت د داسي سوالونو جوابونه ځکه نه ورکول چي خلک باید د بې ځایه سوالونو او جوابونو څخه راوګرځي او خپل قیمتي وخت بې فائدې مصرف نه کړي، خلکو ته به يې تل ویل چي وخت ډېر قیمتي دی باید عبث او بې ځایه يې تېر نه کړئ او نه په بې ځایه فالتو خبرو او بې ځایه سوالونو خپل دماغ خراب کړئ.

## په امریکا کي د یوه سړي دا اعلان چي زه دوه زړونه لرم:

۵- حکیم الامت فرمایي چي په امریکا کي یوه سړي اعلان کړی ؤ، چي زه دوه زړونه لرم، ډېرو خلکو دده دې خبري څخه انکار وکړی، په ټوله نړۍ کي غال مغال جوړ شو، خلکو په دې هکله مختلفو ځایونو ته د دې سوال په هکله

خطونه ولېږل ما ته هم په دې باره کې سوال راغی، خلکو خو ځکه ددې واقعې انکار وکړی چې د قرآن شریف د سورة الاحزاب په څلورم آیت کې راغلي دي:

مَاجَعَلَ اللّٰهُ لِرَجُلٍ مِّنْ قَلْبَيْنِ فِيْ جَوْفِهٖ. **(سورة الاحزاب آیت ۴)**

**ترجمه**: نه دي پیدا کړي الله ﷻ لپاره د هیڅ سړي دوه زړونه په دننه دده کې.

د خلکو پوښتنه دا وه چې ددغه امریکایي دعوه چې زما په سینه کې دوه زړونه دي، ددغه آیت سره ټکر خوري.

حکیم الامت په دې هکله دوه جوابونه ویلي دي چې یو جواب پخپله دده هم ډېر خوښ دی او وایي چې دا جواب یې ډېر موزون او بېخکې جواب دی، خو دا چې هغه جواب یو څه اوږد دی او تفصیل ته ضرورت لري دلته د ځای د لږوالي له وجې زه فقیر ابوالمختار محمد عبدالرؤف حقیار حنفي دیوبندي معذورت غواړم او نه یې رانقلوم، بلکې هغه لومړی جواب چې حکیم الامت په دې هکله فرمایلی دی او یو څه لنډ جواب دی د هغه رانقلول مناسب بولم هغه دا دی:

**په قرآن شریف کې خو دغه واقعه د ماضي په لفظ سره راغلې ده او ددې څخه مراد دادی چې د وحې د نزول تر وخته پورې داسې نه دي شوي یعني د وحې د نزول تر وخته هیڅ سړي ته دوه زړونه نه دي ورکول شوي، نو ددې څخه خو د اینده زمانې نفي نه لازمیږي.**



او که غواړئ چې په دې هکله د حکیم الامت دوهم جواب چې دی یې ډېر ښه جواب بولي وګورئ نو دتحفة العلماء د دوهم جلد و **۲۱۶** صفحې ته مخ ورښکاره کړئ، د هغه جواب په آخیر کې حکیم الامت لیکي چې بې له ضرورته ددې واقعې تکذیب او د امریکایي ددې خبرې څخه انکار کول او دده دا خبره درواغ ګڼل زما په نزد صحیح خبره نه ده.

## د یوه سړي دا پوښتنه چې آیا ما ته د خپل ځان اصلاح بهتره ده او که زما د اهل ؤ عیال:

۶- حکیم الامت فرمایي چې زما څخه یو چا یو عجیب او بې ځایه سوال وکړی راته ویې ویل چې زما لپاره زما د ځان اصلاح بهتره ده او که زما د اهل ؤ عیال؟

ما په جواب کې ورته وویل: چې کلیات لیکل او سوال کول د اصولو خلاف کار دی، ته باید جزئیات بیان کړې یعنې خپل حال هم ووایه چې ته څه ډول اصلاح ته ضرورت لرې او د کور او عیال حال دې هم ووایه چې هغه بیا وڅه ډول اصلاح ته ضرورت لري، وروسته به زه وتاته په دې هکله جواب درکړم.

## د یو سړي دا پوښتنه چې سود ولې حرام دی:

۷- حکیم الامت فرمایي چې زما څخه یو وخت یو سړي پوښتنه وکړه ویل سود ولې حرام دی؟ ما ورته وویل: چې سود ځکه حرام دی چې الله ﷻ حرام

بللی دی، دغه سړي راته وویل چې الله ﷻ ولې حرام کړی دی؟
ما ورته وویل: چې په هغه وخت کې زه په مشوره کې نه وم ورسره شریک چې د سود د حراموالي سبب مې ځیني پوښتلی وای او که ورسره شریک شاید دا یې راته ویلي وای چې پر مسلمانانو کله ناکله مفلسي هم راځي نو باید تر خوړ ګوته ونه نیول شي، یا یې شاید بل څه راته ویلي وای، مطلب دادی چې نه زه دده سره په مشوره کې شریک وم او نه مې پوښتنه ورڅخه کړې ده.

ما چې کله دغه سړي ته دغه خبره وکړه، هغه راته وویل چې نه، دا خو سمه خبره نه ده، ځکه چې د خدای ﷻ یو کار هم بې حکمته نه دی، ما ورته وویل چې هو! حکمت خو ضرور شته، خو زه یې د بیانولو څخه معذوره یم، ځکه چې هغه حکمت ستا په فکر کې نه راځي یعني که زه د سود د حراموالي حکمت درته ووایم، نو ستا سر نه په خلاصیږي.

ده راته وویل چې ته خو یې راته ووایه دا بیا په ما پوري اړه لري که زما سر په خلاصیږي او که نه، ما ورته وویل: چې زما سره داسي فالتو دماغ نشته چې درې ساعته دي تا ته ګډ شم او هغه دې هم ستا سر په خلاص نه شي، مګر هو ددې یو صورت شته هغه دادی چې ته ولاړ شه یو پوه او هوښیار طالب العلم ما ته راوله چې کم ازکم هدایه یې ویلې وي، هغه به زما څخه دغه پوښتنه وکړي او زه به د سود د حراموالي حکمت ورته ووایم، ته به یې هم واورې.

دغه سړي راته وویل چې ددې کار ګټه څه شی ده پوښتنه ما درڅخه کړې ده او جواب یې خامخا ته د یو طالب العلم په مخکې راکوې؟ ما ورته وویل: په



دي کې یو ګټه داده چې زما وخت به نه ضایع کیږي یعني که ته په پوه نه شې نو هغه طالب العلم خو به په پوه شي او بله ګټه یې داده چې صحیح مخاطب به ستا په مخکې وي هغه وخت به تا ته دا معلومه شي چې رښتیا هم زه په دغو حکمتونو د پوهېدلو قابل یم او که نه.

## د یو سړي دا سوال چې د کافر ښځه ولې سود اخیستل حرام دي:

حکیم الامت وایي چې زما څخه یو سړي پوښتنه وکړل چې د کافر ښځه ولې سود اخیستل حرام دي؟ ما ورته وویل: چې د کافري ښځې سره زنا کول ولې حرام دي؟

د افسوس خبره ده چې نن سبا د خلکو فکر داسې جوړ شوی دی، غواړي چې د دوی د پوښتنې جواب د دوی د طبیعت موافق ورکول شي، هغه که صحیح وي او که نه، او ځیني هغه خلک چې ځان ته تعلیم یافته او ریفارمر وایي هغه بیا بیخي پوښتنه نه کوي، بلکې د خپله ځانه علتونه او حکمتونه راباسي، ته به وایې چې دین د دوی د کور قانون دی، څنګه چې یې زړه ورته ووایي هغسې یې جوړولای شي.

د مثال په توګه یو سړي د زنا او یوې ښځې ته د څو مړونو د حراموالي دا علت را ایستلی دی چې په زنا سره د نسب اختلاط او ګډوالی راځي یعني که څو نفره د یوې ښځې سره جماع وکړي او بیا یې حمل وشي نو امکان لري چې هر یو دې د دوی څخه د خپل نسب دعوه وکړي، یو به وایي چې دغه کوچنی

زما دی او بل به وایي چي زما دی، نو په دې صورت کي د دوی تر منځ د سخت جنګ او جدال د پیښېدلو امکان شته او دا هم امکان لري چي هر یو دې د دغه کوچني څخه انکار وکړي یعني یو به وایي چي دغه کوچنی زما نه دی او بل به وایي چي زما نه دی، نو په دې صورت کي به دغه ښځه او دغه کوچنی په ډېر مصیبت کي اخته شي.

نو اوس زه ستاسي څخه پوښتنه کوم چي که دغه خلک یو داسي تدبیر جوړ کړي چي دا ډول جنګ او جنجال رانه شي د مثال په توګه د کوچني د نه پیدا کېدو دواوي او داروګان استعمال کړي، یا یوه ښځه د سپین سرتوب وهغې درجې ته رسېدلې وي چي کوچنی یې نه کیږي، یا مثلاً د دغو زناکارانو تر منځ یو دا ډول محبت او ورورګلوي موجوده وي چي د هیڅ ډول جنګ او جنجال احتمال موجود نه وي، نو په دې صورت کي خو د زنا د روا والي خبره رامنځ ته کیږي، ځکه چي په دې صورت کي خو هغه علت چي تاسي یاد کړی دی چي د جنګ او جنجال راتګ دی له منځه تللی دی، دلته د زنا په کولو کي څه قباحت شته؟ نو اوس تاسي ووایاست آیا په دې صورت کي زنا جائز ده؟.

نه وروره! هیڅکله زنا نه ده جائز، که څه هم هغه علت چي تاسو ښودلی دی په دغه صورت کي خو له منځه تللی دی.

"د دې بحث څخه مطلب دا دی چي هر سړی دا حق نه لري چي د ځانه د شیانو علتونه او حکمتونه راوباسي، که نه نو ته به وویني چي نه به حلال پر خپل ځای پاته شي او نه به حرام".



# د یو سړي دا پوښتنه چي ولې پنځه وخته لمونځونه فرض شوي دي:

۸- حکیم الامت لیکي چي زما څخه یوه سړي پوښتنه وکړل ویل ولې پنځه لمونځونه فرض شوي دي؟ ما ورته وویل: چي ستا پزه ولې ستا پر مخ جوړه شوې ده، ولې پر ښخ نه ده جوړه شوې؟

هغه په جواب کي راته وویل: که چیري پر ښخ جوړه شوې وای نو انسان بد شکله معلومېدی، ما ورته وویل چي دا بیخي غلطه خبره ده ځکه چي که چیري د ټولو خلکو پزي پر ښخ وای، نو هیڅکله به بد نه معلومېدلای، ما چي دغه خبره ورته وکړل، بس دغه سړی چپ شو نور ږغ یې ونه کړ.

# د یو سړي دا پوښتنه چي آیا آدم عليه السلام مخکي وفات شوی دی او که حضرت بي بي حوا:

حکیم الامت فرمایي چي زما څخه یو سړي پوښتنه وکړل چي آیا حضرت آدم عليه السلام مخکي وفات شوی دی او که حضرت بي بي حوا او د دوی دواړو د انتقال په منځ کي څومره موده تېره شوې ده؟

حکیم الامت فرمایي چي (ما ورته وخندل او ورته ومي ویل چي) صاحبه د دې خبري بیخي ډېره زمانه کیږي خوا مه بده وه، اوس زما د یاده وتلې ده.

## د یو سړي دا پوښتنه چي آیا د جناب رسول الله ﷺ مور او پلار په کفر او که پر اسلام مړه شوي دي:

حکیم الامت ته یو وخت یو سړی راغلی او ځیني ویې پوښتل چي آیا د جناب رسول الله ﷺ د والدینو شریفینو په هکله ستا څه خیال دی؟

ددې پوښتني په اورېدلو سره حکیم الامت ددغه سړي څخه وپوښتل چي لومړی تاسي دا راته ووایاست چي آیا دغه پوښتنه د عقائدو څخه ده او آیا دغه پوښتنه به ستا څخه د مرګ، قبر او یا آخرت په ورځ کیږي او که نه چي ستا دومره سودا په بنده ده او فکر دي په خراب دی او د خپل کار او کسب څخه یې ایستلی یې؟

هغه سړي په جواب کي ورته وویل چي نه، صاحب دا پوښتنه نه د عقائدو څخه ده او نه هم زما څخه په اخرت کي په دې هکله پوښتنه کیږي.

وروسته حکیم الامت ورڅخه وپوښتل چي ښه! چي داسي ده نو اوس دا راته ووایه چي آیا د لمانځه په هکله ستا څخه پوښتنه کیږي او که نه؟

هغه سړي ورته وویل چي هو، د لمانځه په هکله خو ضرور پوښتنه راڅخه کیږي، وروسته حکیم الامت ورته وویل چي ښه دا درمعلومه ده چي د لمانځه په هکله په آخرت کي پوښتنه راڅخه کیږي نو اوس دا راته ووایه چي په لمانځه کي فرائض، واجبات، سنتونه او مستحبات څو او کوم کوم دي؟

دهغه بې چاره ددې خبري جواب نه ؤ زده نو چپ پاته شو، وروسته حکیم الامت



ورته وفرمایل چي ای زما ګرانه لالیه تر تا جار شم، بل وخت په داسي خبرو چي هیڅ ضروري نه وي خپل زړه مه خوره، لومړی هغه ضروري خبري چي تا ته په کار درځي زده کړه.

## د یو سړي دا پوښتنه چي د اوج بن عنق او حضرت موسی علیه السلام لکړي څومره اوږدې وې:

وحکیم الامت ته یو وخت یو سړی راغی او دا پوښتنه یې ځیني وکړل چي د اوج بن عنق او د حضرت موسی علیه السلام لکړي څومره اوږدې وې؟

حکیم الامت په جواب کي ورته وویل چي وروره! لکه څنګه چي دا سوال غیر ضروري دی، جواب یې هم غیر ضروري دی.

حکیم الامت به د یو غیر ضروري او اوپالتو سوال جواب نه ورکاوه او ډېر ځله به یې ورته ویل چي صاحبه ما ته ددې په هکله تحقیق او علم نشته، ولاړ شه د یو بل عالم څخه پوښتنه وکړه.

## یوې ښځي د خپل مېړه سر د خپل ورور پر غاړه کښېښاوه او د ورور سر یې د مېړه پر غاړه کښېښاوه، وروسته د فقیر د دعاء په برکت دواړه راژوندي شول:

حکیم الامت لیکي چي ډېر خلک بیا د ضروري سوالونو پر ځای په فرضي سوالونو کي اخته وي د مثال په توګه یوه ورځ یو سړی راغی او زما څخه یې پوښتنه وکړل ویل یو وخت یوه ښځه د خپل مېړه او خپل ورور سره په سفر یو

ځای ته روان وه، پر لاري يو سړي دغه دواړه خلک ووژل سرونه يې ځيني پرې کړل او وتښتېدی، دغي ښځي ژړل او ښکي يې بهېدلې او دغو مړو ته ناسته وه، په دې وخت کي يو فقير راغی، ښځه ورولاړه شول، وفقير ته يې زاری وکړې وويل ته يو څه وکړه فقير ورته وويل چي ورشه د دوی پر غاړو سرونه کښېږده، زه دعاء کوم چي دواړه راژوندي شي، ښځه ولاړه په غلطی سره يې د مېړه سر د خپل ورور پر سر او د ورور سر يې د خپل مېړه پر سر کښېښناوه، فقير دعاء وکړل هغه دواړه سړي راژوندي شول، نو اوس دغه ښځه د چا کيږي ځکه چي ددغو خلکو سرونه او بدنونه خو سره مخالفه دي؟ حکيم الامت فرمايي چي ما دغه سړي ته دده د پوښتني په هکله هيڅ جواب ورنه کړ او ورته ومي ويل چي داسي غلط فرضي سوالونه ولي کوې او په داسي بې ځايه پوښتنو خپل قيمتي وخت ولي ضائع کوې دا ښه کار نه دی، په بې ځايه فرضي سوالونو خپل دماغ مه خرابوه.

## د يو ضروري او غير ضروري سوال معيار:

حکيم الامت د ضروري او غير ضروري سوال معيار داسي بيان کړی دی:

کوم کلام چي غير ضروري وي په هغه سره په زړه کي کدورت پيدا کيږي او د ضروري شي معيار بيا دادی که چيري د هغه د پوښتني جواب ورنه کړل شي يو ضرر پر مرتب کيږي يعني د يوې داسي پوښتني صحيح جواب ورکول ضروري او لازمي دی چي په نه ورکولو سره يې يا د پوښتني کوونکي په عقيده کي خرابي راځي او يا يې په اعمالو کي فساد واقع کيږي او يا يې طبيعت خرابيږي او بيا يې د پوښتنو په مقابل کي نفرت پيدا کيږي.

**(الافاضات جلد۲ صفحه ۳۸)**



## د هر سوال جواب ورکول ولي نه دي ورکول په کار:

دا ځکه چي د هر خلک ددې قابل نه وي چي جواب دي په صحيح توګه د هغه په ذهن کي کښيني، نو ددې پر ځای چي دغه سړی په جواب پوه شي لا يې په ذهن کي تشويش زياتيږي، ځکه چي نن سبا په خلکو کي دا مرض پيدا شوی دی چي تر خپل منصب لوړي پوښتني کوي، مثلاً يو سړي يوه ورځ پوښتنه وکړل چي دا خبره ما ته په قرآن شريف کي راپيدا کړه چي په اوداسه کي د پښو پرېولل فرض دي، نو دا چي دا سوال د نحوي د علم سره تعلق لري، دی به څه ډول وکولای شي چي په دې خبره يې په اسانه سر خلاص شي.

ددې يو عقلي مثال داسي دی که چيري يو ناروغ د ډاکټر څخه پوښتنه وکړي چي په دغه فلانی دوا کي کوم شيان سره ګډ شوي دي او ددغي فلانی دوا اجزاء کوم شيان دي، ښکاره خبره ده چي ډاکتر به د ترکيب په اجزاوو پوهيږي، مګر ددې خبري جواب به دده تر منصب لوړ بولي، نو ددې وجي بايد د غير ضروري او بې ځايه پوښتني وکوونکي ته وويل شي چي زه په دې خبره علم نه لرم، يو بل ښه عالم ته ورشه چي ددې پوښتني جواب درکړي.

## د يو مفتي څخه د يوې ناجائزي او نامعقولي پوښتني کېدل:

تحفة العلماء ليکي که چيري د مفتي څخه يوه ناجائزه او نامعقوله پوښتنه وکړل شي، نو د حضرت ابن عمر ﷺ د حديث مطابق چي په بخاري شريف کي

راغلی دی دا په کار دي چي دده د خبري د جواب په بدل کي د يوې بلې خبري جواب ورکړل شي، په دې سره به دی هم نه خوابدی کېږي او معلومات به يې هم زيات شي او که چيري ورته وويل شي چي ستا سوال نامعقوله دی، داسي نه وي چي دده خوا بده شي او بل وخت د سوال کولو څخه يې زړه تور شي

## د يو سړي دا پوښتنه چي آيا ښځي لره هم د نارينه په شان ليک لوست روا دی:

زما ابوالمختار څخه يو وخت يو سړي يو عجيب ؤ غريب سوال وکړ، ويل آيا ښځي لره هم د نارينه په شان ليک لوست روا دی او که نه. ځکه چي زموږ په سيمه کي يو عالم دا فتوی ورکړل چي لوني مکتبونو او مدرسو ته مه لېږئ ولي چي د ښځو لپاره ليک لوست روا نه دی؟

ما په جواب کي ورته وويل چي صاحبه! ستا سوال داسي مثال لري لکه يو څوک چي ووايي چي آيا ښځي لره هم د نارينه پـه شان لمونځ کول روا دی که نه، دا ځکه چي علم هم د لمانځه په شان يو فرض کار دی. دا چي تـه وايې چي زموږ په سيمه کي يو عالم دا فتوی ورکړل چي د ښځو لپاره علم نه دی روا، ، دا عالم نه دی، بلکي يو احمق جاهل دی چي دا راز فتوی يې ورکړې ده، دغه سړی چي د علم او پوهي سره يې دښمني را اخيستې ده، بايد ښـه پـه اخلاص توبـه وکـاږي او د الله ﷻ څخـه بخښنه وغـواړي او د آينده لپـاره بايـد داسي غلطي فتوی ګـاني ورنـه کړي، اميـد دی چي الله ﷻ يې وبخښي ، ځکـه چي الله ﷻ ډېر بخښونکی او مهربان دی.

کفايت المفتی ليکي چي د ښځو د تعليم مسئله يوه داسي مسئله ده چي



ددې په فرضيت کي بيخي د هيڅ اختلاف ګنجايش نشته ځکه چي د اسلام په مقدس دين کي د علم تحصيل د نارينه او ښځو دواړو لپاره د اسلام د هغو غټو فرائضو د جملې څخه دي لکه چي فرمايي:

**در مسئله تعليم زنان اختلاف را نشايد كه ازبديهيات اسلام است خطابات افتراض تحصيل علوم و اوامر تفكر و تدبر در آيات نفسى وآفاقى مخصوص بذكور نيست وضرورت تنوربنور علم اختصاصى بمردان واقتصارى بصنفى نه دارد چه علم ازلوازم حيات نفس انسانى هست. (كفايت المفتى جلد۲ صفحه ۵۵)**

همدارنګه عمدة القاری ليکي: **ومنها ما قيل ما حكم المسلمات فى ذلك لانه ذكر جمع التذكير واجيب بان هذا من باب التغليب فإن المسلمات يدخلن فيه كما فى سائرالنصوص والمخاطبات.**

**(عمدة القارى باب من سلم المسلمون .... جلد اول صفحه ۱۳۳)**

د کفايت المفتی په دوهم جلد کي راغلي دي چي هر هغه انسان که نارينه وي او که ښځه چي د علم څخه برخمن نه وي ، هغه په حقيقت کي د انساني ژوند څخه بې برخي دی، دا ځکه چي الله ﷻ وعالم ته د ژوندي او جاهل ته د مړي مثال ورکړی دی لکه چي الله ﷻ په خپل لوی کتاب قرآن کي فرمايلي دي: **ومايستوى الاحياء ولا الاموات**، وروسته کفايت المفتی ليکي چي ډېرو غټو غټو صحابه ښځو د علم او پوهي د تحصيل لپاره بيخي ډېر مشکلات پر سر اخيستي وه لکه چي فرمايي: **انسانى مرد باشد يازن كه بهره از علم نه دارد درحقيقت ازحيات انسانيه حظى ندارد**

وازینجا است که حق تعالی شانه عالم را حی وجاهل را میت خوانده حیث قال: ومایستوی الاحیاء ولا الاموات. (سورة الفاطر آیت ۲۲)

رسول کریمﷺ فرمود: طلب العلم فریضة علی کل مسلم ومسلمة (اگر زیادت لفظ مسلمه که دراکثر طرق نیست بصحت نه رسد ثبوت حکم خلل نه پذیرد- زیراکه عموم خطابات شرعیه ذکور واناث راشامل است پس لفظ مسلم بمعنی صاحب اسلام ست مرد باشد یازن، چنانکه المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده ودیگر نصوص بمردان خصوصیتی نه دارد) صحابیات کبار برائی تحصیل علم اعتنائی بلیغ فرموده وصالحات سلف بتعلم علوم اهتمامی عظیم نموده. (کفایت المفتی جلد۲ صفحه ۵۶)

او جناب رسول اللهﷺ بیاد سنن ابن ماجه په دوهمه صفحه کي څه دا راز فرمايي: طلب العلم فريضة على كل مسلم ومسلمة. يعني د علم طلب پر هر مسلمان نر وي او که ښځي فرض دی.

همدا راز په کتاب الکسب چي تصنيف د حضرت امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله د خصوصي شاگرد حضرت امام محمد رحمه الله دی او شارح يې امام سرخسي رحمه الله دی چي د مبسوط مصنف دی د (۱۴۸) صفحې په حاشيه کي زياتوي: پر ژبو باندي د مسلمة لفظ جاري دی مگر دا د حديث يوه برخه نه ده.

او وريسي زياتوي: ددغه لفظ نه صحت دا معنا نه ورکوي چي گني پر ښځي تعليم نه دی فرض، بلکي مراد په نفي سره زياتو نه پر حديث نبوي ده، دا ښکاره خبره ده چي پر ښځه هم علم فرض دی: دا خللٌ فی عموم لفظ (علی کل مسلم)



ای علی کل منسب للاسلام فَیشمَلُ ذلک الرجلَ والمرأة فیما یلزمها او یطلب منها تعلُّمه. یعني په دغه لفظ سره چي علی کل مسلم هغه ټوک مراد دی چي مسلمان وي هغه که نر وي او که ښځه او په متن کي زياتوي: فَیُفتَرضُ التعلُّمُ والتعلیم جمیعا. یعني پخپله اوبل دواړوته تعليم فرض دی.

(کتاب الکسب تصنیف امام محمد رحمه الله صفحه ۱۴۹)

همدا رنگه د حدیثو مشهور کتاب تحفه العروس په (۴۷۸) صفحه کي ليکي چي دغه حُکم بعينه د ښځو لپاره هم دی.

همدا رنگه کفايت المفتی ليکي چي د ضروري علومو د تحصيل فرضيت او د مستحبه علومو د تحصيل استحباب او د مباحه علومو د اکتساب اباحت د ښځو لپاره د اعتراض ځای نه دی او د علم د تحصيل په مسئله کي د نارينه او ښځي تر منځ د شريعت له رويه هيڅ فرق نشته، يعني ټول هغه علوم چي نارينه يې حاصلولای شي، هغه ټول ښځه هم حاصلولای شي لکه چي فرمايي:

**پس افتراض تحصیل علوم ضروریه واستحباب اکتساب علوم مستحبه واباحت اخذ علوم مباحه برائی زنان محل ترددنیست ودلیلی فارق میان مردان وزنان درین باب در شرعیت مقدسه وجود ندارد.**

(کفایت المفتی جلد۲ صفحه ۵۶)

او ردالمحتار خو د نارينه او ښځي دواړو لپاره د طب، ډاکټري او حساب په شان نور علوم په فرض کفايي کي راولي لکه چي فرمايي:

وفرض علی کل مکلف ومکلفة بعد تعلمه علم الدین والهدایة علم الوضوء والغسل (قوله فرض کفایه) واما فرض الکفایة من العلم فهو کل علم لایستغنی

عنه فی قوام امورالدنیا کالطب والحساب والنحو الخ .

**(ردالمحتارمطلب فی فرض الکفایه وفرض العین جلد اول صفحه ۴۲)**

همدارنګه امام غزالي علم الطب فرض کفایي ګڼلی لکه چي فرمایي: وقال الغزالي فی الاحیاء انه (علم الطب) فرض کفایة. **(الطریقة المحمدیة صفحه ۱۰۴)**

**پوښتنه**: ځیني خلک وایي چي انجونو ته باید صرف قرآن شریف وروښوول شي، نور لیک لوست د دوی لپاره مناسب نه دی دا ځکه چي د ډېرو غټو مکتبونو څخه ډېر ناښایسته خبرونه اوریدل کیږي؟ همدغه سوال په کفایت المفتی کي راغلی دی او جواب یې په لاندي ډول خپله کفایت المفتی ورکړی دی:

**جواب**: د انجونو لپاره لیک او نویشته او همدارنګه بې له شرعي علومو نور علوم لکه حساب، نحو یعني د ادبیاتو او ژبپوهني علم، کسب او کمال په ورزده کولو کي هیڅ پروا نشته، ټول روا دي، مګر د پردې لحاظ کول ضروري دی.

**(کفایت المفتی جلد۲ صفحه ۶۹)**

همدارنګه دا مبارک حدیث دی چي فرمایي: عن الشفاء بنت عبدالله قالت دخل علیّ النبیﷺ وانا عند حفصة فقال لی الاتعلمین هذه رقیة النملة کما علمتها الکتابة. **(سنن ابی داؤد،باب ماجاء فی الرقی،جلد۲ صفحه ۱۸۶)**

قال الشیخ فی بذل المجهود، فیه دلیل علی جواز کتابة النساء واما حدیث لاتعلموهن الکتابة فمحمول علی من یخشی علیها الفساد-

**(بذل المجهود فی حل سنن ابی داؤد جلد۵ صفحه ۱۸)**



په دې کي شك نشته چي مور یوه مدرسه ده، کله چي هغه مهذبه وګرځول شي نو د هغې په تهذیب سره به یو ملت مهذب کړل شي چي هغه به د ښو اُصولو لرونکی وي، نو ځکه د حدیثو د مشهور کتاب المدخل د لومړي جلد په (۱۹۹) صفحه کي راغلي دي: چي که مېړه اجازه نه ورکول نو د علم د زده کړي لپاره بې له مېړه اجازې څخه هم وتلای شي.

ډېر وګړي بیا چي کله پر ښځه د تعلیم فرضیت هم ومني خو بیا د خپلي ګېډې څخه دا نظر ورکوي چي تعلیم پخپل کور کي فرض دی د کور څخه وتل ورته په کار نه دي ، نو لومړی به د هند د علماوو د مکتوب د متن وژباړي ته سر وروښکاره کړو علماء هند د دارالعلوم دیوبند څخه په دې هکله یوه غټه څو ورقیزه فتوی جاري کړې ده په خپله دغه فتوا کي یې چي د افغانستان د وزارت معارف پر نامه یې په فارسي ژبه لیکلې ده او ددې فتوی ټول متن په کفایت المفتی کي سره د خپلي ژباړي رانقل شوی دی ددې فتوی په یوه برخه کي څه دا راز راغلي دي:

ښځینه مدرسې خلاصول او جاري کول او انجوني د تعلیم لپاره هلته سره را یو ځای کېدل او هلته ددوی د صنف مناسب علوم او فنون ورښودل او کتابت ورزده کول دغه ټوله شیان د شریعت مطابق دي او هم مستحسن دي ځکه ددې مبنا د تعلم او تعلیم تنظیم او تشکیل دی ، د تعلیم لپاره د ښځو یو ځای کېدل د احادیثو څخه ثابت دي او ددې وجي څخه امام بخاري صاحبؒ یو ځانګړی باب تر دغه عنوان لاندي تړلی دی چي "هل یجعل للنساء یوماً علی حدة" چي تاسي یې د صحیح البخاري په لومړي جلد صفحه ۲۰ کي کتلای شي او تر دغه باب لاندي یې هغه حدیثونه راوړي دي د کومو څخه چي د تحصیل د علم لپاره په یو ځای کي د ښځو اجتماع او یو ځای والی ثابتیږي او تجربه شاهده ده په اجتماعي ډول سره چي تعلیم څومره مفید دی هیڅکله په انفرادي توګه سره دومره مفید نه •

شي کېدای. (**کفايت المفتي جلد۲، صفحه ۵۹**).

همدغه مکتوب لږ وړاندي ليکي : دا چي په قرون اولی کي د ښځينه مدرسو تشکيل نه وو نو دا څه پروا نه لري، ځکه چي د هلکانو مکتبونه او مدرسې هم په ماضي زمانه کي نه وي ، بيا هم د ټوله محمدي امت ټوله علماء ددې پرجواز قائل دي او د نارينه وو په مدرسو کي درس او تدريس شروع دی. دا چي د مکتبونو او مدرسو کوم طرز او کيفيت په کار دی او څه ډول تعليمي نصاب ورته په کار دی او د دوی د اخلاقو او اعمالو څومره څارنه په کار ده او د نارينه او ښځينه د ګډ تعليم څومره تاوانونه دي په دې هکله پوره بحث زما د ابوالمختار په کتاب الاخلاق نومي کتاب کي کتلای شي

## د اجتهاد بيان:

د اجتهاد اجازت د قرآن او حديث څخه ثابت دی، ځکه چي که چيري د اجتهاد اجازت نه وای، نو په قرآن او حديث کي به د کلياتو پر ځای جزئيات ذکر وای، د کلياتو ذکر کېدل او د جزئياتو ډېر نه ذکر کېدل پخپله د اجتهاد د اجازت دليل دی. او که اجتهاد منع وبلل شي، نو بيا دا راته ووایاست چي په داسي صورت کي د جزئياتو حکم څنګه معلومېدلای شي، بايد ووايم چي دغه دليل پر منکرينو باندي ډېر غټ حجت دی، مګر ډېر د تعجب خبره ده چي دا خلک ولي د داسي صريحو او روښانو مقدمو د نتيجې څخه انکار کوي.

دا چي الله ﷻ فرمايلي دي چي ستاسي دين کامل او پوره شو، نو دا خو په کار دي چي داسي صورت هيڅکله منځ ته رانه شي چي د هغه حکم دي په شريعت کي نه وي موجود او دا خو ښکاره خبره ده چي منصوصه احکام ډېر لږ دي، نو د دين د تکميل صحيحوالی بې له دې چي د قياس او استنباط اجازه ورکړل شي، بل په څه



شي کېدلای شي ، دا ضروري ده چي پر منصوصه احکامو دي غير منصوصه احکام قياس کړل شي او د هغوی حکم دي معلوم کړل شي.

د اجتهاد طريقه او صورت دادی چي پر غير منصوصه وو باندي د منصوصه حکم جاري کيږي، د هغه علت په وجه چي په دواړو کي موجود دی او د دوی دواړو علت سره مشترک دی، نو په دې صورت کي د منصوص حکم و غير منصوص ته ور متعدي کيږي او دا ډول د غير منصوصه جزئياتو حکم معلوميږي. مطلب دادی چي پر غير منصوص باندي د منصوص حکم جاري کيږي د هغه علت په وجه چي په دواړو کي موجود دی. (**تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۲۶۶**)

## اجتهاد اوس هم باقي دی:

حکيم الامت فرمايي چي اوس هم په هغو جزئياتو کي د اجتهاد اجازه شته چي مدون شوي نه وي، مګر په غير مدونه جزئياتو کي هم هر سړي ته د اجتهاد کولو اجازه نشته، تر هغو چي دی ددې کار اهل نه وي ګرځېدلی.

(**تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۲۶۶**)

## جناب رسول الله ﷺ هم اجتهاد فرمايه:

جناب محمد رسول الله ﷺ هم اجتهاد فرمايه ، مګر دده مبارک اجتهاد د وحې په حکم کي ؤ ، مګر د کوم اجتهاد پاته کېدل چي به مطلب نه وه، هغه به د وحې په ذريعه منسوخه کېدی او که به منسوخه نه شو ، هغه به هم وحې منصوص جوړ شو.

## د مجتهد اقسام:

مجتهد پر دوه قسمه دی يو مطلق دی چي د نصوصو څخه اصول استنباطوي،

بل مقید دی چې د دغو اصولو څخه فروع استنباطوي یعني د اصول اولیه وو څخه د اصول ثانویه وو استنباط کولای شي ، باید ووایم چې اصول اولیه اکثره وخت نه مانیږي ، مګر اصول ثانویه د بر خله مانیږي (تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۲۶۷)

## د ذوق اجتهادي د معتبرېدلو دلیل:

ذوق اجتهادي ته پخپله جناب رسول الله ﷺ اعتبار ورکړی دی لکه جناب رسول الله ﷺ چې صحابه کرام ﷺ یو ځای ته په یو کار پسې واستول او دوی ته یې هدایت وکړ چې د ماښیګر لمونځ به په فلاني ځای کې کوئ. نو صحابه کرام هم روان شول منزل پر منزل تر دې چې هغه ځای ته لا نه وه رسېدلي چې جناب رسول الله ﷺ ورښودلی ؤ، په دې وخت کې د ماښیګر لمونځ پر قضاء کېدو شو، نو د صحابه کرامو ﷺ په منځ کې اختلاف پیدا شو او پر دوو ډلو ووېشل شول. یوې ډلې وویل چې جناب رسول الله ﷺ خو موږ ته امر وکړ چې د ماښیګر لمونځ به هغه فلاني ځای ته رسوئ، او هلته به یې کوئ، نو که اوس لمونځ قضاء کیږي هم ، موږ به یې هغه ځای ته رسوو چې جناب رسول الله ﷺ را ته ویلي دي

بلې ډلې بیا وویل چې نه، د ماښیګر لمونځ موږ دلته کوو بیا خو . ځکه چې د جناب رسول الله ﷺ مطلب خو دا ؤ چې د لمر لوېدو څخه مخکې به تاسې هغه ځای ته ورسیږئ او هلته به د ماښیګر لمونځ وکړئ، نو دا چې موږ په دې ونه توانېدو چې د لمر لوېدو څخه مخکې او هغه ځای ته ورسیږو او هلته دې د ماښیګر لمونځ وکړو، نو دا چې اوس دلته لمونځ پر قضاء کېدو دی باید دلته د ماښیګر لمونځ وکړو ، نو هغه ؤ چې ځینې صحابه کرامو ﷺ دلته لمونځ وکړ او ځینو بیا د ماښیګر لمونځ قضاء کړ او څه وخت چې هغه ځای ته ورسېدل چې جناب رسول الله ﷺ ورښودلی ؤ نو هلته یې د ماښیګر لمونځ وکړ



څه موده وروسته دغه قصه د جناب رسول الله ﷺ ته وړاندې شوه، نو جناب رسول الله ﷺ دواړې ډلې پر حق وبللې او د یوې ډلې رد یې هم ونه کړ، ځکه چې دواړو ډلو خو د خپل خپل فکر او اجتهاد مطابق د جناب رسول الله ﷺ په حکم باندې عمل وکړ، که څه هم چې د دوی په منځ کې خو د جواز او عدم جواز یعني روا او ناروا اختلاف هم ؤ، ځکه چې یوې ډلې خو دلته لمونځ روا باله او بلې ډلې بیا دلته روا نه باله، یوې ډلې دلته لمونځ وکړ او بلې ډلې د ماښیګر لمونځ قضاء کړ، هغه مطلوبه ځای ته چې ورسېدل چې جناب رسول الله ﷺ ورښودلی ؤ هلته یې د ماښیګر لمونځ اداء کړ

## د ذوق اجتهادي یو مثال:

موږ چې د متقدمینو د کوم ذوق اثبات کوو دا هغه ذوق دی چې پر هغه باندې د اجتهاد مدار دی، زه د دې په هکله یو مثال وړاندې کوم هغه دا دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي **لایبولن احدکم فی الماء الراکد** یعني په ولاړو اوبو کې بولې کول نه دي په کار ، منصوص خو همدومره دي، اوس پوښتنه دا ده که چیرې بولې ونه کړل شي، بلکې بولې ورواچول شي یعني بولې په یو لوښي کې یو ځوک وکړي وروسته یې د ولاړو اوبو ته ورواچوي آیا د دې څه حکم دی؟

نو اوس دلته دوې ډلې موجودې دي یوه ډله یې اهل ظواهر نومیږي چې لفظ پرست دي او د ذوق څخه کار نه اخلي لکه داؤد ظاهري هغه وایي چې په حدیث کې په ولاړو اوبو کې د بولو کولو څخه منع راغلې ده، که چیرې بل ځای بولې وکړل شي بیا وروسته اوبو ته ورواچول شي دا پروا نه لري، ځکه چې جناب رسول الله ﷺ دا فرمایلي دي چې بولې مه کوئ، دا یې نه دي فرمایلي چې بولې مه وراچوئ

دوهمه ډله د مجتهدینو ده ،هغه بیا وایي چې نه په ولاړو اوبو کې بولې کول روا

دي او نه بولي وراچول روا دي، ځکه چي بولي پکښي كول او بولي وراچول دواړه په علت کي سره برابر دي او ددې علت تنظيف ښودل شوی دی، مګر ددغو جمهورو سره دليل بې له ذوقه بل شی نشته، ذوق وايي چي جناب رسول الله ﷺ د نظافت او پاکوالي قائمول فرمايلي دي، نو په دې کي خو دواړه کارونه برابر دي، ځکه چي په ولاړو اوبو کي په بولو کولو سره او همدارنګه په بولو وراچولو يعني دواړو کارونو سره نظافت له منځه ځي.

مطلب دادی چي اصل شی ذوق دی، خلک د الفاظو خادمان دي، مګر اصل علم خو همدا شیَ دی. (**احسن العزيز**)

## د څلورمي صدۍ وروسته د اجتهاد مطلق د دروازې د بندېدلو په هکله يو تکويني مصلحت:

غير مقلدين حضرات وايي چي آيا و احنافو ته د اجتهاد د بندېدلو په هکله وحې راغلې او که څه وجه ده چي دوی وايي د څلورمي صدۍ وروسته د اجتهاد دروازه بنده شوه؟

موږ ورته وايو چي هو ستاسي خبره صحيح ده، موږ ته نه وحې راغلې دي او نه په دې هکله کوم نص موجود دی، مګر ستاسي د خبري جواب دادی چي اوس د اجتهاد کولو ضرورت څه شی دی؟ ځکه چي مجتهدينو مبارکانو اجتهاد کړی دی، اصول يې وضع کړي دي، اوس ددې څه ضرورت شته چي موږ بيا اجتهاد کوو او د سره اصول وضع کوو.

دا يوه قدرتي قاعده ده په کوم وخت کي چي د يو شي ضرورت پېښ شوی دی الله ﷻ هغه شی پيدا کړی دی، نو په کوم وخت کي چي د حديثو د تدوين



او ترتيب ضرورت ؤ، الله ﷻ غټ غټ ډېر قوي حافظه درلودونکي خلک پيدا کړل، د مثال په توګه په هغه زمانه کي الله ﷻ حضرت امام بخاري رحمه الله او حضرت امام مسلم رحمه الله پيدا کړل، تاسي به په کتابونو کي ليدلي وي چي امام بخاري رحمه الله او امام مسلم رحمه الله ته څومره قوي حافظه ورکول شوې وه، څومره حديثونه يې د خپلو خپلو سندونو سره يو ځای په ياد وه، يقيناً ددغو حضراتو حافظه د عقله څخه وتلې خبره وه، که څوک د دوی د ژوند حالات، د حديثو د تدوين او ترتيب کيفيت، د دوی تقوی او پرهېزګاري او په دې هکله د دوی کوښښونه او ستړياوي، او همدارنګه د دوی وذهانت او تېزفکرۍ ته نظر وکړي، نو هر سړی به ګوته په غاښ پاته شي، ښه نو چي داسي ده اوس ته راشه په دې زمانه کي دا ډول خلک پيدا کړه امکان نه لري چي پيدا دې کړي، ځکه چي دا د هغه وخت ضرورت ؤ، همدارنګه څه ډول چي د دين د تدوين او ترتيب ضرورت ؤ، نو په هغه وخت کي اجتهادي قوت په ځينو خلکو کي په لوړه پېمانه موجود شو، اوس چي دين مدون شوی دی، اصول او قواعد وضع شوي دي، نو ځکه اوس د اجتهاد دومره ضرورت نشته، مګر هو! څومره اندازه چي اوس هم د اجتهاد ضرورت شته، هغومره اجتهادي قوت اوس هم باقي دی يعني د مجتهدينو تر اصولو لاندي د نوو جزئياتو استخراج کول.

## د څلورمي صدۍ وروسته د اجتهاد د بندېدلو مطلب:

حکيم الامت فرمايي چي مولوي عبدالعليم صاحب زما څخه پوښتنه وکړل ويل ددې خبري څه معنی ده چي د څلورمي صدۍ وروسته اجتهاد بند شوی دی، حال دادی چي اوس هم ډېر نوي واقعات منځ ته راځي؟ ما ورته وويل چي ددې څخه اجتهاد مطلق مراد دی يعني د قواعدو مقررول يا په بل عبارت د اصولو ټاکل، دا کار نن سبا د هيچا لپاره روا نه دی، ځکه چي اوس ددې کار ضرورت نشته

البته پر دغو قواعدو باندي چي مجتهدينو حضراتو مدون يا ترتيب کړي دي، د جزئياتو انطباق روا دی، او دا ډول خلک په هره زمانه کي پيدا کيږي او که دا ډول اجتهاد هم بند کړل شي نو بيا خو شريعت ته کامل نه شي ويل کېدای، او د منصوصه جزئياتو استخراج ځکه روا نه دی چي مخکني او سلف علماء په علم کي، په فراست کي، په تقوی کي، په زهد کي، په جهد فی الدين کي مطلب په ټولو خبرو کي زموږ څخه بيخي لوړ وه، نو له دې وجي د دوی اجتهاد زموږ تر اجتهاد مقدم دی، او پاته چي غير منصوصه جزئيات شوه، په هغوی کي اجتهاد کول او بيا په هغوی عمل کول روا دي.

## څه ډول اجتهاد تر اوسه پوري باقي دی:

دا ډول اجتهاد هم نه دی ختم شوی چي په دوو روايتونو کي د دليل د قوي والي په وجه يوه ته ترجيح ورکول شي، ځکه کوم اجتهاد چي ختم شوی دی دا هغه اجتهاد دی چي اصول وضع کړل شي، يو چا داسي پوښتنه وکړل چي ځيني داسي اصول هم شته چي د مجتهدينو امامانو څخه نه وي رانقل شوي، بلکي متاخرينو وضع کړي وي د هغوی څه حکم دی؟

حکيم الامت ورته وفرمايل چي هو دا صحيح خبره ده! ځيني داسي اصول ضرور شته چي مجتهدينو امامانو نه دي وضع کړي، بلکي متاخرينو حضراتو وضع کړي دي، مګر ددې څخه ومتاخرينو ته (په هرڅه کي د لومړي قسم اجتهاد) د جواز ثبوت په لاس نه راځي ځکه چي "النادر کالمعدوم" يعني نادر د نيستي په حکم کي دی.

مطلب دادی چي د اجتهاد فی الاصول لائق هغه مخکني سلف علماء يعني مجتهدين حضرات وه، زموږ سره دا رتبه نه ښايي، ځکه چي زموږ د فکر او فهم او د هغوی د فکر او فهم، تقوی او پرهيزګارۍ هيڅ برابري نه شي سره کېدای، هغو



حضراتو ته الله ﷻ يو جلا فهم او فکر ورکړی ؤ، د جناب رسول الله ﷺ د خبري په مطلب تر موږ دوی ډېر ښه پوهېدل، تاسي فکر وکړئ موږ به پر خپل فهم او فکر څنګه اعتماد وکړو؟

که د نن سبا و استنباطاتو ته وکتل شي نو په ښکاره توګه سره معلوميږي چي زموږ په فهمونو او فکرونو کي څومره کوږوالی شته، مطلب دادی چي دا ډول اجتهاد چي واقعات څنګه پر اصولو باندي تطبيق پيدا کولای شي، تر اوسه پوري ختم نه دی، بلکي ترقيامته پوري به جاري وي (**تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۲۷۰**)

## په فروعو کي اجتهاد به تر قيامته پوري جاري وي:

د اجتهاد فی الاصول دروازه بنده شول، مګر اجتهاد فی الفروع تر اوسه پوري باقي دی او تر قيامته پوري به باقي وي، که چيري اوس د اجتهاد فی الفروع دروازه هم بنده کړل شي او اجتهاد فی الفروع روا ونه ګڼل شي نو د شريعت د نامکمل کېدلو شک او شبه پيدا کيږي چي دا ډول شک او شبه پيدا کېدل بالکل غلط دي، تر قيامته پوري چي څومره نوي نوي صورتونه منځ ته راځي د ټولو جواب د هري زمانې د محققينو علماوو څخه را ايستل کېدای شي، مګر ددې خبري څخه دا نه لازميږي چي موږ هم د سراج الامت والملت حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله او سراج الامت والملت حضرت امام شافعي رحمه الله په ډول مجتهدين يو.

## د څلورمي صدۍ وروسته د اجتهاد د ختمېدلو صحيح مطلب او په دې هکله مکمل تحقيق:

حضرت حکيم الامت اشرف علي تهانوي رحمه الله د تحفة العلماء په دوهم جلد

کي تر پورته عنوان لاندي څه دار راز ليکي: ددې دا معنی نه ده چي د څلور سوه کاله څخه وروسته هيڅوک د اجتهاد کولو قابل نه دی، ځکه چي پر دې خبره هيڅ دليل نشته، يو خو په دې هکله کوم دليل نشته او بله خبره داده چي په هره زمانه کي په زرهاوو داسي جزئيات منځ ته راځي چي د هغو حکم د مجتهدينو امامانو څخه نه دی رانقل شوی، د هري زماني محققين علماء پخپله اجتهاد کوي او د هغوی جوابونه راباسي، نو که چيري د اجتهاد دروازه بالکل بنده کړل شي او دا وګڼل شي چي د نن سبا هيڅ دماغ د اجتهاد کولو قابل نه شي کېدای، نو بيا ته راته ووايه چي د داسي نوو نوو مسائلو د جوابونو لپاره چي په شريعت کي نه وي راغلي بل نبي به د اسمانه څخه راکښته کيږي او که څنګه، حال دادی چي نبوت خو پر جناب محمدرسول الله ﷺ ختم دی او تر ده مبارک وروسته بل هيڅ نبي نه راځي؟ او بله خبره داده چي دين پوره شوی دی ځکه چي الله ﷻ فرمايلي دي:

اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ. (سورة المائده آيت ۳)

**ترجمه**: نن ورځ مکمل (پوره) کړ ما تاسي ته دين ستاسي، او تمام مي کړ پر تاسي (ای مؤمنانو!) نعمت (د دين په اکمال).

ددې پورته مبارک آيت څخه خو معلومه شوه چي دين پوره شوی دی، نو که چيري د اجتهاد دروازه بالکل بنده کړل شي، نو بيا د شريعت تکميل څنګه منل کېدای شي، ځکه چي دا خو ښکاره خبره ده چي ډېر داسي مسائل شته چي د هغوی جوابونه د فقهي په کتابونو کي نه دي ذکرشوي او نه د مجتهدينو څخه رانقل شوي دي، مثلاً دا هم يو سوال دی چي آيا په طياره کي لمونځ کېدای شي او که نه؟

نو اوس دا راته وواياست که چيري اجتهاد د څلورمي صدۍ وروسته بالکل بند کړل شي او روا ونه بلل شي، نو بيا خو په دې مسئله کي شريعت هيڅ جواب نه لري،



ځکه چي په پخوا زمانه کي نه طياره وه او نه فقهاوو پېژندل او نه يې په دې هکله کوم حکم ليکلی دی، نو اوس موږ اجتهاد کوو، د داسي نوو نوو مسائلو حکمونه معلوموو او جواب يې راباسو.

د فقهاوو رحمهم الله تعالی دا مطلب نه دی چي ګڼي تر څلور سوه کاله وروسته اجتهاد بالکل بند دی، بلکي د دوی مطلب دادی چي د **اجتهاد فی الاصول** دروازه بنده ده او **اجتهاد فی الفروع** اوس هم باقي دی. بلکي تر قيامته پوري به باقي وي.

که چيري **اجتهاد فی الفروع** هم بند کړل شي، نو د شريعت د نامکمل والي شک پيدا کيږي چي دا بالکل غلط دی، ځکه چي په شريعت کي هيڅ قسم کمي نشته، تر قيامته پوري چي څومره صورتونه مخته راځي، د هغوی ټولو جواب د هري زماني د شريعت د محققينو علماوو څخه را ايستل کېدای شي، ځکه چي دغه جزئيات که د فقهي په کتابونو کي نشته، نو اصول او قواعد خو يې تر ټولو مخکي مجتهدينو بيان کړي دي، بايد ووايم چي د هغو څخه تر قيامته پوري د ټولو واقعاتو حکم معلومېدای شي.

البته د قرآن او حديث څخه اصول مستنبط کول دا اوس نه شي کېدای ځکه چي دې ته اجتهاد فی الاصول وايي، دا ډول اجتهاد د څلورمي صدۍ وروسته ختم شوی دی، ځکه چي څومره اصول او قواعد چي په شريعت کي وه، هغه ټوله ائمه مجتهدينو بيان کړي دي، هغوی تقريبًا هيڅ قاعده نه ده پرې ايښې، د دوی وروسته چي چا اصول مستنبط کړي هم دي، هغه مستحکم نه دي، يو ځای نه يو ځای ضرور ماتيږي، ددې څخه معلوميږي چي د اجتهاد فی الاصول لپاره د نن سبا دماغونه ددې قابل نه دي، دا کار چي **اجتهاد فی الاصول** نوميږي د مجتهدينو حضراتو يو ځانګړی امتياز دی چي الله ﷻ دوی ته ور په برخه کړی دی، دوی د قرآن

او سنت څخه په ډېر ښه ډول سره اصول مستنبط کړي دي چي تقريبًا هيڅکله نه ماتيږي

دا د هغو حضراتو کمال دی چي په قرآن او حديث کي يې دومره غور او فکر کړی دی او داسي قواعد او اصول يې څيني را ايستلي دي چي تر قيامته پوري د جزئياتو لپاره کافي دي، تقريبًا هيڅ داسي مسئله مخته نه راځي چي جواز او عدم جواز يې د دوی د اصولو څخه نه راوزي.

دغو حضراتو صرف پر اصولو او قواعدو هم اکتفاء نه ده کړې، بلکي جزئيات يې هم دومره ډېر بيان کړي دي چي ډېري لږي مسئلې به داسي راشي چي نه دي صراحتًا او نه دي دلالتًا بيان کړي وي، که چيري داسي مسئله هم مخي ته راشي، نو دا هم کېدای شي چي په دې هکله د مفتي صاحب د نظر کمزوري وي، داسي ډېره پېښېدای شي چي د مفتي صاحب د مسئلې و ټولو اړخونو ته فکر ور ونه لوېږي، نو دې ته موږ د مفتي صاحب د فکر کمزوري ويلای شو.

**(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۲۷۲)**

## دا چي قرآن اسانه دی، نو هر سړی ولي اجتهاد نه شي کولای؟

د خلکو جرئت دومره مخ پر لوړه ختلی دی چي اوس د مجتهدينو فقهاوو کوم مسائل چي دوی د قرآن او د حديث څخه استنباط کړي دي، هغه غلط بولي او وايي چي موږ پخپله د قرآن او حديث څخه احکام استنباطول غواړو او ددې خبري د جواز لپاره د قرآن شريف دغه مبارک آيت وړاندي کوي:

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ. **(سورة القمر آيت ۱۷)**

**ترجمه**: او خامخا په تحقيق اسانه کړی دی موږ قرآن لپاره د يادولو او پند اخيستلو



حال دادی چي نه د دوی دغه دعوه صحيح ده او نه د دوی دغه استدلال صحيح دی، ځکه چي د قرآن او حديث په اړه دوه شيان د يادوني وړ دي، چي يو د دوی څخه د مسائلو استنباط دی او دوهم ترغيب او ترهيب دی، نو قرآن چي اسانه بلل شوی دی، هغه صرف د تذکر او تذکير لپاره اسانه بلل شوی دی ځکه چي په پورته آيت کي هم د "يَسَّرْنَا" وروسته "لِلذِّكْرِ" موجود دی.

همدارنګه په يو بل آيت کي دا تصريح شوې ده چي قرآن د تبشير او انذار لپاره اسانه شوی دی هغه آيت دادی: فَاِنَّمَا يَسَّرْنَاهُ بِلِسَانِكَ لِتُبَشِّرَ بِهِ الْمُتَّقِيْنَ وَتُنْذِرَ بِهٖ قَوْمًا لُّدًّا. **(سورة مريم آيت ۹۷)**

**ترجمه**: نو بېشکه همدا خبره ده چي اسان کړی دی موږ دغه (قرآن) په ژبه ستا (چي عربي ده) لپاره ددې چي زېری ورکړې په دې سره پرهېزګارانو ته او چي وبېروې په دې سره قوم جګړه کوونکی.

پاته چي د مسائلو استنباط شو، د هغوی په اړوند هيڅکله دا نه دي فرمايل شوي چي هغه اسانه دي، حکيم الامت وايي چي زه پخپله د قرآن شريف څخه دا درته ثابتومه چي د احکامو استنباط يوازي د محققينو کار دی، هر سړی ددې کار اهل نه دی، ځکه چي په پنځمه پاره کي الله ﷻ فرمايلي دي:

وَاِذَا جَآءَهُمْ اَمْرٌ مِّنَ الْاَمْنِ اَوِالْخَوْفِ اَذَاعُوْا بِهٖ وَلَوْرَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ وَاِلٰى اُولِى الْاَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ. **(سورة النسآء آيت ۸۳)**

که غواړئ چي د پورتني آيت ترجمه او ددې خبري ښه تحقيق وګورئ نو پخپله و معارف القرآن ته چي د مفتي محمد شفيع صاحب رحمه الله تصنيف دی رجوع وکړئ، هلته په دې هکله ښه وضاحت شوی دی.

## آیا مجتهد اوس پیدا کېدای شي او که نه؟

هو مجتهد اوس هم پیدا کېدای شي، مګر پیدا کیږي نه، د مثال په ډول حضرت عیسی ﷺ بې پلاره پیدا شو، مګر تر ده وروسته بیا څوک بې پلاره نه دي پیدا شوي، ددې دا مطلب نه دی چې ګویا الله ﷻ پر دې قدرت نه لري چې په اوس زمانه کې دې یو څوک بې پلاره پیدا کړي، بلکې الله ﷻ پر هر شي قدرت لري مګر کوي یې نه. مثلاً الله ﷻ پر دې قدرت لري چې د هر سړي په مخکې د سرو زرو غونډۍ پیدا کړي، مګر کوي یې نه.

دا د الله ﷻ حکمت او عادت شریفه دی په کوم وخت کې چې د یو شي ضرورت وي په هغه وخت کې هغه شی پیدا کوي، په هغه وخت کې احکام نه وه مدون او ترتیب شوي، نو په هغه وخت کې د مجتهدینو ضرورت ؤ، لوی خدای ﷻ په هغه زمانه کې مجتهدین حضرات پیدا کړل چې په ډېر ښه ډول یې احکام مدون او ترتیب کړل. اوس زموږ لپاره دا کافي شوه چې د دوی اتباع وکړو، نو ته راته ووایه چې اوس ددې څه ضرورت دی چې مجتهدین پیدا کړل شي، دا دی ددې راز، مګر دا هم ظني حکمت دی، د الله ﷻ په حکمت په قطعي ډول څوک پوهېدای شي؟ د تقریب فهم لپاره دا ویل کېدای شي چې په دې کې دا راز دی تر څو چې دا خبره یو څه په فکر کې راشي.

## آیا په یوه زمانه کې دوه مجتهدین هم پیدا کېدای شي او که نه؟

ځینو خلکو ته دا سوال ور پیدا کیږي چې آیا په یوه زمانه کې دوه مجتهدین هم پیدا کېدای شي او که نه؟



ددې پوښتنې په جواب کې باید ووایو چې هو ولې نه شي پیدا کېدای، ددې داسې مثال دی لکه ته چې ووایې چې آیا په یوه زمانه کې دوه پهلوانان پیدا کېدای شي او که نه؟ هر وګړی ددې خبرې په جواب کې درته ویلای شي چې هو دوه پهلوانان ولې په یوه زمانه کې نه شي پیدا کېدای، په دې کې څه تعجب دی.

مطلب دا دی چې په هغه زمانه کې په سلهاوو مجتهدین وه لېکن د خدای ﷻ قدرت ته وګوره چې د هغو حضراتو مذهبونه ونه چلېدل او زیات پیروان یې پیدا نه کړل، د همدغو څلورو امامانو مبارکانو مذهبونه وچلېدل او زیات پیروان یې پیدا کړل، باوجود ددې چې د هغو نورو مبارکو امامانو پر خلاف نه چا څه تبلیغات کړي دي او نه بیا ددغو څلورو امامانو د مذهبونو د چلېدلو لپاره له مخکې څخه کوم خاص او ځانګړي تدابیر نیول شوي وه. (تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۲۷۳)

## سلامتي په دې کې ده چې خلکو ته د اجتهاد اجازه ورنه کړل شي:

نن سبا چې کوم خلک د اجتهاد دعوه کوي د افسوس خبره ده چې د داسې غټې دعوې باوجود د هغوی څخه داسې فاحشې غلطیانې کیږي چې د هر باشعوره انسان زړه د دوی غلطیانې تسلیموي لکه نن سبا چې ځیني خلک سند ونه جوړ کړي او ځانونو ته محدثین وایي، حکیم الامت فرمایي چې د دوی محدثیت نه شي تسلیمېدای،نن سبا سلامتي په دې کې ده چې د اجتهاد اجازه ورنه کړل شي که نه نو د دین انتظام به ډېر ژر د غټ خطر سره مخامخ شي، رښتیا خبره داده چې مجتهدینو امامانو د دین حقیقت ډېر ښه درک کړی دی. او کوم خلک چې د تقلید پرېښوونکي دي او وایي چې موږ د امامانو خلاف یو ،دا خلک په حقیقت کې د یوې

غتي غلطۍ ښکار دي، ځکه چي دا ډول اکثر خلک د خود رایي او اتباع هوا په جال کي راګیر دي، او دا خو تاسي ته معلومه ده چي دا ټول مهلک او تاواني شیان دي چي په تجربه ثابت دي.

دا خلک پر خپل ناقص علم باور لري. دا فکر نه کوي چي زموږ ناقص علم د مجتهدینو امامانو و علم ته چي مسلّم دی هیڅ حیثیت نه لري، ددې دعوی ثبوت چي اجتهاد فی الاصول ختم دی یو دادی چي راشه وروره! د مبارکو مجتهدینو امامانو فقه په عارضي ډول یوې خوا ته کښېږده او پخپله د قرآن او حدیث څخه احکام استنباط کړه، ښه ډېره اندازه مسائل راجمع کړه او بیا یې د فقهي سره مقایسه کړه، تا ته به په ډېر ښه ډول سره ښکاره شي چي زما په استنباطاتو کي څومره زیاتي غلطیاني دي.

حکیم الامتِ فرمایي چي که د نن سبا و استنباطاتو ته وکتل شي، نو معلومېږي چي زموږ په فهمونو کي څومره کمزوري ده، د ځینو (تش په نامه) اهل حدیثو استنباطاتو ته که وکتل شي چي په ځینو مسائلو کي یې کړي دي نو غلطي یې له ورایه معلومېږي مثلاً یو صاحب د دغه حدیث مبارک څخه چي فرمایي: **حتی یجد ریحا او یسمع صوتا** دا استدلال کړی دی وایي که چیري باد راووزي، مګر بدبوی یا اواز نه وي ورسره ، نو په دې سره اودس نه ماتیږي، همدارنګه نور داسي بې خونده مسائل دي چي حکیم الامت یې د خندا وړ بولي.

## د یوه غیر مقلد قصه:

حکیم الامت فرمایي چي یو وخت یو غیر مقلد زما سره په ریل ګاډۍ کي ملګری ؤ، دغه سړي زما څخه پوښتنه وکړل ویل اجتهاد څه شی دی؟ ما ورته



وویل چي صاحبه زه تا څنګه پوه کړم، زه ستا څخه یو مسئله پوښتم، د هغه جواب راکړه، ددې وروسته به د مسئلې وضاحت وشي.

**پوښتنه داده:** دوه نفره په سفر کي سره ملګري دي، د دواړو اوصاف یو ډول دي یعني په شرافت، علم، تقوی مطلب دادی د امامت لپاره چي څومره صفتونه قابل ترجیح کېدای شي په هغو ټولو کي دغه دوه نفره سره برابر دي، دغه دوه نفره ماښام بیده شول سهار چي د خوبه راپورته شول پر یوه غُسل اوښتی ؤ یعني احتلام ورته پېښ شوی ؤ، او په سفر کي دوی وداسي ځای ته راغلي وه چي د غسل کولو او اودس کولو لپاره اوبه نه وې موجودي، نو کله چي دوی د لمانځه اراده وکړل، دواړو تیمم وواهه، یوه د غُسل لپاره او بل د اوداسه لپاره.

حکیم الامت چي قصه ودغه ځای ته راورسول، نو بیې وغیر مقلد ته وویل: ښه اوس ته دا راته ووایه چي په دغو دوو نفرو کي کوم یو د امامت مستحق دی، یعني د لمانځه پر وخت به کوم یو تر مخه کیږي او امامت به ورکوي؟

غیر مقلد صاحب سمدلاسه جواب وکړل ویل هغه سړی باید تر مخه شي چي د اوداسه لپاره یې تیمم کړی دی، د امامت زیات مستحق دغه سړی دی ځکه چي دده بې اودسي کوچنۍ ده او د هغه بل بې اودسي غټه ده دا په دې وجه چي هغه ته جنابت پېښ شوی دی او دا بل ته صرف کوچنۍ بې اودسي پېښه شوې ده.

حکیم الامت ورته وفرمایل: چي صاحبه د فقهاوو رایه ستا د رایي خلاف ده، فقهاء وایي هغه سړی د امامت کولو زیات مستحق دی چي د غسل لپاره

يې تيمم وهلی دی، يعني دغه سړی بايد امام جوړ شي او هغه بل سړی چې د اوداسه لپاره يې تيمم وهلی دی تر شا ورپسې ودريږي او په دې ترتيب د جماعت لمونځ وکړي، دا ځکه چې دلته اصل شی چې کوم دی هغه اودس دی او تيمم د هغه نائب دی همدا ډول غسل اصل دی او تيمم يې نائب دی نو دا چې غسل تر اوداسه افضل او غوره دی، همدا ډول د افضل او ښه شي نائب هم افضل او ښه وي، د مثال په توګه د پاچا نائب د وزير تر نائب افضل او لوړ وي، نو دلته د غسل تيمم د اواسه تر تيمم افضله دی.

ددې وجې کوم چا چې د غسل لپاره تيمم کړی وي هغه اقوی فی الطهارة دی يعني دده پاکي تر هغه بل زياته ده، همدغه د اجتهاد يو ادنی نمونه ده چې تاسې واورېدل، غير مقلد صاحب چې دغه خبره واورېدل ، نو حيران پاتې شو او ويې ويل چې هو رښتيا هم واقعي خبره همدا ده لکه فقهاوو چې ويلې ده زما رايه غلطه ده. **(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۲۷۶)**

## د امامانو حضراتو تر منځ ولي اختلاف راتلی:

ځينو خلکو ته دا پوښتنه ور پيدا کيږي چې د امامانو حضراتو تر منځ ولي اختلاف راتلی بايد ووايم چې د اختلاف د وجوهو حصار مشکل دی، محققين په حقيقت پوهېدل غواړي او دا چې د حقيقت ډېر اړخونه دي او پر ټولو اړخونو باندې احاطه راتلل د خدای ﷻ کار دی، نو دا چې د خلکو ويوه يوه اړخ ته نظر ورلويږي، نو ځکه پر ډېرو شيانو يو تر بله اتفاق نه شي راتلای. په شريعت کې دوه ډوله شيان دي يو هغه شيان دي چې مقصود دي او بل



هغه شيان دي چې مقصود نه دي. زائد دي، مګر محمود دي. نو دلته د مجتهد ضرورت دی چې هغه ددې تميز وکړي چې کوم يو مقصود او کوم يو نه دی مقصود

دا د هر سړي کار نه دی چې دا امتياز وکړي چې د شارع په نزد مقصود څه شی دی او غير مقصود څه شی دی او کله ناکله په اجتهاد کې هم اختلاف راځي د مثال په ډول د جناب رسول الله ﷺ څخه هم رفع اليدين ثابت دی او هم عدم رفع اليدين. اوس دلته د مجتهدينو اختلاف راځي يو مجتهد رفع مقصود بولي او ترک رفع چې فرمايل شوې ده هغه د جواز لپاره بولي او وايي چې دا اصل مقصود نه ده او هغه مجتهد چې د عدم رفع قائل دی هغه بيا وايي چې په لمانځه کې سکون په کار دی، همدارنګه په حديث شريف کې راغلي دي چې جناب رسول الله ﷺ و صحابه وو ؓ ته وفرمايل چې تاسې څه کوی چې په لمانځه کې لاسونه پورته کوی (يعني د سلام پر وخت) په لمانځه کې سکون اختيار کړی، نو اوس هغه څوک چې د عدم رفع قائل دي هغه وايي چې د پورته حديث څخه معلومه شوه چې مقصود عدم رفع ده او رفع د جواز لپاره فرمايل شوې ده او کوم څوک چې رفع مقصود بولي هغه بيا وايي چې په کوم ځای کې چې د رفع څخه منع راغلې ده هغه دا ډول رفع نه ده چې موږ يې کوو يعني رکوع ته د تللو او د رکوع څخه د بيرته راپورته کېدلو په وخت چې کومه رفع کيږي هغه منع نه ده. بلکې ددې حديث څخه هغه رفع مراد ده چې د سلام ګرځولو په وخت کې لاس پورته کيږي لکه په بعضې حديثونو کې چې

په دې هکله ښه تفصیل راغلی دی چي صحابه وو ﷺ چي د لمانځه وروسته سلام ګرځاوه . نو لاسونه به يې پورته کول او السلام علیکم ورحمة الله به يې ويل. جناب رسول الله ﷺ چي د رفع اليدين منع وکړه هغه يې دغو صحابه کرامو ﷺ ته وکړه چي د سلام ګرځولو په وخت کي به يې رفع کول.

حکيم الامت وايي چي هو موږ دا درسره منو چي ددې ځخه هغه رفع مراد ده مګر ددې ځخه يوه خبره ضرور راوزي چي اصلي مطلوب په لمانځه کي سکون دی او رفع ددې خلاف ده؟ نو په مختلف فيها ځايونو کي رفع مقصود نه ده ځکه چي د لمانځه د اصلي حالت يعني سکون خلاف ده او عدم رفع چي د سکون سره موافقه ده. ددې وجي مقصود وګرځېده.

## ځيني وخت بيا د رايي اختلاف د ځای د اختلاف په وجه سره هم کېدای شي:

ځيني وخت بيا د رايي اختلاف د ځای د اختلاف په وجه سره هم کېدای شي لکه سراج الامت حضرت امام شافعي رحمه الله چي کله مصر ته سفر وکړ، نو پخپلو پخوانيو ډېرو اقوالو کي يې تغير راوستی. دا خبره د حکيم الامت په وينا پر هغو خلکو باندي چي د فقهي علم لري پټه نه ده، ددې دا وجه نه وه چي په سفر کولو سره دليلونه بدل شول. بلکي ددې وجه دا ده چي په سفر کولو سره د حالاتو تجربه زياته حاصله شول. همدا راز ډېر د حرج او تکليف مواقع او ځايونه معلوم شول چي د هغوی په هکله مخکي ده ته علم نه ؤ. مخکي بل



حکم ؤ دا چي حرج او تکليف معلوم شو، نو د حکم بد ليدل ضروري وبلل شوه.

## ځيني وخت فقهي قواعد په يوه خاصه واقعه کي متعارض راځي:

مطلب دادی چي د اختلاف د وجهو احصاء مشکله ده، ځيني وخت فقهي قواعد په يوه خاصه واقعه کي متعارض راځي. د يوه عالم په نظر دغه مسئله تر يوې قاعدې لاندي راځي او د بل عالم په نظر تر بلي قاعدې لاندي نو ددې وجي هم اختلاف پيدا کيږي.

په سورة عبس کي د جناب رسول الله ﷺ په وړاندي دغه قاعده مخي ته پرته وه چي د دين د اصولو تعليم مقدم دی د دين د فروعو تر تعليم. ددې په مقابله کي دا قاعده وه چي د جناب رسول الله ﷺ وهغه ته نه ؤ فکر. هغه دا وه چي هغه کار ته بايد وړاندي والی ورکول شي چي نفع يې يقيني او د کاميابۍ اميد يې زيات وي ، د هغه کار په مقابل کي چي نفع يې په شک کي وي او د کاميابۍ اميد يې هم کم وي.

دلته خبره داوه چي د مشرکينو د اميرانو لپاره د اصولو د تعليم اثر په شک کي ؤ او د مسلمانانو لپاره د فروعو د تعليم نفع يقيني وه، نو ددې وجي قرآن شريف و دغي قاعدې ته ترجيح ورکړه او پر دې خبري عتاب راغی چي تا ولي و دغي قاعدې ته فکر ونه کړ. (**تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۲۸۰**)

که غواړئ چي د پورتنۍ قصې په هکله ښه معلومات تر لاسه کړئ نو و تفسيرونو ته رجوع وکړئ او د عبس وتولی تر سورة لاندي يې مطالعه کړئ.

د امت د علماوو تر منځ په رايو او پر دې بناء په اجتهادي مسائلو کې اختلاف راتلل يو فطري امر دی او د حضراتو صحابه وو رضي الله عنهم او تابعينو رحمهم الله د زمانې څخه را روان دی او دا ډول اختلاف ته رحمت ويل شوی دی، هغه مزموم اختلاف چې قرآن او سنت د هغه څخه مور ته د ځان ساتلو امر کړی دی، هغه دا ډول اختلاف دی چې پر اغراضو او هوای نفساني وو باندي مبني وي يا د اختلاف تر حدودو يې تجاوز کړی وي.

## د تقليد بيان:

**د تقليد تعريف:** د يو چا قول محض پر حسن ظن باندي منلو ته تقليد ويل کيږي، دی پر دې باندي يقين لري چې دغه سړی بې دليله خبره نه کوي نو په دې هکله دی دهغه څخه د دليل تحقيق نه غواړي.

د تقليد مدار پر حسن ظن باندي دی، د يو سړي په اړه دا يقين درلودل چې دغه سړی د دين په معامله کې هيڅ خبره بې له شرعي دليله نه کوي د داسي سړي د اتباع کولو نوم تقليد دی که څه هم چې هغه به وده ته د يوې مسئلې هيڅ دليل بيان نه کړي او د کم سړي په اړه چې دی دا ډول اعتقاد نه لري هغه که وده ته دليل بيان هم کړي خو بيا هم ده ته يقين نه حاصليږي او شک ورسره پاتيږي.

حکيم الامت فرمايي چې شيخ الاسلام حافظ ابن تيميه رحمه الله پخپله فتاوی کې او همدارنګه په ځيني نورو رسالو کې صرف احکام بيانوي، هيڅ دليل نه ورسره ليکي، مګر دا چې غير مقلدين حضرات وده ته بنه عقيده لري او وايي



چې دی هيڅکله بې دليله خبره نه کوي، نو ځکه يې خبره مني، بنه چې داسي ده نو احناف خو هم دا حق لري چې د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله پر بيان کړو مسائلو په دې اعتقاد عمل وکړي چې ده مبارک هيڅ خبره بې دليله نه ده کړې حکيم الامت وايي چې زما په نزد د تقليد تفسير دادی چې مور د جناب رسول الله ﷺ پر مبارکو احاديثو او دده مبارک ﷺ پر مبارکو ارشاداتو باندي عمل کوو پر هغه تفسير چې امام ابوحنيفه رحمه الله بيان کړی دی ، ځکه چې زمور په نزد امام ابوحنيفه رحمه الله په درايت او فقه کې د لوړ مقام خاوند دی، ددې خبرې څخه هيڅوک انکار نه شي کولای ، ځکه چې د امام صاحب رحمه الله فقيه الامت کېدل ټول امت تسليموي، د هغه مبارک علوم ددې شاهدي ورکوي.

(اشرف الجواب)

## د خلاصون لپاره صرف دوې لارې دي يا تحقيق دی يا تقليد:

حکيم الامت فرمايي چې د قرآن دغه آيت چې فرمايي:

وَقَالُوا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِي أَصْحَابِ السَّعِيرِ.

(سورة الملک آيت ۱۰)

**ترجمه**: او وبه وايي که چيري وای مور چې اورېدلای مو يا مو عقل درلودای ، نو نه به وای مور په اهل ملګرو د دوږخ کې.

دا د دوږخيانو قول دی چې وجهنم ته د داخلېدو په وخت کې يې وايي،

ددې حاصل دادی دوی وايي که چيري موږ ددغو دوو صفونو څخه په يوه صف کي ولاړ وای، نو موږ به جهنم ته نه راتلای ، هغه دادی چي يا مو په دين کي د صالحانو خبري اورېدلای او منلای او يا مو پخپله د عقل څخه د دين احکام سنجولای، نو ولي به دوږخ ته راتلای، ددې څخه معلومه شوه چي د نجات او خلاصون دغه دوې لاري دي يا تحقيق دی يا تقليد.

**(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۲۸۴)**

## د تقليد حقيقت:

د تقليد حقيقت بالکل دا نه دی چي د امام قول تر قرآن شريف او حديث شريف زيات وګڼي، دا ډول عقيده درلودل کفر دی، بلکي حقيقت دادی چي موږ ته دومره علم نشته څومره چي فقهاوو رحمهم الله تعالی درلودی، هغو حضراتو په ډېر ښه ترتيب سره په ښه فهم، فکر او احتياط سره د مسائلو استخراج کولای شوای، مګر موږ خواران يې هغسي چيري کولای شو، نو په دې وجه د مسائلو د را ايستلو په وخت کي د امام روايت پوښتل کيږي چي هغه په دې هکله څه تحقيق کړی دی، که چيري د هغوی تحقيق زموږ د تحقيق څخه خلاف وي نو بيا موږ د هغوی وتحقيق ته ترجيح ورکوو ددې داسي يو مثال دی چي ته راسې او د يوې مسئلې پوښتنه د يوه طالب العلم څخه وکړې او هغه طالب العلم ستا د مسئلې جواب درکړي، خو ته وروسته ولاړ شې او دغه پوښتنه د يو غټ او مدرس استاد څخه وکړې او هغه هم جواب درکړي، خو اوس خبره داده که چيري ددغه لوی استاد تحقيق د طالب العلم د تحقيق



څخه مخالف وي نو ته بايد کوم يوه ته ترجيح ورکړې؟ ښکاره خبره ده چي د استاد وفتوی ته به ترجيح ورکوې، نو آيا ددې دا معنی راوزي چي کومه معنی چي په قرآن او حديث کي وه (په کومه چي طالب العلم پوهېدی) نو آيا تا قرآن او حديث پرېښودل او د استاد اتباع دي وکړل؟

نه هيڅکله داسي نه ده، بلکي حقيقت دادی چي اصل مطلب د قرآن او حديث څخه فتوی را ايستل دي، ځکه چي موږ ته د قرآن او حديث د اتباع حکم شوی دی، مګر دا چي د قرآن او د حديث حکم طالب العلم ته په صحيح ډول نه دی معلوم، نو ځکه موږ د استاد څخه ددې مسئلې حکم معلوموو، همدغه د امامانو د تقليد حقيقت دی.

## آيا د تقليد په پرېښودلو سره سړی ګناهکاره کيږي؟

حکيم الامت اشرف علي تهانوي رحمه الله ددې پوښتني په جواب کي فرمايلي دي چي د تقليد پر ترک باندي په قيامت کي مواخذه نشته، ځکه چي ده د يو قطعي شي مخالفت نه دی کړی، مګر هو په دې کار کي بې برکتي يقيني ده.

**(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۲۸۶)**

## د امامانو مجتهدینو پر ځای ولي

## د صحابه کرامو تقلید نه کیږي:

یو ورور ویل چي غیر مقلدین حضرات اعتراض کوي او وايي چي موږ ولي د حضرت امام ابوحنیفه ؒ تقلید کوو، د صحابه وو ؓ تقلید ولي نه کوو، ځکه چي اختلاف خو په دواړو ځایونو کي شته، په صحابه وو کي هم اختلاف ؤ، دلته یاران یو څه وايي امام ابوحنیفه ؒ بل څه وايي، همدارنګه قاضي خان یو څه وايي او عالمګیري بل څه وايي، آیا صاحبینو د امام صاحب مخالفت نه دی کړی؟

موږ ورته وایو چي هو ستا خبره درسته ده، خدای دي نه کوي چي موږ به تا ته وایو چي ته د صحابه کرامو ؓ تقلید پرېږده، او د امامانو رحمهم الله تعالی تقلید وکړه، دا راز مشوره تا ته څه ډول او کوم مسلمان درکولای شي، نه وروره! دا خبره غلطه ده هیڅوک حق نه لري چي تا ته دا راز خبره وکړي، بلکي اصل خبره داده، د کوم چا چي تقلید کیږي د هغه مجتهد مذهب باید مدون او منضبط وي، نو دا چي د صحابه کرامو ؓ د یوه مذهب لا هم دا ډول اصولاً او فروعاً نه دي منضبط او ترتیب شوی لکه د ائمه اربعه وومبارکانو رحمهم الله تعالی مذهبونه چي مدون او ترتیب شوي دي، نو اوس ته راته ووایه چي په دې صورت کي به د صحابه کرامو ؓ تقلید څه ډول وکړل شي.

## د تقلید مقصد:

اصل دین قرآن او حدیث دی او د تقلید څخه مقصود دادی چي په قرآن او



حدیث باندي په سهولت او سلامتیا سره عمل وکړل شي.

ددې خبري تفسیر دا ډول دی چي موږ په قرآن او د جناب رسول الله ﷺ په احادیثو او ارشاداتو باندي عمل کوو، پر هغه تفسیر چي امام ابوحنیفه ؒ بیان کړی دی، دا ځکه چي زموږ په نزد امام ابوحنیفه ؒ په درایت او فقه کي ولوړي درجې ته رسېدلی دی، د امام صاحب فقیه الامت کېدل ټول امت تسلیموي.

اتباع حدیث مقصود بالذات ده، او امام ابوحنیفه ؒ محض واسطه فی التفهیم ده، نو کوم سړی چي بلا واسطه د علم بالحدیث دعوه کوي هغه د حدیثو اتباع د خپل فهم په ذریعه کوي، او یقیناً د سلف صالحینو فهم، عقل، ورع، تقوی، دیانت، امانت، خشیت، پرهېزګاري او احتیاط تر موږ ټولو لوړ دی، ښه چي داسي ده نو دا راته ووایه چي په پوره ډول کوم سړی عالم بالحدیث شو؟

## اطاعت پر دوه قسمه دی:

ځیني خلک وايي چي د امامانو تقلید د شرک فی النبوت مرادف دی، ددې خبري په جواب کي باید ووایو چي اطاعت پر دوه قسمه دی: چي یو یې اطاعت مطلقه او بل یې اطاعت مقیده نومیږي، اطاعت مقیده هغه دی چي یو مسلمان د یو امام او مجتهد اطاعت کوي، مګر په دې شرط سره به مقید وي چي د امام خبره به د الله ﷻ د حکم سره برابره وي او اطاعت مطلقه بیا هغه راز اطاعت ته ویل کیږي چي ددغه شرط څخه خالي وي، مشرکینو به د خپلو

پېشوايانو دا ډول اطاعت كاوه، بايد ووايم چي دا ډول اطاعت صرف د الله ﷻ حق دی بل هيڅوک دا حق نه لري چي دا راز اطاعت يې وكړل شي او چا چي دا ډول حق د الله ﷻ څخه ماسېوا بل چا ته وركړ، بس هغه مشرک او غټ شيطان شو، كه څه هم چي په ژبه ددې خبري اقرار ونه كړي، له دې وجې الله ﷻ واهل كتابو ته په دې ډول سره تعليم وركوي:

وَلَايَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللهِ.

(سورة آل عمران آيت ۶۴)

**ترجمه**: او نه به نيسي ځيني زموږ ځيني نور خدايان غير له الله څخه.

په حديث شريف كي راغلي دي چي حضرت عدي بن حاتم و رسول الله ﷺ ته وويل چي يا رسول الله ﷺ! موږ خو مخكي هيڅكله هم د خپلو علماوو عبادت نه دی كړی، جناب رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

اليس كانوا يحلون لكم ويحرمون فتا خذون بقولهم قال نعم قال هو ذالک.

يعني آيا دا خبره نه وه چي ستاسي علماوو به يو شی حلال وباله، بس تاسي به هم حلال گڼله او چي هغوی به يو شی حرام وباله، بس تاسي به هم حرام وگڼله، نوموړي صحابي ورته وويل چي هو همداسي وه! وروسته جناب رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: همدا خبره ده چي تاسي خپل علماء په رب والي سره منلي وه، د جناب رسول الله ﷺ مطلب دا ؤ چي تاسي د خپلو علماوو اطاعت مطلقه كاوه او اطاعت مطلقه عبادت دی او عبادت صرف او صرف د



الله ﷻ حق دی، الحمدلله چي مسلمانان هيڅكله خپل مجتهدين امامان اربابان نه جوړوي، بلكي د دوی د اقوالو اتباع په دې شرط سره كوي چي هغه د الله ﷻ او د رسول الله ﷺ د حكم سره برابره وي، دا په حقيقت كي د دوی اتباع نه ده، بلكي د خدای ﷻ او د خدای د رسول اتباع ده، ځكه چي موږ د مباركو مجتهدينو امامانو په هكله دا عقيده لرو چي دوی د الله ﷻ او د هغه د رسول پوره پوره متبع دي او هيڅ خبره د شريعت خلاف نه كوي.

## ولي يوازي د څلورو امامانو په مذهب كېدل ضروري دي؟

ځيني خلكو ته پوښتنه پيدا كيږي چي د څلورو مذهبونو د تخصيص وجه څه ده، خو ډېر مجتهدين امامان تېر شوي دي د هغوی ولي څوک نه په مذهب كيږي؟

ددې جواب مخكي تېر شو هغه دا دی چي دا ضروري خبره ده چي د مجتهد مذهب بايد اصولاً او فروعًا مدون او منضبط وي، نو دا چي د نورو مباركو مجتهدينو امامانو مذهبونه نه دي باقاعده مدون او ترتيب شوي په دې ډول چي نژدې نژدې د ټولو سوالونو جوابونه دي يا جزئيًا او يا كليًا پيدا كړل شي، دا د لوی خدای ﷻ حكمت دی چي دغه صفت يې بې له دغو څلورو امامانو د بل چا نه دی په برخه كړی، نو چي داسي ده د پنځم مذهب د اختيارولو په صورت كي چي د سوالونو جوابونه پيدا نه كړي، ددې خبري خطر ډېر دی چي دخپل شخصي مفاد لپاره به په نورو مذهبونو كي گرځي اومسائل به راباسي،

خصوصاً بیا دا کار په معاملاتو او د نورو خلکو سره په راکړه ورکړه کې ډېر تاواني دی، د نفس او هوا په جال کي راګیرېږي، چي ډېر تاواني شیان دي.

همدغه د انحصار وجه ده په مذاهب اربعه وو کي او پر دغو څلورو مذهبونو باندي د امت اکثره جمهور علماء راروان دي، دا سوال چي ولي د افغانستان، هندوستان او پاکستان خلک یوازي د حنفي مذهب پیروان دي او دغه مذهب ته یو ځانګړی اهمیت ورکوي باید ووایم چي دا داسي هیوادونه دي چي له مخکي څخه په دغو ځایونو کي د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب خپور شوی دی، ددغه مذهب علماء او کتابونه موجود دي، که چیري موږ بل مذهب اختیار کړو، نو د واقعاتو د احکامو معلومول راته مشکل دي ځکه چي ددغو وطنونو ټول علماء د نورو مذهبونو په نسبت په حنفي مذهب کي ښه مهارت او معلومات لري

## په یوه مسئله کي په یوه مذهب او په بله مسئله کي په بل مذهب عمل کول او د تقلید شخصي ضرورت:

که چیري غواړئ چي د تقلید شخصي ضرورت په پوره توګه ځان ته معلوم کړئ او په دې هکله ښه تفصیلات وغواړئ نو سمدلاسه د تحفة العلماء دوهم جلد دروا خلئ، خو دا چي دا یو مختصر کتاب دی نو ځکه تر دې بحث لاندي صرف یو څو خبري رانقلوم:

موږ تقلید شخصي ته فی نفسه واجب نه وایو، مګر هو دا وایو چي په



تقلید شخصي کي د دین انتظام راځي، او په ترک تقلید کي بې انتظامي راځي که چیري یو سړی ووایي چي زه په څلورو سرو مذهبونو عمل کوم، په دې ډول چي په دغو څلورو سرو مذهبونو کي هره مسئله چي ډېره د احتیاط څخه ډکه وه په هغه عمل کوم، نو په دې کي شک نشته چي دغه سړی په مصیبت او تکلیف کي اخته کیږي، او که په څلورو سرو مذهبونو کي ګرځي او د ځان لپاره یوه اسانه مسئله پیدا کوي، نو بیا خو په غرض پرستۍ کي اخته کیږي چي ډېره تاواني خبره ده، له دې څخه معلومه شوه چي په تقلید شخصي کي راحت هم پروت دی او د نفس حفاظت هم

حکیم الامت فرمایي چي یو وخت ما د یوه سړي سره د تقلید شخصي په هکله خبري اتري کولې، نو مي ورته وویل چي د وجوب او فرضیت بحث یې پرېږده، زه ستا څخه دا پوښتنه کوم چي زموږ د نفسونو اصلاح ضروري ده او که نه؟ او په طبیعت کي د نفسونو میلان د مفاسدو وطرف ته دی او که نه؟

هغه راته وویل: هو! دا ټول صحیح دي، نو مي ورته وویل: دا په تجربه سره ثابته ده، چي ددې علاج بې له تقلید شخصي مشکل دی، او د نفس علاج خو ته هم منې چي واجب دی، نو په دې ډول خو د واجب اطلاق پر تقلید باندي صحیح کېدای شي، حکیم الامت وروسته لیکي: که چیري تقلید شخصي ته ضروري او واجب وویل شي نو له دې وجوب څخه مراد وجوب بالغیر دی، نه وجوب بالذات، نو له دې وجي خاص په دې هکله آیتونه او حدیثونه وړاندي کول ضروري نه دي، د تقلید شخصي د وجوب لپاره د نص د وړاندي کولو حاجت نشته، ځکه چي ددې وجوب، وجوب بالغیر دی او وجوب بالغیر هغه

کار ته ویل کیږي چي پخپله ددې کار لپاره تاکید نه وي راغلی ، مګر د کومو کارونو په هکله چي قرآن او حدیث تاکید کړی وي، پر هغو کارونو باندي عمل کول عادتًا ممکن نه وي، نو له دې وجي دغه کار ته هم ضروري ویل کیږي، او د علماوو ددې قول همدا معنی ده چي د واجب مقدمه واجب ده.

**(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۲۹۲)**

## د تلفیق تعریف او د هغه حکم:

تلفیق د مثال له رویه زده کړئ! مثلاً یوه سړي اودس تازه کړ، وروسته یې له بدنه وینه راووتله، نو د حنفي مذهب په رڼا کي ددغه سړي اودس مات دی او د شافعي مذهب په نزد نه دی مات، دلته دغه سړی په شافعي مذهب عمل کوي، یعني اودس مات نه بولي او په بل ځای کي چي بیا سړی خپل ذکر ته لاس وروړي، د شافعي مذهب له رویه یې اودس مات دی ، مګر داچي د حنفي مذهب له رویه نه دی مات، نو په دی صورت کي بیا دغه سړی د امام ابوحنیفه په مذهب عمل کوي او اودس مات نه بولي.

د حکیم الامت څخه یوه سړي پوښتنه وکړل چي په مختلفو مسئلو کي د مختلفو مجتهدینو په قول عمل کول روا دی او که نه؟ حکیم الامت په جواب کي ورته وویل: نه صاحب، روا نه دی! ځکه چي دین د پابندی نوم دی او په دې کي مطلق العناني ده ، دا ډېره خطرناکه خبره ده چي صرف د دنیاوي غرض لپاره یو شافعي مذهبه سړی حنفي جوړ شي او یا حنفي مذهبه سړی شافعي مذهبه شي، علامه شامي یوه قصه لیکلې ده چي یو فقیه د خپل ځان لپاره د



یو محدث ولور ته د نکاح پیغام ورولیږی، هغې په جواب کي ورته وویل چي هو زه ستا سره د نکاح کولو لپاره تیاره یم، مګر په دې شرط چي ته به د آینده لپاره رفع الیدین او آمین بالجهر کوې! فقیه هم ددې دغه شرط ومانه او د دوی دوو تر منځ نکاح وشول.

دا قصه د یوه بزرګ په وړاندي وکړل شول، بزرګ سر کښته وځراوه او د یو څه وخت فکر کولو وروسته یې وفرمایل:

**پر دغه فقیه باندي ډېر افسوس په کار دی او ما ته دده د ایمان د تللو ډېره راپیدا کیږي، دا ځکه چي دغه فقیه مخکي چي کوم عمل کاوه، هغه په دې وجه ؤ چي ده دا کار سنت باله، بیا چي دی له دې لاري څخه اوړي، بله لاره غوره کوي ، نو دا کار خو دی د هیڅ شرعي دلیل په وجه سره نه کوي، بلکي صرف د دنیاوي غرض او د خپلو خواهشاتو د پوره کولو لپاره یې کوي، نو خپل دین د خپلو خواهشاتو لپاره قربانول څومره د افسوس خبره ده.**

## په بل مذهب عمل کول او د هغه شرط:

که چیري په یوه مسئله کي د ضرورت په وجه په بل مذهب عمل کول غواړئ نو باید په دغه مسئله کي د هغه مذهب ټول جزئیات درته معلوم وي او په ټولو جزئیاتو یې عمل وکړئ، همدغه ددې شرط دی، حکیم الامت فرمایي

چي په دياناتو کي نه، بلکي په معاملاتو کي د عام ابتلاء په وجه د بل امام په قول فتوی ورکول کېدای شي، دا ځکه چي د حرج او تکليف د دفع لپاره دا کار روا دی، حکيم الامت وايي چي له مخکي څخه هم ما ته دا مسئله رامعلومه وه او په دې هکله مي د مخکي څخه لا اطمينان ؤ، مګر بيا مي هم د حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله څخه ددې کار اجازه وغوښتله، ما ورته وويل: آيا په معاملاتو کي د ضرورت په وجه د بل امام په قول فتوی ورکول روا دي او که نه؟ هغه راته وفرمايل: هو جائز دي، او دغه توسع په معاملاتو کي راتلای شي، نه په دياناتو کي.

**(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۳۰۱)**

## دا کار خو به روا وي چي په څلورو مذهبونو کي په هغه احتياطي قول عمل وکړل شي؟

که ته وايې چي د تقليد شخصي په پرېښودلو کي د اتباع نفس خبره راځي نو دا خو به روا وي چي د څلورو مذهبونو په احتياطي قول عمل وکړل شي؟

که چېري يو څوک احتياط کوي او په مختلفو اقوالو کي په هغه احوط قول عمل کوي نو دې ته خو يقيناً هم چي د نفس ؤ هوا اتباع نه ويل کيږي، مګر پوښتنه داده چي داسي کار څوک کولای شي؟ او داسي احتياط کوونکي ته هم اجازه نشته چي پر نورو يې اثر ولوېږي، دا ډول د احتياط تقليد خو هيڅوک نه کوي، مګر ددې برعکس تقليد خو لا ډېر خلک کوي چي دا کار د نفس د اتباع څخه ډک او ډېر خطرناک دی.



که چېري يو سړی په پټ ځای کي موجود وي او دا يې يقين وي چي پر نورو ددې کار اثر نه لوېږي، نو دده معامله د الله ﷻ سره ده، که دده نيت رښتيني وي دا کار څه پروا نه لري، مګر ددې مثال پيدا کېدل ډېره مشکله خبره ده او دا صرف فرضي حيثيت لري.

## د اعتدال لار:

توحيد، رسالت او عقائد اصول دي او قطعي دلائل پر دې ولاړ دي، په دغو شيانو کي حق مذهبونه ټول سره شريک دي او پاته چي فروع شول، د چا دلائل چي پخپله ظني دي، په هغو کي پر يوه جانب کلک درېدل غلوه فی الدين ګڼل کيږي، نو له دې وجي حنفي مذهب ته دا ډول ترجيح ورکول چي د شافعي مذهب د باطل والي شک ځيني پيدا کيږي، ډېره غلطه خبره ده، په هغو مسئلو کي چي اختلاف دی يوه اړخ ته يقيني حق ويل او بل جانب يقيناً باطل ګڼل نه دی په کار، ځکه چي ډېر ځله د مرګ پر وخت د حقيقت انکشاف وشي، په دې وخت کي ته دا فرض کړه، هغه کار چي مخکي تا يقيني باطل باله، هغه صحيح ښکاره شو، نو په دې وخت کي شيطان ته موقع په لاس ورځي او کېدای شي چي درته ووايي چي ستا نو د ټولو يقيناتو همدا حال دی، حتی په توحيد او رسالت کي هم شک دراچوي، نو په دا ډول حالت کي د ايمان د برباد ېدلو اندېښنه رامنځ ته کيږي

حکيم الامت دا ډېر غلط کار بولي چي يو څوک راولاړ شي د خپل امام د مذهب يعني د امام ابوحنيفه د مذهب په دا ډول صفت لاس پوري کړي چي د

بل مذهب تنقیص ځيني وشي، حکیم الامت وايي:

**ما خپلو شاګردانو ته هم ويلي دي چې هيڅکله به دا ډول غلط کوښښ نه کوئ، چې د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په دې ډول صفت بيان کړئ، چې دده د بل ورور حضرت امام شافعي رحمه الله يا حضرت امام مالک رحمه الله او يا حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله تنقيص پکښې وشي.**

نوموړي امام ډېره ښه خبره کړې ده، ځکه چې دا څلور سره مجتهدين امامان د امت څراغان دي او ټوله يو تر بله سره ورونه دي، نو تاسي فکر وکړئ د يوه ورور په داسي ډول صفت کول چې د بل ورور تنقيص پکښې راځي عقلاً هم څومره بده خبره ده او بله خبره داده چې د دوی اختلاف زموږ او ستاسي په ډول اختلاف نه ؤ، که ته د دوی تاريخ مطالعه کړې، نو ډېر ژر به درته څرګنده شي چې دوی يو تر بله په څومره غټ احترام سره قائل وه.

## د نوو مسئلو او پيښو په هکله څه کول په کار دي:

اصل خبره داده چې د شريعت احکام پر درې ډوله وېشل کيږي:

۱- قطعي.

۲- اجتهادي.

۳- مصلحتي.



## د قطعي څخه مراد هغه احکام دي:

چې د قرآن او سنت څخه ثابت وي او قرآن او حديث ټول په دې معامله کي بالکل يو ډول او يک زبان وي، يا پر هغو د امت اجماع او اتفاق وي، بايد ووايم چې په دا ډول مسئلو کي د تغير هيڅ سوال نه پيدا کيږي، بلکي په دا ډول مسئلو کي ډېر ځله په تغير راوستلو سره انسان وکفر ته رسوي.

## دوهم ډول احکام اجتهادي نوميږي:

چې په ظاهره په دوی کي د نصوصو تر منځ اختلاف او تعارض په نظر راځي، يا د شريعت دوه بېل بېل نظرونه بيخي د دوو متضادو احکامو غوښتونکي وي، د مثال په توګه د مفقودالخبر د ښځي مسئله ده يعني د هغي ښځي حکم چې مېړه يې ورک شوی وي، د حضرت عمر رضي الله عنه د فيصلې مطابق څلور کاله وروسته ددغي بي بي نکاح د ورک شوي مېړه سره ماته ګڼل کيږي. مګر د حضرت علي رضي الله عنه د رايي مطابق به دغه بي بي تر خپله عمره انتظار کوي، نو ښکاره خبره ده چې په دې وجه د فقهاوو په رايو کي هم اختلاف رامنځته کيږي، په داسي احکامو کي که چيري يو وخت د يو خاص فقهي په مسلک عمل کول مشکل وي او د بلي فقهي ومسلک ته ورتلل او په هغه عمل کول ضرورت او مجبوري وګڼل شي، نو دغه ډول بدلون او د بلي فقهي په مسلک عمل کول د شريعت له رويه روا دی، همدا د پخوانيو بزرګانو او سلف صالحينو عمل پاته شوی دی.

## دريم مصلحتي احکام دي:

چي فقهاووا ومحققينو د خپلو خپلو زمانو د ښېګڼو او غوښتنو پر بناء او د خلکو د مشکلاتو د په نظر کي نيولو په وړاندي ټاکلی وي يعني هغوی د خپلو زمانو پر عرف، اخلاقو، عاداتو، طريقو، ضرورتونو او د سياسي حالاتو په نظر کي نيولو سره احکام متعين کړي وي.

بايد ووايم چي په دغه دريم قسم مسئلو کي چي د مصلحتي احکامو نوم ورکول شوی دی د عرف او حالاتو د بدلون په صورت کي په رايه کي بدلون پيدا کيږي او د دوی حکم هم ورسره بدليږي.

علامه شامي رحمه الله پر دغه موضوع يو مستقل او ځانګړی کتاب د "نشرالعرف" په نامه ليکلی دی، او ډېرو فقهاوو په مختلفو مسائلو کي پر دغو اصولو د عمل کولو په وخت کي ليکلي دي: لو کان ابو حنيفه رحمه الله عليه لقال کذا يعني دغه فقهاء ليکي چي که څه هم دغه فلانی رايه د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله د رايي خلاف ده، لېکن که چيري دی مبارک ژوندی وای نو ده به هم نن ورځ دا ډول ويلای.

پر دې ځای ددې خبري ويل نامناسبه نه برېښي چي د حالاتو او ضروورياتو پر بناء، نه د حرص او هوس پر بناء، که په ځينو احکامو کي د بلي فقهي و طرف ته رجوع وکړل شي، دا کار د تقليد او د تقليد د اصولو سره منافي نه دی، بلکي د پخوانيو بزرګانو او سلف صالحينو څخه هم په ډېرو ځايونو کي د دليل د قوت له وجي عدول ثابت دی لکه فقهاء چي فرمايي "فَلَوْ اَفْتٰى بِهٖ فِي



مَوْضُوْعِ الضَّرُوْرَةِ يَنْبَغِيْ اَنْ لاَّ بَاْسَ بِهٖ".

مشهور فقيه علامه ابن عابدين شامي رحمه الله ليکلي دي:

فَكَثِيْرٌ مِّنَ الْاَحْكَامِ يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الزَّمَانِ لِتَغَيُّرِ عُرْفِ اَهْلِهٖ اَوْ حُدُوْثِ ضَرُوْرَةٍ اَوْفَسَادِ اَهْلِهٖ بِحَيْثُ لَوْبَقِيَ الْحُكْمُ عَلٰى مَاكَانَ عَلَيْهِ اَوَّلاً لَلَزِمَ مِنْهُ الْمُشَقَّةُ وَالضَّرَرُ بِالنَّاسِ وَلَخَالَفَ الْقَوَاعِدَ الشَّرْعِيَّةَ الْمَبْنِيَّةَ عَلَى التَّخْفِيْفِ وَالتَّيْسِيْرِ وَدَفْعِ الضَّرَرِ وَالْفَسَادِ لِبَقَاءِ الْعَالَمِ عَلٰى اَتَمِّ نِظَامٍ وَاَحْسَنِ اَحْكَامٍ. (**رسائل ابن عابدين جلد۱ صفحه ۱۲۶**)

**ترجمه**: ډېر داسي احکام دي چي د زمانې په بدلون سره بدليږي، دا ځکه چي د اهل زمانې عرف بدليږي، نوي ضرورتونه منځ ته راځي، د زمانې په خلکو کي (د اخلاقو) فساد پيدا کيږي، که چيري شرعي حکم پر خپل زوړ حال پاته کړل شي، نو دا د مشقت باعث ګرځي او خلک به په ضرر او تکليف کي راښکيل شي او په دې صورت کي دغه پخوانی حکم د هغو شرعي اصولو او قواعدو خلاف واقع کيږي چي د سهولت، اسانی او د کائناتو د نظام په ښه، غوره او عمده طريقه باندي د چلولو لپاره د فساد او ضرر پر ازاله مبني دي يعني د ضرر او فساد د ليري کولو په خاطر اېښوول شوي او فرمايل شوي دي.

دا ډول په متاخرينو علماوو کي د حضرت شاولی الله محدث دهلوي رحمه الله

په اثاروکي د مصالحو او دلائلو پر بناء په مختلفو احکامو کي د مختلفو فقهو څخه د استفادې صورتونه بیخي ډېر په نظر راځي، همدا خبره په احنافو کي د محقق علامه ابن همام رحمه الله، په مالکیه وو کي د ابن رشد رحمه الله او په حنابله وو کي د حافظ امام ابن تیمیه رحمه الله او حافظ ابن قیم رحمه الله او په شوافعو کي د امام غزالي رحمه الله په اثارو کي ډېر زیات په نظر راځي

ځینو فقهاوو خو بنه سم په ډاګه ویلي دي چي که په یو ځانګړي ډول د شرعي دلیلونو د قوت پر بناء یا د ضرورت له وجې، نه د نفس او خواهش پر بناء د بلي فقهي مسلک ته سړی ورواوړي په دې کي هیڅ باک نشته لکه علامه شرنبلالي رحمه الله چي لیکلي دي:

فَتَحَصَّلَ مِمَّا ذَكَرْنَاهُ اَنَّهُ لَيْسَ عَلَى الْاِنْسَانِ الْتِزَامُ مَذْهَبٍ مُّعَيَّنٍ وَاَنَّهُ يَجُوْزُ لَهُ الْعَمَلُ بِمَا يُخَالِفُ مَاعَمِلَهُ عَلَى مَذْهَبِهِ مُقَلِّدًا فِيْهِ غَيْرَهُ مُسْتَجْمِعًا شُرُوْطَهُ...... الخ. **(ردالمحتار جلد اول صفحه ۷۰)**

همدارنګه ددې سوال په جواب کي چي آیا د یوې فقهي د مسلک سړی د بلي فقهي تقلید کولای شي که نه؟ مسلم الثبوت زیات غوره قول دا ګڼي چي هو کولای یې شي لکه چي فرمایي: ثُمَّ الْاَشْبَهُ اِنْ عَمِلَ تَحَرّٰى قَلْبِهِ فَلَا يَرْجِعُ عَنْهُ مَادَامَ ذٰلِكَ وَهَلْ يُقَلِّدُ غَيْرَهُ فِىْ غَيْرِهِ ؟ اَلْمُخْتَارُ نَعَمْ لِمَاعُلِمَ اَنَّ اِسْتِفْتَائَهُمْ مَرَّةً وَّاحِدَةً وَّاُخْرٰى غَيْرَهُ. **(مسلم الثبوت)**



حضرت عصام ابن یوسف رحمه الله چي د احنافو په مشرانو کي ګڼل کیږي د رفع الیدین په مسئله کي د شوافعو هم نظره ؤ، خاتم الفقهاء حضرت مولانا عبدالحی لکهنوي رحمه الله د هغوی د مسلک د رانقلولو پر موقع لیکي چي که یو حنفي مسلکه د بل اړخ د دلیلونو د مضبوطتیا او قوت په وجه د خپل امام مسلک پرېږدي، نو په دې وجه دغه سړی د تقلید له دائرې څخه نه وزي، بلکي دا د ترک تقلید په صورت کي عین تقلید دی، دی مبارک عصام ابن یوسف ته ګوته نیسي او وایي چي وګورئ عصام ابن یوسف رحمه الله ته چي د رفع الیدین د نه کولو په هکله یې د امام ابوحنیفه رحمه الله مسلک پرې ایښی دی، خو ددې سره سره بیا هم دی د احنافو څخه شمېرل کیږي، دی وایي چي ته دې ته فکر ولي نه کوې حضرت امام ابویوسف رحمه الله د دوو قلو اوبو د پاکېدو په سلسله کي د امام شافعي تقلید ونه کړ؟

تر دې وروسته علامه لکهنوي رحمه الله د زماني د جاهلو عوامو ته ګوته نیسي او وایي چي که یو څوک په یوه مسئله کي د دلیل د مضبوطوالي پر بناء د بل امام تقلید وکړي، نو دوی هغه د چا خبره شل اعتراضونه پر کوي او دغه سړی د مقلدینو د فهرست او لړۍ څخه باسي، تر دې وروسته نوموړی علامه لکهنوي رحمه الله لیکي چي عوام خو د ګیلې نه دي، هغوی خواران خو په څه نه پوهیږي، تعجب پر هغو خلکو په کار دی چي د علماوو په جامه کي د چارپایو په شان د جاهلانو پر پله روان وي او دوی دا ډول محققین علماء چي د دلیل د قوت پر بناء د خپل امام تقلید پرېږدي، د مقلدینو د فهرست څخه خارجوي نوموړی علامه لکهنوي رحمه الله

دغو خلکو ته په اشاره سره داسي ليکي:

ويعلم ايضا انّ الحنفىَ لو ترک فى مسئلة مذهب امامه لقوّة دليل خلافه لايخرج به عن ربقة التقليد بل هو عين التقليد فى صورة ترک التقليد الاترى الى عصام بن يوسف ترک مذهب ابى حنيفة فى عدم الرّفع ومع ذلک هو معدود فى الحنفيّة ويؤيده ماحكاه اصحاب الفتاوى المعتمدة عن اصحابنا من تقليد ابى يوسف يوما للشّافعىّ فى طهارة القلّتين والى الله المشتكى من جهلة زماننا حيث يطعنون على من ترک تقليد امامه فى مسئلة واحدة لقوّة دليلها ويخرجونه عن مقلّديه ولاعجب منهم فانّهم من العوام امّا العجب ممّن يتشبّه بالعلماء ويمشى مشيتهم كالانعام.

(الفوائدالبهيه فى تراجم الحنفية صفحه ۴۸، ۴۹)

## د جامد يا ړانده تقليد بيان:

### د امامانو په تقليد کي جمود ډېر سخت منع دی:

حکيم الامت فرمايي چي ځيني اهل تعصب د امامانو په تقليد کي داسي



جمود کوي چي د امام د قول په مقابل کي و صحيحو آحاديثو ته لا هيڅ اعتبار نه ورکوي او د خپل امام د قول په مقابل کي صحيح حديثونه به بې تکليفه ردوي، لوی خدای ﷻ مو دي د تل لپاره د داسي ړانده تقليد څخه وساتي.

د مثال په توګه يوه سړي به ويل: "**قال قال بسيار است مراقول ابوحنيفه در کار است**" تاسي فکر وکړئ په دې جمله کي د نبوي آحاديثو څومره غټه بې ادبي ده، د الله ﷻ څخه غوښتنه کوو چي د داسي جمود څخه مو وساته.

حکيم الامت وايي چي ددغو خلکو د طرز څخه دا معلوميږي چي دوی امام ابوحنيفه رحمه الله **مقصود بالذات** ګڼي، چي دا ډول عقيده د کفر ده، نو که څوک و دا ډول تقليد ته شرک فى النبوة ووايي موږ به يې ولي ملامتوو، مګر غلطي داده چي د داسي دوو درو جاهلانو حالت ته کتل او بيا ټول مقلدين د شرک فى النبوة په تور تورنول له حقيقته څخه ليري خبره ده، دا به يو پنځه جاهلان وي چي داسي عقيده به لري، نور مقلدين دي لوی خدای ﷻ له داسي خبرو څخه وساتي، زموږ په نزد هر تقليد روا نه دی د مثال په توګه که چيري د امام دليل بې له قياسه بل څه وي او دده د قول په مقابل کي صحيح حديث موجود وي، نو سمدلاسه د امام قول پرېښودل کيږي، او په حديث عمل کيږي، همدا زموږ د ټولو اهل سنتو مذهب دی.

حکيم الامت وايي: که چيري د امام د قول په خلاف د مقابل لوري سره صريح حديث موجود ؤ، نو په دې وخت کي بې له څه شکه په حديث عمل کول

واجب دی، او په دې ډول مسئله کي هيڅ ډول تقليد جائز نه دی، په داسي صورت کي هم پر تقليد پاته کېدل هماغه ډول تقليد دی چي په قرآن او حديث کي يې رد راغلی دی.

## که چيري د امام قول د يو ايت يا صريح حديث خلاف وي، مورته څه کول په کاردي:

**حکيم الامت وايي:** که چيري د امام ابوحنيفه رحمه الله قول د يوه آيت يا حديث خلاف وليدل شي نو سمدستي دغه قول پرېښودل پکار دي او په قرآن او حديث عمل کول فرض او واجب دي، ځکه چي اصلي دين خو قرآن او حديث دی او د تقليد مقصود هم همدا دی چي په قرآن او حديث په سهولت او سلامتيا سره عمل وکړل شي، نو چي په دواړو کي موافقت رانه شي په قرآن او حديث عمل کيږي او په داسي حالت کي هم پر تقليد پاته کېدل هماغه ډول تقليد دی چي قرآن او حديث يې رد کړی دی.

**(تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۲۰۸)**

**تر دې وروسته زياتوي:** که چيري د امام د قول په مقابل کي حديث موجود ؤ، نو د امام قول پرېښودل کيږي لکه په "ما اسکر کثيره فقليله حرام" کي چي شوی دی چي امام ابوحنيفه رحمه الله وقدر غير مسکر ته جائز ويلی دی او په حديث شريف کي ددې خلاف تصريح موجوده ده، نو دلته د امام صاحب قول پرېښودل کيږي، خو خبره داده چي ددې لپاره د ډېر زور تبحر او فکر



ضرورت دی، د هر چا لپاره دا ډېره مشکله ده چي معلومه کړي چي واقعي هم د امام سره يې له قياسه نور څه نشته او زموږ غوندي ناپوهانو لپاره خو بيا بېخي دا يوه فرضي خبره ده.

دا يو څه مشکله خبره ده چي وويل شي د مجتهد سره دليل نشته. که څه هم چي عقلي امکان خو دا شته چي د مجتهد سره دي دليل نه وي او يا دي ده په اجتهاد کي غلطي کړې وي، خو دا معلومېدل د هر سړي کار نه دی. مگر دا خبره سمه نه ده چي يو څوک ووايي: ښه چي داسي امکان شته نو بايد بالکل تقليد منع کړل شي. که تاسي فکر کړی وي يو ډاکتر او طبيب که هر څومره لوی ماهر هم وي، مگر د غلطی امکان يې نه شي ردېدای او نه څوک دا ويلای شي چي دده څخه غلطي نه شي کېدای، نو که چيري په داسي فرضي ځايونو کي د يو مجتهد اتباع پرېښودل شي، نو د دين کارخانه به گډه وډه شي، د مثال په توگه که دا فرض کړل شي چي ډاکتر او طبيب خو معصوم نه دی، غلطي ځيني کېدای شي، په دې وجه يو مريض د ډاکتر او طبيب علاج پرېږدي، نو ته ووايه آيا دې کار ته به يو څوک ښه ووايي؟!

## پر هيڅ امام باندي د حديثو د ترک الزام نه شي لګېدای:

حضرت شيخ الاسلام حافظ ابن تيميه رحمه الله په خپل کتاب "دفع الملام عن الائمة الاعلام" کي فرمايي چي وجوه دلالت دومره ډېر دي چي پر هيڅ مجتهد باندي دا الزام نه شي لګېدای چي ده د حديثو انکار کړی دی. که په دې هکله

بشه تفصيل غوارئ نو د شيخ الاسلام نوموړي كتاب ته رجوع وكړئ، همدارنګه حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله فرمايلي دي چي په حديثو كي ما ته د امام ابو حنيفه رحمه الله مذهب داسي رامعلوم دى، لكه په نصف النهار كي آفتاب، يا په بل عبارت په سره غارمه كي لمر.

زه ابو المختار وايم چي د اعلاء السنن مصنف دي الله ﷻ د آخرت په ښاديو موړ كړي! ده څومره لوى خدمت وكړ او د مخالفو خلكو هغه ټولي خبري يي غلطي ثابتي كړې چي ويل به يې: **"د حنفي مذهب اكثره دلائل پر ضعيفه حديثونو او يا پر غير ثابته حديثونو ولاړ دي"**، همدارنګه مولانامحمد قاسم صاحب نانوتوي رحمه الله فرمايلي دي چي زه د متأخرينو د تفريعاتو په هكله څه نه شم ويلاى، مګر خاص د امام صاحب چي څومره اقوال دي د هغوى په هكله دا دعوه كولاى شم چي يو هم داسي نه دي چي په حديث دي نه وي ثابت.

## په يوه مسئله كي د صريح حديث طلبول:

كه چيري يو څوک دا دعوه وكړي چي زه به په ټولو كارونو كي پر احاديث منصوصه وو باندي عمل كوم او په دې هكله فتوى وركوم يعني اجتهاد او قياس ته ضرورت نشته، نو زه به د معاملاتو، فسوخ، شفعه، رهن او داسي نورو شيانو په باره كي څو سوالونه ځيني وكړم، دى دي د آحاديث منصوصه صريحه صحيحه وو څخه جوابونه راكړي، حكيم الامت وايي چي قيامت به راورسيږي، خو دى به ددې جوابونه رانه كړي، دى مجبوره دى، يا به د امام د



قول څخه جواب راكوي، چي دي ته تقليد ويل كيږي او يا به وايي چي په شريعت كي ددې شيانو په هكله حكم نه دى راغلى، چي دده دا خبره د **"اليوم اكملت لكم دينكم"** سره مخالفه ده، نو بايد ووايم چي ددې څخه د قياس او استنباط جواز هم معلوميږي. **(اشرف الجواب)**

ځيني خلک وايي چي د احنافو اكثره دلائل پر ضعيفه حديثونو او ځيني بيا پر غير ثابته حديثونو ولاړ دي او د دوى په مقابل كي د نورو سره قوي او راجح حديثونه موجود دي، نو راجح ولي بايد پرېښودل شي او په مرجوح عمل وكړل شي؟

ددې جواب دادى چي دا وينا كول چي د دوى اكثره دلائل ضعيف دي، غير مسلمه خبره ده ځكه چي په ډېرو مسائلو كي د صحاح سته په احاديثو سره استدلال دى، دا خبره د كتابونو د كتلو وروسته په ښه ډول معلوميږي، او كوم حديثونه چي په نورو كتابونو كي دي په هغوى كي هم اكثره د محدثينو د قاعدو له رويه صحيح دي ، ځكه چي د صحيحو حديثونو حصر په صحاح سته وو كي يا د صحاح سته وو حصر په احاديثو صحيحه وو كي ضروري نه دى لكه پر اهل علمو چي دا خبره پټه نه ده.

## د مثال په توګه هغه كتابونه چي ټول حديثونه يې صحيح دي په لاندي ډول دي:

۱- موطاء امام مالک. ۲- صحيح بخاري. ۳- صحيح مسلم. ۴- صحيح ابن حبان. ۵- صحيح حاكم. ۶- مختاره ضياء مقدسي. ۷- صحيح ابن خزيمه.

۸- صحیح ابن عوانه ۹- صحیح ابن سکن. ۱۰- منتقی ابن جارود.

پورتني کتابونه هغه ډول کتابونه دي چې ټوله حدیثونه یې صحیح دي، که څه هم چې په صحاح سته وو کې خو د نومړو کتابونو څخه صرف دوه کتابونه داخل دي چې یو صحیح بخاري او بل صحیح مسلم دی.

ترمذي، نسائی، ابوداؤد او ابن ماجه ته صحیح کتابونه ځکه ویل شویدي دا په دې معنی چې د دوی اکثره حدیثونه صحیح دي، که څه هم چې په دغو کې هغه کتابونه چې ټوله حدیثونه یې صحیح دي یوازې بخاري او مسلم دی.

که د حدیثو د کتابونو په هکله سرسرکې معلومات غواړئ نو خیرالاصول فی حدیث الرسول ﷺ مطالعه کړئ چې تصنیف د حضرت مولانا خیرمحمد جالندهري رحمه الله دی. مګر ژباړه او تحقیق یې زما عبدالرؤف حقیار دی.

حکیم الامت وایي چې د امام ابوحنیفه رحمه الله اقوال **اقرب الی الانتظام** دي شاهانه احکام دي او د مخکې څخه داسې بندوبست ورته شوی دی چې په آینده کې خرابي نه راځي، یوه سیاست پوه انګریز لیکلي دي چې سلطنت د امام ابوحنیفه رحمه الله پر فقه ډېر ښه چلېدای شي، د یوه سیاسي شخص دا خبره کول ضرور د غټې تجربې خبر ورکوي، وګورئ د امام صاحب دا قول دی چې وایي "**د آلات لهو ماتول د سلطان کار دی د واعظ یا بل چا کار نه دی، که یې چیرې بل څوک مات کړي نو ضمان لازمیږي**".

تاسي فکروکړئ ربښتیا هم که بې له سلطانه بل څوک دغه کار وکړي نتیجه به یې داسې چې یو خو به دا کار بند نه کړي او بل لا دادی چې جنګ اوجدل به



تر ډېره لیرې ځایه ورسیږي، همدارنګه د حدودو اقامت د سلطان سره خاص دی. (**تحفة العلماء جلد۲ صفحه ۳۱۴**)

## یو څو خبرې د غیر مقلدینو په هکله:

نن سبا زمونږ په هیواد کې ځینې ناپوه خلک پیدا شوي دي دا دعوه کوي او وایي چې مونږ د حق پیروان یو، مګر د امامانو په شان کې بې ادبي کوي او پر دوی د حدیثو د مخالفت تور لګوي. لیکن دا خلک که وپلټې نو ډېر ژر به درته معلومه شي چې صرف دا څو خبرې یې زده کړې دي نور نو خواران په هیڅ نه پوهیږي.

دا خلک اکثره پر سلفو بد ګومانه دي ، ژبه اوږدوي او وایي چې سلفو هم د حدیثو مخالفت کړی دی، په دوی کې د بدګمانۍ مرض ډېر زیات دی، نور خلک د حدیثو مخالفین بولي او خپل ځان بیا عامل بالحدیث

دا ډول خبرې او دا ډول نظریې ډېرې خطرناکه دي چې انجام یې سرکښې او د بزرګانو په شان کې بې ادبي یې اولین قدم دی. حکیم الامت فرمایي چې د اهل حدیثو په جماعت کې دوه کارونه قابل اصلاح دي یعنې اصلاح ته ضرورت لري، یو بدګماني دوهم د امامانو او د هغوی د صحیحو مقلدینو په شان کې بد ویل، ځکه چې امامانو (رحمهم الله تعالی) قواعد او اصول د قرآن او حدیث څخه را ایستلي دي او مسائل یې پر دوی متفرع کړي دي او دا هم ښکاره خبره ده چې احادیث صرف په بخاري شریف کې حصر نه دي، نو که چیرې په غیر مقلدینو کې دا دوه عیبه نه وي او د اتباع هوا څخه پاک وي او

په عمل کي مخلص وي، نو بیا خو ویلای شو چي په صرف دې خبري سره چي دوی د تقلید شخصي د وجوب څخه انکار کوي د اهل سنت څخه نه وزي، ځکه چي ځیني محدثین هم د تقلید شخصي د عدم وجوب قائل دي.

حکیم الامت اشرف علي تهانوي رحمه الله د تحفة العلماء د دوهم جلد په ۲۳۱ صفحه کي فرمایي:

**که چیري اهل حدیث صحیح تقلید حرام ونه بولي او د بزرګانو په شان کي بد زباني او بدګماني ونه کړي نو دا څه خبره نه ده، دا هم د ځینو سلفو مسلک پاته شوی دی، مګر هو، له دوی سره د زړه په پوره ډول جوړېدل او نه جوړېدل بېله خبره ده.**

## د څلورو امامانو مبارکانو د پیدا کېدلو تاریخ:

حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په (۸۰) هجري سنه کي پیدا شوی دی او حضرت امام مالک رحمه الله په (۹۵) هجري سنه کي او حضرت امام شافعي رحمه الله په (۱۵۰) هجري سنه کي او حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله بیا په (۱۶۴) هجري سنه کي پیدا شوی دی، مطلب دادی چي د امام ابوحنیفه رحمه الله تر پیدا کېدلو پنځلس کاله وروسته امام مالک رحمه الله پیدا شوی دی، او پنځه پنځوس کاله وروسته امام شافعي رحمه الله او څلوراتیا کاله وروسته بیا امام احمد بن حنبل رحمه الله پیدا شوی دی. **(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه ۲۲)**



# د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله حیثیت

دا چي دا کتاب د حضرت امام بوحنیفه رحمه الله د مذهب مطابق دی نو په دې وجه چي بحث اوږد نه شي یوازي د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله د ژوند حالات رانقلوو: فتاوی دارالعلوم دیوبند په دې هکله لیکي: له یوه طرفه امام اعظم رحمه الله ته د تابعي والي شرف حاصل دی چي دا شرف و نورو دریو امامانو یوه ته لا هم حاصل نه دی، له بله طرفه امام اعظم رحمه الله تر ټولو مشر هم و، حضرت ملاعلي قاري رحمه الله په دې هکله داسي لیکي:

الحاصل ان التابعين افضل الامة بعد الصحابة ... فنعتقد ان الامام الاعظم رحمه الله والهمام الاقدم ابوحنيفه افضل الائمة المجتهدين واكمل الفقهاء فی علوم الدين ثم الامام مالک رحمه الله فانه من اتباع التابعين ثم الامام الشافعي رحمه الله لكونه تلميذ الامام مالک بل تلميذ الامام محمد رحمه الله ثم الامام احمد بن حنبل فانه كالتلميذ للشافعي رحمه الله. **(شرح اكبر صفحه ۱۴۶)**.

**ترجمه**: حاصل دا چي د تابعینو درجه د صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه وروسته په ټول امت کي تر ټولو لوړه ده، په دې وجه سره زموږ دا اعتقاد دی چي د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله مرتبه په ائمه مجتهدینو کي تر ټولو لوړه ده او امام اعظم رحمه الله د دیني علومو په فقهاوو کي تر ټولو لوړ دی، ددې څخه وروسته د امام مالک رحمه الله درجه ده، دی د تبع تابعینو په صف کي شامل دی او د امام مالک رحمه الله څخه وروسته بیا د امام شافعي رحمه الله درجه ده ځکه چي دی د امام مالک رحمه الله بلکي د امام محمد رحمه الله شاګرد وُ، او د امام شافعي رحمه الله څخه

وروسته بیاد امام احمد بن حنبل ﷫ درجه ده څکه چي دی بیا د امام شافعي ﷫ د شاګرد په درجه کي دی

**پر یوه یوه مسئله بحث:** امام شعراني ﷫ هم د امام صاحب د استنباط د طرز تذکره (یادونه) په المیزان نومي کتاب کي کړې ده او تقریباً هغه الفاظ علامه شامي ﷫ هم په دې ډول را اخیستي دي: فکان اذا وقعت واقعة شاورهم وناظرهم وحاورهم وسألهم فیسمع ماعند هم من الاخبار والاثار ویقول ماعنده وینا ظرهم شهرا اواکثر حتی یستقراخرالاقوال فیثبته ابویوسف حتی اثبت الاصول علی هذا المنهاج شوری لانه تفرد بذلک.

(ردالمحتار جلدا صفحه ۶۲)

**ترجمه**: کله چي به یوه واقعه (مسئله) پېښه شوه نو امام ابوحنیفه ﷫ به د علم و فن د خپلو ټولو ملګرو سره مشوره، بحث او مباحثه وکړه او یو تر بله به یې په دې هکله نظرونه سره واورول، بیا به یې هغوی ته وفرمایل: که چیري ستاسي سره په دې هکله یو حدیث یا د صحابه کرامو ﷺ اقوال موجود وي نو راوړاندي یې کړئ، بیا به یې خپله د حدیثو ذخیره مخي ته کښېښودله او تر هغه وروسته به یوه میاشت او یاتر دې هم زیات پر دغه مسئله بحث وکړل شو، تر هغو پوري چي اخري خبره به فیصله کېده، خبره چي به فیصله شوه نو به هغه فیصله شوې مسئله امام ابویوسف ﷫ قلم بند کړل یعني نویشته به یې کړل، په دې ډول د شوری له لاري اصول منضبط او تاکل شوي دي، دا سي نه دي شوي چي په خپله یوازي یې اصول منضبط او ټاکلي دي.



فتاوی دارالعلوم دیوبند لیکي چي د "اخبار واثار" الفاظ دا رابښیي چي د دغو علماوو طریقه دا وه چي تر ټولو مخکي به یې د کتاب او سنت هغه ذخیره چي د دوی سره موجوده وه هغه به اورېدل کېده، بیا د مجلس د صدر (امام ابوحنیفه ﷫) په علم کي چي به د کتاب او سنت کومه خزانه محفوظه وه هغه به مجلس ته وړاندي کېده. له دې څخه وروسته به د مجلس هر سړي د کتاب او سنت په رڼا کي پر هغه مسئله چي مجلس ته به وړاندي شوې وه بحث کاوه او خپله رایه به یې ښکاره کوله، د مجلس نورو کسانو به ډول ډول اعتراضونه پر کول، بیا به هر یوه د خپل فهم او فکر مطابق، مګر د کتاب او سنت په رڼا کي جوابونه ورکول، په خپله امام ابوحنیفه ﷫ به هم په دغه بحث او مباحثه کي برخه اخیستله، په دې ډول لکه مخکي چي تاسو ته تېر شول، چي په میاشتو به بحث پر جاري ؤ، څه وخت چي به د ټول مجلس پر یو اړخ اتفاق راغی نو هغه به په کتاب کي درج کړل شوه.

ښه نو اوس تاسي په خپله فکر وکړئ، که یوه سړي دا کار پر خپله ذمه اخیستی وای نو دا سمه وه چي د غلطۍ ډېر احتمال به یې درلودای مګر دا چي څلوېښت، څلوېښت جید او ډېر ماهرین علماء په پوره سنجیدګۍ او دیانتدارۍ سره په هفتو او په میاشتو پر یوه یوه اصل د کتاب او سنت رسول الله او د صحابه کرامو د اقوالو په رڼا کي بحث او مباحثه وکړي، نو د غلطۍ سوال به یې له کومي خوا پیدا شي.

(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد ۱ صفحه ۲۴)

نوموړې فتاوی لږ وړاندي لیکي چي په هر حال دا ټوله ستر اشخاص بیا هم

انسانان دي، نو لـه دې وجي امكان لري چي يو ځاى نه يو ځاى غلطي ځني پيښـه شوې وي، يـا د اياتونو او احاديثو څخه د استنباط او استخراج په وخت كي خطا ځني واقع شوې وي، نو په دې سبب د مجلس صدر دا ضروري وبلل چي د انسان د هيري، خطا او محدود نظر څخه بايد صرف نظر په هيڅ صورت ونه كړل شي، نو په دې وجه يې دا اعلان وكړ: كه چيري يوه مستنبطه مسئله د كتاب او سنت خلاف ثابته شي نو هر مسلمان ته اختيار دى. بلكي د هر مسلمان فريضه ده چي دغه پرېږدي او صراحتًا د حديث څخه چي دغه مسئله په څه ډول ثابتېږي په هغه دي عمل وكړي.

**(فتاوى دارالعلوم ديوبند جلد ۱ صفحه ۲۵)**

فقـد صـح عن ابى حنيفة انه قال اذا صح الحديث فهو مذهبى وقد حكى ذالک الامام عبدالبرعن ابى حنيفة وغيره من الائمة ونقله ايضًا الامام الشعرانى.

**(عقود رسم المفتى صفحه ۱۷)**

**ترجمه**: دغه روايت د امام ابوحنيفه څخه بالكل ثابت دى چي ده فرمايلي دي: كله چي حديث صحت ته ورسيږي، بس همدغه حديث زما مذهب دى، دا خبره امام عبدالبر او نورو د دين امامانو د امام ابوحنيفه په باب كي كړې ده، او امام شعراني هم دا رانقل كړې ده.

**د امام اعظم ابوحنيفه اعلان**: مختلفو حضراتو د صاحب هدايې څخه دغه روايت رانقل كړى دى چي وايي: سـئل ابـو حنيفه اذا قلت قولا وكتاب الله يخالفه قال اتركوا قولى بكتاب الله فقيل اذاكان خبر الرسول الله ﷺ



يخالفـه قال اتركوا قولى بخبر رسول الله فقيل اذا كان قول الصحابة يخالفه قال اتركوا قولى بقول الصحابة . **(عقدالجيد للشاولى الله صفحه ۵۳)**

**ترجمه**: د امام ابوحنيفه رحمه الله څخه پوښتنه وشوه كه چيري ستا يو قول د كتاب الله سره مخالف راغى نو په دې صورت كي بايد څه وكړل شي؟ امام ابوحنيفه رحمه الله ورته وفرمايل: د كتاب الله په مقابل كي زما قول پرېږدئ، بيا ورته وويل شوه كه د رسول الله ﷺ د حديث مخالف راغى، څه بايد وكړل شي؟

بيـا امـام ابوحنـيفه رحمه الله ورتـه وفـرمايل: د جـنـاب رسـول الله ﷺ د قـول په مقابل كي زما قـول پرېږدئ، بيا ورتـه وويـل شـوه، كـه چيري د صحابه كرامو رضي الله عنهم د قـول مخـالف راغـى؟ بيـا امـام ابوحنـيفه رحمه الله ورتـه وفـرمايل: د صحابه وو د قـول پـه مقـابل كي زمـا قـول پرېږدئ، يعنـي زمـا قـول پـه هغـه صـورت كي هـيڅ اعتبار نـه لـري چي پـه دغـو شـيانو كـي د يـوه مخالف ثابت شي.

دا بـالكل درسـته خـبره ده، ځكـه چي اصـل ديـن خـو قـران او حديـث دى او د تقلـيد مقصـود هـم همـدا دى چي پـه قـران او حديـث پـه سـهولت او سـلامتيا سـره عمـل وكـړل شـي، خـو چي پـه دواړو كي موافقـت رانـه شـي نـو پـه قـران او حديـث عمـل كيږي، او پـه داسي صـورت كي هـم پـر تقلـيد پاتـه كېدل هماغـه ډول تقلـيد دى چي شـرک ورتـه ويـل شـوى دى. اوقـران او حديث يې په ډېر شدت سره رد كړى دى.

فـتاوى دارالعلـوم ليكـي چي امـام ابوحنـيفه رحمه الله پـر دې بسـوالى ونـه كـړ، بلكـي و خـپلو ملګـرو او شـاګردانو تـه يې حكـم وكـړ چي تاسـي

خامخا پر یوه خبره باندي مه ټینګېږئ بلکي که چیري په یوه مسئله کي یو وزني او قابل اعتماد شرعي دلیل پیدا شي نو سمدستي هغه اختیار کړئ او دا خبره نورو خلکو ته هم ورسوئ، ځکه چي اصل مقصود په کتاب، سنت او د صحابه وو په اقوالو باندي عمل کول دي، پر خپله خبره ضد نه دی په کار

(فتاوی دارالعلوم دیوبندجلد ۱ صفحه ۲۶)

فاعلم ان ابا حنيفة من شدة احتياطه وعلمه بان الاختلاف من اثار الرحم قال لاصحابه ان توجه لكم دليل فقولوا به.

(عقود رسم المفتی صفحه ۱۶)

فتاوی دارالعلوم دیوبند لیکي چي د امام ابوحنیفه رحمه الله ملګرو او شاګردانو ده د وصیت سره سم داسي هم کول چي کله به په یوه مسئله کي د دلائلو او براهینو په رڼا کي یو شک پیدا شو نو هغه به یې سمدستي پرېښودل، د کتاب او سنت په دائره کي چي به کوم صورت صحیح په نظر راتلی په هغه به یې عمل کاوه، لکه ردالمحتار چي وایي: وقد يتفق لهم ان يخالفوا اصحاب المذهب لدلائل و اسباب ظهرت لهم. (ردالمحتار)

یعني دې خلکو د دلائلو او براهینو د ښکاره کېدلو په وړاندي د اصحاب مذهب سره پرمخالفت اتفاق کړی دی.

دا خو د امام ابوحنیفه رحمه الله د اصحابو او شاګردانو حال ؤ چي په ډېرو مسئلو کي دوی د خپل فهم او دلائلو د قوي والي له امله د خپل امام مخالفت کړی دی، له بله طرفه په خپله د امام ابوحنیفه رحمه الله دا حال ؤ، که چیري د یوې



فیصلې شوي مسئلې خلاف به یوه بله رایه د کتاب او سنت په رڼا کي وزني معلومه شوه او هغه به کتاب او سنت ته ډېره ور نژدې وه نو ده مبارک به هغه فیصله شوې مسئله پرېښودله او د هغې ځخه به یې رجوع کوله او د دوهم صورت قائل به شو، ډېري داسي مسئلې شته چي له هغوی ځخه د امام ابوحنیفه رحمه الله رجوع ثابته ده پر اهل علمو دا خبره پټه نه ده.

(فتاوی دارالعلوم دیوبندجلد ۱ صفحه ۲۶)

## د کتاب او سنت په مقابل کي د رایي سخت رد: دا خبره په یاد ولرئ چي امام ابوحنیفه رحمه الله به د هغې رایي ډېر په سختۍ سره رد کاوه کومه چي به د کتاب او سنت ځخه مستفاده نه وه، بلکي هغې ته به یې ضلالت او ګمراهي ویل.

وقدروى الشيخ محى الدين فى الفتوحات المكيه بسنده الى الامام ابى حنيفة رحمه الله انه كان يقول اياكم والقول فى دين الله تعالى بالرأى وعليكم باتباع السنة فمن خرج عنها ضل.

(کتاب المیزان للشعراني جلد ۱ صفحه ۵۰)

**ترجمه**: په فتوحات مکیه کي شیخ محی الدین مسلسل تر امام ابو حنیفه رحمه الله پوري د خپل سند د بیانولو ځخه وروسته دده دغه قول رانقل کړی دی چي امام ابوحنیفه رحمه الله فرمایلي دي: د الله جل جلاله په دین کي صرف د رایي پر بنیاد د حکم کولو ځخه ځانونه وساتئ او پر خپل ځان باندي د سنت پیروي لازمه کړئ او څوک چي له دې ځخه خارج شو، بس هغه ګمراه شو.

همدارنګه امام ابوحنیفه رحمه الله دا هم فرمایلي دي: تر څو پورې چې په شریعت کې د یوې خبرې ثبوت لاس ته رانه شي هغه پر ژبه راوستل هم ګناه ده، لکه امام شعراني چې وايي: وکان یقول لا ینبغي لاحد ان یقول قولا حتی یعلم ان شریعة رسول الله ﷺ تقبله.

(کتاب المیزان للشعراني رحمه الله جلد ۱ صفحه ۵۱)

فتاوی دارالعلوم دیوبند د کتاب المیزان په حواله د امام ابوحنیفه رحمه الله په اړوند زیاتوي: وکان یجمع العلماء فی کل مسئلة لم یجدها صریحة فی الکتاب والسنة ویعمل بما یتفقون علیه فیها. (کتاب المیزان للشعراني جلد ۱ صفحه۵۱)

یعني کومه مسئله چې به په کتاب او سنت کې صراحتاً نه پیدا کېده نو ددې لپاره به یې ټول علماء را جمع کړل او پر څه ډول چې به د ټولو اتفاق راغی، په هغه به یې عمل فرمایه.

همداسې به یې د استنباط او استخراج پر وخت باندې کول، د خپل عصر د علماوو سره به یې مشوره او د هغوی اتفاق به یې ضروري ګڼه. یوازې به یې هیڅکله په دې هکله قدم نه پورته کاوه:

وکذالک یفعل اذا استنبط حکما فلایکتبه حتی یجمع علیه علماء عصره فان رضوه قال لابی یوسف اکتبه.

، یعني کله چې به د یو حکم استنباط مقصود و ، نو تر هغه وخته پورې به یې په کتاب کې نه درجاوه تر څو چې به یې علماء راجمع کړي نه وه او مشوره به یې ورسره کړې نه وه، علماء به یې راجمع کړل او له هغوی سره به مشوره وکړه، څه وخت چې به د ټولو علماوو پر یوه مسئله اتفاق راغی او



خوښ به یې کړ، نو امام ابویوسف رحمه الله ته به یې د نوموړې مسئلې د لیکلو حکم وکړ.

خیرات الحسان لیکي چې امام ابوحنیفه رحمه الله به تر ټولو مخکې قران شریف اختیاراوه، که چیرې به هغه شی په قران شریف کې پیدا نه شو نو پر نبوي سنت به یې عمل کاوه، او که به په سنت کې هم پیدا نه شو، نو د صحابه وو اقوال به یې اختیارول، که چیرې به په یوه مسئله کې د صحابه وو تر منځ اختلاف راغلی و، نو په هغه کې چې به کوم قول ډېر و قران او حدیث ته نژدې معلومېدی هغه به یې اختیاراوه او که به په یوه مسئله کې د صحابه وو هم هیڅ قول په لاس رانه غی، نو به یې په تابعینو کې د چا قول نه اختیاراوه ، بلکې په خپله به یې اجتهاد کاوه، لکه نورو خلکو چې به کاوه.

د خیرات الحسان عربي الفاظ په دې ډول دي چې فتاوی دارالعلوم دیوبند هم رانقل کړي دي: فقد جاء عن ابی حنیفة من طرق کثیرة ماملخصه انه اولایأخذبما فی القرآن فان لم یجد فبالسنة فان لم یجد فبقول الصحابة فان اختلفوا اخذ بما کان اقرب الی القرآن اوالسنة من اقوالهم ولم یخرج عنهم فان لم یجد لاحدمنهم قولالم یأخذ بقول احد من التابعین بل یجتهد کما اجتهدوا.

(الخیرات الحسان صفحه ۲۹)

**د دین مخصوص خادمان:** دا یو حقیقت دی چې د علماء کرامو په خاص ډول دوو طبقو د دین ډېر زیات خدمت کړی دی، یوه د محدثینو طبقه ده چې د دوی ټوله مشغله د نبوي احادیثو حفاظت او صیانت و ، یعني دې طبقې د نبوي احادیثو د روایاتو او د هغوی د بیان او ضبط اهتمام کاوه او دوی به

پر اسنادو او د حدیثو پر الفاظو باندي ژور نظر درلود، دوهمه طبقه د امت د فقهاوو وه دوی د قران او حدیث څخه مسائل او احکام استنباط او استخراجول او د حدیثو تر الفاظو به یې د احادیثو و معناګانو ته ژور فکر کاوه، قواعد او اصول به یې ځیني را ایستل.

(فتاوی دارالعلوم دیوبندجلدا صفحه ۳۳)

**د صاحب فتوی صحابه کرامو رضي الله عنهم تعداد:** صحابه کرام په خپل فهم، فراست، ذهانت او ذکاوت کي مختلف وه، په دوی کي چي څوک صاحب فتوی وه د هغوی د تعداد په هکله د حافظ ابن قیم رحمه الله دا بیان دی چي هغوی څه دپاسه یو سل او دېرش وه په دوی کي ښځي او سړي دواړه شامل وه. په دغو یو سل او دېرشو کي اووه یې په مکثرینو کي شمارل شوي دي، دا هغه بزرګان صحابه کرام دي چي د دوی فتوا ګاني د حدیثو په کتابونو کي په کثرت سره را نقل شوي دي او ویل شوي دي که چیري د دغو ټولو حضراتو فتواګاني سره را یو ځای کړل شي نو په دوی کي به د هر یوه د فتوی تعداد دومره ډېر شي چي غټ غټ کتابونه به ځیني جوړ شي. حافظ ابن قیم رحمه الله لیکلي دي: ابوبکر بن موسیٰ بن مامون د حضرت عبدالله ابن عباس فتواګاني را جمع کړي نو له هغوی څخه شل جزه جوړ شول، ددغو اوو صحابه کرامو نومونه دا دي: حضرت عمر، حضرت علي، حضرت عبدالله ابن مسعود، ام المؤمنین حضرت بي بي عائشه، حضرت زید بن ثابت، حضرت عبدالله ابن عباس او حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنهم.

**د فقهي برکت:** د حضرت عبدالله ابن عباس بیان دی چي رسول الله ﷺ



فرمایلي دي: فقیه واحد اشد علی الشیطان من الف عابد. (رواه ترمذي)
یعني د یوه فقیه خطا ایستل د شیطان لپاره تر زرو عابدانو زیات سخت دي.
د نورو شیانو سره په دې حدیث کي دې طرف ته هم اشاره ده، که چیري فقهاء په مسائلو کي په صحیح ډول سره رهنمایي نه وای کړې نو شیطان به انسانان پر غلطه لاره روان کړي وای، همدا وجه ده شیطان چي څومره د یو فقیه څخه بېربري هغومره د عابد څخه نه بېربري.

(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد ۱ صفحه ۳۱)

**د فقهي تعریف:** فقیه هغه عالم ته ویل کیږي چي د شریعت احکام واضح او روښانه کړي، حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله فرمایلي دي: چي د حلال ؤ حرام، د جائز ؤ ناجائز د پوهېدلو نوم فقه ده، او د حضراتو صوفیه کرامو په نزد د علم او عمل مجموعې ته فقه ویل کیږي، دا چي فقهاء پر څو طبقو وېشل شوي دي او د څلورو سرو مذاهبو مشهور فقهاء څوک دي او د فقهاوو د اختلاف په صورت کي څه کول په کار دي او همدارنګه د څلورو سرو مذاهبو مشرانو امامانو مناقب او داسي نور بحثونه به د دې کتاب په نورو جلدونو کي ان شاء الله په تفصیل سره بیان کړل شي، خو اوس دلته د امام ابوحنیفه رحمه الله د تاجرانه ځانګړتیاوو په هکله یو څه وینا:

## د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله تاجرانه خصوصیات

حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله نه یوازې دا چي د لوړې درجې عالم ؤ، بلکي

خورا ښه تاجر هم ؤ او په دې هکله يې نړۍ ته يو زرين تاريخ پرې ايښی دی، د خورا غني زړه څښتن ؤ، حرص او طمعې هيڅکله غلبه نه ده پر پيدا کړې. ښايي د دې يوه وجه دا وي چې دی مبارک په يوه شتمنه او مالداره کورنۍ کې زيږېدلی دی او د فقرو فاقې د ذلت څخه خوندي او محفوظ پاتې شوی دی.

دی مبارک خورا امين ؤ او په امانتدارۍ کې يې ډېر ښه نوم درلود. او هيڅکله يې يوازې خپله شخصي ګټه په پام کې نه ده نيولې، ډېر سخي او د بخل د ناروغۍ څخه بېخي پاک ؤ، په اخري اندازه متدين، عابد، صائم النهار او قائم الليل ؤ، د غريبانو او مظلومانو پوره همکار او د ښو اخلاقو يوه اعلی نمونه وه، دده مبارک دغو اوصافو په مجموعي توګه سره د ده پر تجارتي معاملاتو ډېر اثر غورځولی ؤ او دی يې په نړيواله سطحه د يو ځانګړي تاجر په حيث وړاندې کړ، ډېرو خلکو دی مبارک د حضرت ابوبکر ؓ په ډول يو تاجر باله او دی به يې د حضرت صديق ؓ سره مشابه کاوه، دا ځکه چې دی د حضرت صديق ؓ د تجارتي مسلک پيرو ؤ، ده مبارک به د رانيولو پر مهال هم د خرڅولو په ډول د امانتدارۍ او ديانتدارۍ لحاظ کاوه.

اشرف الهدايه ليکي: يو وخت يوه ښځه د کاليو خرڅولو لپاره ده مبارک ته راغله، ده پوښتنه ورڅخه وکړه چې قيمت يې څو دی؟ هغې ورته وويل: قيمت يې سل روپۍ دی، ده ورته وويل: ددې قيمت تر سلو زيات دی، هغې دا قيمت لږ لږ زياتاوه، تر دې چې تر څلور سوه پورې يې ورساوه، پر دې سربېره ده مبارک ورته وويل: څلور سوه هم پر دې کاليو لږ دي، هغې ښځې دده مبارک دا خبره يوه مسخره وګڼله او ورته يې وويل: ولې صاحبه! ته په ما پسخند



وهې که څه؟! ده مبارک ورته وويل: ولاړه شه د کاليو د قيمت کولو لپاره يو سړی راوله، هغه و چې يو سړی راغی او دغه کالي يې په پنځه سوه قيمت کړل او تر دې وروسته ده مبارک ورڅخه رانيول او ښځه پر خپله مخه ولاړه.

اوس تاسې اندازه ولګوئ، ده د رانيوونکي سره سره د پلورونکي ګټه هم په نظر کې نيوله، د هغې د ناخبرتيا څخه يې ناجائزه ګټه نه پورته کوله، بلکې هغې ته يې مناسبه لارښوونه کوله. دی مبارک دومره مهربانه پلورونکی ؤ، چې کله به رانيوونکی کمزور ورته معلوم شو او يا به يې د هغه سره دوستانه اړيکې درلودې او يا به هغه شی خاص په ګټه کې ورته پروت ؤ نو به تر خپلې ګټې تېرېدی، تومورۍ کتاب ليکي: يو وخت يوه ښځه ورته راغله او ورته يې وويل: زه ډېره کمزورې يم، دغه پيسې واخله او دغه فلانی ټوکر په هغه قيمت راکړه چې تاته تمام شوی دی يعنې ګټه مه پر کوه! ده مبارک ورته وفرمايل: سمه ده دغه ټوکر په څلور درهمه واخله، هغې ښځې چې داسې لږ قيمت واورېدی نو يې ورته وويل: زما غوندې سپين سرې ښځې سره مسخرې مه کوه! ده ورته وفرمايل: دا مسخرې نه دي حقيقت دی ځکه چې ما دوه ټوکره رانيولي وه، يو مې خرڅ کړ چې اصلي قيمت يې وصول شو، صرف څلور درهمه يې پاتې دي، اوس ما ته دغه ټوکر په څلور درهمه پروت دی.

په کوم کار کې چې به د ګناه يوه شبهه پيدا کېده ده مبارک به په ټينګه پرهېز ورڅخه کاوه، که څه هم چې هغه به ډېره کوچنۍ شبه وه که چيرې به په يو شي کې د ګناه شک ورپيدا کېدی، نو هغه به يې سمدستي پر غريبانو او محتاجانو تقسيماوه، لکه چې يو وخت ده مبارک خپل شريک

حفص بن عبدالرحمن ته د پلورولو لپاره لږ سامان ور واستاوه او ور ته ویې ویل: په تو کره کي عیب دی، د پلورلو پر وخت یې د غه عیب و رانیوونکي ته ور ښکاره کوه، حفص کالي خرڅ کړه، مګر عیب ورښوول یې له یاده ووتل، خو دا هم معلومه نه وه چي رانیوونکی څوک ؤ، او پر کومه لاره ولاړی، کله چي امام ابوحنیفه رحمه الله خبر شو چي کالي یې بېله عیب ورښوولو خرڅ کړي دي نو راغی او د هغه سامان ټول قیمت یې خیرات کړ.

ده مبارک چي به د تجارت څخه کومي پیسي لاس ته راوستې د هغوی ډېره برخه به یې پر محتاجانو، بې وزلو، یتیمانو، ناروغانو، مشائخو او محدثینو مصرفول، او له دې سره سره به یې د الله جل جلاله شکر هم کیښ، او خلکو ته به یې ویل: تاسو ته ما هیڅ نه ده درکړي، دا صرف عنایت رباني دی.

ده مبارک به د خپل باطن په ډول تل خپل ظاهري شکل هم ښایسته کاوه، نو ځکه به یې د خپل لباس و طرف ته ځانګړې توجه کوله. دی مبارک به پاک او صفا ګرځېدی، او تل به یې خوشبویي استعمالوله. د امام ابو یوسف رحمه الله بیان دی، چي ده مبارک به د خپلو چوټو د تسمو پوري لا خیال کاوه او داسي هېڅکله نه دي شوي چي د ده د چوټو تسمې دي پرې او څیري شوي خلکو لیدلي وي. ده به تل خپلو ملګرو او همنشینانو ته هم ددې خبري ډېر ویل چي خپل شکل او ناسته ولاړه صاف او درست کړئ. اشرف الهدایې لیکلي دي: چي یو وخت ده مبارک خپل یو ملګری په زړو او څیرو شوو کالیو کي ولید، نو کله چي نور خلک له ده څخه ولاړېدل، ده مبارک و دغه سړي ته د لږ نور کښېناستلو وویل. څه وخت چي نور خلک ولاړل او دوی دوه یوازي پاته شول



نو وروسته ده مبارک ورته وفرمایل: هغه جای نماز پورته کړه او تر هغي لاندي چي کوم زر درهمه پراته دي هغه واخله او په دې پیسو خپل حالات سم کړه! هغه ورته وویل: زه خو شتمن او مالداره سړی یم، ما ته ددې پیسو د اخیستلو څه ضرورت دی؟ ده مبارک ورته وفرمایل: ولي تا دا نبوي حدیث نه دی اورېدلی چي "ان الله یحب ان یریٰ اثر نعمته علی عبده" یعني الله جل جلاله د خپل نعمت پر ښکاره کېدلو باندي خوشحاله کیږي، ولاړ شه خپل حالت دي بدل کړه، چي قریبان او دوستان دي په لیدلو سره خوابدي نه شي.

(اشرف الهدایه جلد ۱ صفحه ۳۷)

# د طهارت بیان

**پوښتنه**: د لغت او شریعت له نظره د طهارت معنی څه شی ده؟

**جواب**: په لغت کي طهارت و نظافت او پاکی ته ویل کیږي او د شریعت له نظره، د کوچنی بې اودسی او غټې بې اودسی لیري کولو ته او همدا رنګه د بدن، کالیو او د لمانځه د کولو د ځایونو څخه د نجاست لیري کولو ته طهارت ویل کیږي

باید ووایم چي کوچنی بې اودسي په اودس تازه کولو سره له منځه ځي او غټه بې اودسي په غُسل سره له منځه ځي

## آیاپه اوداسه کي د ګڼي ږیري او سپکي ږیري یو ډول حکم دی او که جلا جلا ؟ :

**پوښتنه**: آیاپه اوداسه کي د ګڼي ږیري او سپکي ږیري یو ډول حکم دی او که جلاجلا، او بله خبره دا ده چي په اوداسه کي د ږیري لپاره جلا اوبه اخیستل ضروري دي او که نه؟

**جواب**: په درمختارکي راغلي دي چي د ټولي ږیري پربولل فرض دي، لیکن د ځوړندي ږیري پربولل او مسح کول فرض نه دي، بلکي سنت دي او سپکه ږیره چي پوست یې معلومیږي ، د هغه ماتحت پربولل ضروري دي،



د درمختار الفاظ په دې ډول دي: وغسل جمیع اللحیة فرض یعنی عملیا ایضا الخ ثم لا خلاف ان المسترسل لایجب غسله ولا مسحه بل یسن. وان الخفیفة التی تریٰ بشر تها یجب غسل ما تحتها الخ

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار فرائض الوضوء جلد ۱ صفحه۹۳)**

او د کوم ځای پربولل چي فرض دي د هغه ځای درې واره پربولل سنت دي لکه کبیري شرح منیه چي وایي: وتکرار الغسل الی الثلث سنة ایضا لمواظبة علیه الصلوة والسلام علیه الخ .

**(غنیة المستملی سنن الوضوء جلداصفحه ۲۵)**

دا چي ږیره په مخ کي داخله ده، نو له دې وجي د مخ په اوبو سره د ږیري پربولل هم په کار دي، یعني نوي اوبه د ږیري لپاره را اخیستل نه غواړي، په دې ترتیب چي یو وار به په دواړو لاسونو اوبه را اخلي مخ او ږیره به په پربولي، بیا به دوهم ځل په دواړو لاسونو اوبه را اخلي مخ او ږیره به په پربولي ، همداسي به دریم وار اوبه را اخلي مخ او ږیره به په پربولي

د ږیري لپاره جلا اوبه ، به هغه وخت را اخلي چي ږیره خلالوي، مګر هغه هم یو وار لکه ردالمحتار چي وایي: وتخلیل اللحیة الغیر المحرم بعد التثلیث (درمختار) رأی تثلیث غسل الوجه امداد الخ روی ابو داؤد عن انس کان صلی الله علیه وسلم اذا توضأ اخذکفامن ماء تحت حنکه فخلل به لحیته وقال بهذا امرنی ربی. **(ردالمحتار کتاب الطهارة جلد ۱ صفحه ۲۰۹)**

## آيا د ګڼي ږيري د وربښتانو پرېولل په اوداسه کې فرض دي؟

**پوښتنه**: آيا په اوداسه کي د ګڼي ږيري د وربښتانو پرېولل فرض دي او که مستحب او بله خبره دا ده چي ببخونو ته يې اوبه رسول ضروري دي او که صرف د وربښتانو مسح کول په کار دي؟

**جواب**: په درمختار کي راغلي وغسل جميع اللحية فرض يعني عمليا ايضـــا على المذهب المفتى به المرجوع اليه و ماعدا هذه الرواية مرجوع عنه كمافـــى البدائع الخ (درمختار) قوله وما عدا هذه الرواية اى من رواية مسح الكل اوالربع اوالثلث او ما يلاقى البشرة او غسل الربع او الثلث الخ.

**(ردالمحتار كتاب الطهارة جلد ١ صفحه ٩٣)**

ددې څخه معلومه شوه چي د ټولي ږيري پرېولل فرض دي. مسح کول کافي نه دي او که ګڼه ږيره وه لاندي پوست ته يې اوبه رسول ضروري نه دي. البته که سپکه ږيره وه. نو په هغه صورت کي بيا ضروري دي لکه درمختار چي وايي ثم لاخـــلاف ان المسترسل لايجب غسله ومسحه بل يسن وان الخفيفة التى ترىٰ بشرتها يجب غسل ما تحتها كذافى النهر وفى البرهان يجب غسل بشرة لم يسترها الشعر كحاجب وشارب.

**(الدرالمختار على هامش ردالمحتار فرائض الوضوء جلد ١صفحه ٩٣)**

همدارنګه فتاوى قاضي خان ليکي ولايجب ايصال الماء الى المنابة الشعر



الاان يكون الشعر قليلا يبد والمنابة الخ.

## په ولاړي بولي کول:

**پوښتنه**: په ولاړي بولي کول روا دي او که نه؟

**جواب**: ببله کوم عذره په ولاړي بولي کولو ته فقهاوو مکروه ويلي دي لکه چي وايي: ويكره ان يبول قائمًا... من غير عذر فان كان بعذر فلاباس به.

**(فتاوى عالمګيري جلد ١ صفحه ٥٠ او ردالمحتار جلد١ صفحه ٣١)**

يعني ببله عذره په ولاړي بولي کول مکروه دي، مګر د عذر په صورت کي پروا نه لري.

هو ، د عذر په سبب په ولاړي بولي کول روا دي ، ځکه چي د حديث څخه ثابت دي چي وايي: په کوم ځاى کي چي په ناسته په بولي کولو سره (د کالو يا بدن) د لړل کېدلو ، يا د څاڅکو د غورځېدلو انديښنه وي، نو په هغه ځاى کي پخپله جناب رسول الله ﷺ هم په ولاړي بولي کړي دي.

**(ابوداؤدشريف د مغيرة بن شعبة څخه دغه روايت رانقل کړى دى)**

## په کاغذه سره استنجاء وهل (اودس وچول)

**پوښتنه**: نن سبا په لويو ښارونو کي عام خلک په کاغذه باندي اودس وچوي آيا دا کار روا دى او که نه، ځکه چي فقهاوو خو په کاغذه باندي اودس وچولو ته مکروه ويلي دي؟

**جواب**: وروره ! کاغذ پر دوه ډوله دى: لومړى هغه ډول کاغذ دى چي د

لیکلو او نویشتې قابل وي، په دغه ډول کاغذه خو یقیناً هم چې بېله مجبورۍ ځخه اودس وچول مکروه دی، لکه علامه شامي رحمه الله چې ددغه ډول کاغذه بېله ضرورته د استعمال د مکروه والي وجې دا لیکي: لِصَقَالَتِهٖ وَتَقَوُّمِهٖ وَلَهٗ احْتِرَامٌ اَیْضًا لِکَوْنِهٖ اٰلَةً لِکِتَابَةِ الْعِلْمِ. **(ردالمحتار جلد۱صفحه۳۱۵)**

یعني ځکه چې په کاغذ سره خو د نجاست د لاخېرېدلو اندېښنه وي، او بله وجه داده چې په دې سره استنجا ګرانه تمامېږي ځکه چې کاغذ خو قیمتي شی دی، او بله وجه یې بیادا ده چې کاغذ خو د علم د تحریر یوه ذریعه ده ځکه نو په دې وجه هم کاغذ یو قابل احترام شی دی.

دا یوازې د فقهاوو نظریه نه ده، بلکې سالم عقل هم دا خوښوي چې انسان دې خپله پزه د قمیص په لمن نه پاکوي، ځکه چې د انسان په نظر خو دا ډول شیان قدرمن وي، نو په قدرمن شي به اودس وچول څه ډول سالم عقل خوښ کړي.

دوهم ډول هغه کاغذ دی چې د لیکلو او نویشتې قابل نه وي او له لویه سره د اوداسه د وچولو لپاره جوړشوی وي، لکه اوس چې په لویو ښارونو کې رواج لري، باید ووایم چې په دې ډول کاغذه اودس وچول پروا نه لري.

**(جدید فقهي مسائل لومړۍ برخه صفحه ۲۲)**

## د جنازې د لمانځه په اوداسه سره بل لمونځ کول:

**پوښتنه**: که یوه سړي د جنازې د لمانځه لپاره اودس تازه کړ، آیا په هغه اوداسه باندې د نورو پنځه وختونو لمونځونه هم کولای شي او که نه؟



**جواب**: د جنازې د لمانځه لپاره که یې اودس تازه کړی ؤ په دغه اوداسه باندې هر ډول فرض او نفل لمونځ کولای شي، تر دې چې که یې د جنازې د لمانځه لپاره یا د سجده تلاوت لپاره تیمم وهلی ؤ، ده ته روادي چې په دغه تیمم باندې فرض لمونځ وکړي لکه عالمګیري چې وایي: تیمم لصلوة الجنازة او السجدة التلاوة اجزاه ان یصلی به المکتوبة بلااخلاف.

**(عالمګیري جلد۱صفحه ۲۶)**

## د غسل په دوران کې د اوداسه ماتېدل:

**پوښتنه**: که یو سړي تر غُسل کولو مخکې اودس تازه کړ، خو د غسل په دوران کې یې اودس مات شو، نو آیا د غُسل کولو څخه وروسته به بل اودس تازه کوي او که په صرف غسل کولو سره لمونځ کولای شي؟

**جواب**: کوم سړی چې غسل وکړي، نو ګویا ده اودس هم تازه کړ، ځکه چې په غسل کې خو د اوداسه ټول ځایونه پرېولل کیږي، او که ته وایې چې په غسل کې خو یې د سر مسحه نه ده کړې، نو هغه دی د سر د مسح پر ځای یې ټوله سر پرېولی دی، نو په دې سره دغه سړی لمونځ کولای شي ځکه چې جناب رسول الله ﷺ ویلي دي چې د غسل څخه وروسته اودس مه تازه کوئ!

عن عایشه قالت، قال النبیﷺ لایتوضوء بعد الغسل.

**(جامع الترمذی جلد ۱ صفحه ۳۰)**

یعني حضرت بي بي عایشه (رض) وایي چې جناب رسول الله ﷺ تر غسل کولو وروسته اودس نه تازه کاوه.

## په اوداسه کي د لږ وچ ځای پاته کېدل:

**پوښتنه**: که چیري د اوداسه یا غسل په دوران کي یو ځای وچ پاته شي، نو دوهم ځل اودس کول په کار دي او که به یوازي هغه وچ ځای لندوي؟

**جواب**: وروره! صرف هغه وچ ځای پرېولل کافي دي، مګر پر دغه وچ ځای د اوبو بهول ضروري دي، صرف لوندلاس پر تېرول کافي نه دي.

**(کفایت المفتي جلد ۲ صفحه ۳۱۷)**

**پوښتنه**: په اوداسه او یا غسل کي که یو پوره اندام او یا تر اندام لږ ځای په هیره سره وچ پاته شي نو آیا یوازي د دغه وچ پاته شوي اندام یا د دغه وچ پاته شوي ځای پرېولل کافي دي او که به له سره غسل او یا اودس راګرځوي او آیا دغه حکم یوازي هغه وخت دی چي اندامونه لانده وي او که تر وچېدلو وروسته هم همدا حکم دی؟

**جواب**: وروره! صرف وچ پاته شوی ځای پرېولل کافي دي، له سره اودس یا غسل راګرځول نه غواړي، پاته شوه دا خبره چي دغه حکم د اندامونو د لوندوالي په وخت کي دی او که د وچوالي په وخت کي هم دی؟ باید ووایم چي دغه حکم د اندامونو د لوندوالي او وچوالي په دواړو وختونو کي دی، تر دې چي که په غُسل کي یې په هېره سره د خولې او یا پزې پرېولل پاته شوله او لمونځ یې وکړ، وروسته ورپه یاد شول چي ما خو په غسل کي پزه او خوله نه دي پرېولي، نو به صرف خوله او پزه پرېولي او لمونځ به راګرځوي لکه حلبي کبیر چي په فرائض الغسل کي همداسي وایي: ولوترکها ای ترک



المضمضةاوالاستنشاق او اللمعة من ای موضوع کان من البدن ناسیًا فصلی ثم تذکر ذلک یتمضمض اویستنشق او یغسل اللمعة ویعید ماصلی الخ.

**(حلبی کبیر صفحه ۵۰ طبع سهیل اکاډمي لاهور)**

## په پټرولو سره د کالو پرېولل:

**پوښتنه**: آیا په پټرولو سره کالي پاکېدلای شي او که نه؟

**جواب**: د پټرولو د نورو فائدو سره سره یوه فائده دا هم ده چي په ځینو سیمو کي ځیني جامې په پټرولو سره پرېولل کیږي لکه زموږ په سیمه کي چي لونګیاني په پټرولو سره پرېولل کیږي، دا چي په پټرولو سره د جامې پاکي لاسته راتلای شي او که نه، نو لومړی باید ووایم چي نجاست پر دوه ډوله دی، یو قسم نجاستِ حکمي دی چي په سترګو نه لیدل کیږي، صرف شریعت یې ناپاک بولي لکه د اوداسه ماتېدلو په صورت کي د ټوله بدن ناپاکي، که څه هم چي پر مخ او لاسونو خو یې په ظاهره نجاست نسته، مګر د شریعت له نظره یې پرېولل فرض دي، او د جنابت بې اودسي هم په نجاست حکمي کي شمارده، نو باید ووایم چي د دا ډول نجاست چي حکمي نجاست نومیږي د لیري کولو لپاره د اوبو استعمال یا تیمم ضروري دی.

د اوبو پر ځای ددې په ډول د یو بل شي استعمال لکه د میوو څخه د نښتېږل شویو اوبو یا داسي نورو شیانو استعمال کافي نه دی لکه فقهاء چي وایي: لَايَجُوزُ الْوُضُوءُ بِمَاءِ الْفَوَاكِهِ وَلَابِمَااعْتُصِرَمِنَ الشَّجَرِ.

**(خلاصة الفتاوی جلد ۱ صفحه ۹)**

يعني د مېوو په اوبو او يا د درختو څخه په نښتېزل شويو اوبو اودس تازه كول نه دی روا .

بل هغه ډول نجاست دی چي محسوسيږي او ليدل كيږي لكه بولي ، چكر، وينه او داسي نور...... ددغو شيانو د ليري كولو لپاره هر هغه پاک شی كافی دی چي نرم او بهېدونكی وي لكه سُركه او د ګل ګلابو اوبه لكه هدايه چي فرمايي : وَيَجُوزُ تَطْهِيرُهَا بِالْمَاءِ وَبِكُلِّ مَائِعٍ طَاهِرٍ يُمْكِنُ اِزَالَتُهَا بِهِ كَالْخَلِّ وَمَاءِ الْوَرْدِ . **(هداية جلدا صفحه ۵۴)**

يعني ددغه ډول نجاست پاكوالی په اوبو سره روا دی او بل په هر هغه پاک او نرم شي سره روا دی چي د نجاست ليري كېدل په هغه شي سره امكان ولري لكه سُركه او د ګل ګلابو اوبه .

نو ددغو اصولو څخه دا خبره څرګندېږي چي په پټرولو سره اودس او غُسل روا نه دی ، مګر د جامو پرېولل او د هر هغه نجاست ليري كول چي په سترګو ليدل كيږي او محسوسيږي روا دی ځكه چي ددغه ډول نجاست د ليري كولو لپاره اوبه ضروري نه دي، بلكي هر پاک بهېدونكی شی كافی دی .

## د مسواک اندازه څومره په کار ده ؟

**سوال**: د مسواک اندازه بايد څومره وي ؟

**جواب**: په درمختار كي راغلي دي چي مسواک د يوې لوېشتي په اندازه مستحب دی، مګر ښكاره خبره ده چي دې لره كومه اندازه نشته، په هر څومره اندازه چي تاسي غاښونه پاكولای شوای بس همدومره كافي دی، مګر علماوو



مسواک په شروع كي د يوې لوېشتي په اندازه خوښ كړی دی . فقط .

يعني مسواک د يوې لوېشتي څخه كم پروا نه لري، مګر د يوې لوېشتي څخه زيات ښه نه دی .

## آيا د ښځو لپاره هم مسواک سنت دی ؟

**پوښتنه** : آيا ښځو لره هم د نارينه وو په شان مسواک سنت دی ؟

**جواب**: هو! وروره! فتاوی يوسفيه ليكي چي د ښځو لپاره هم مسواک سنت دی ، مګر كه چيري د دوی اوری نازكي وي او د مسواک برداشت يې نه شوای درلودای، نو بيا ورته په كار دی چي دنداسه استعمال كړي، ځكه چي دنداسه هم د مسواک قائم مقام جوړيږي، دا په هغه وخت كي چي د مسواک په نيت سره يې استعمال كړي .( **فتاوی يوسفيه جلد ۲ صفحه ۳۴** )

او يا دي نرم برش استعمالوي، ځكه چي برش هم د مسواک قائم مقام دی لكه درمختار چي وايي : وعند فقده اوفقداسنانه تقوم الخرقة او الخشبة او الاصبع مقامه . **(الدرالمختار مع ردالمحتار جلد ۱ صفحه ۱۱۵)**

## آيا د مسواک پر ځای كريم او برس استعمالول روا دي او كه نه ؟

**پوښتنه**: آيا د مسواک پر ځای د برس او كريم په استعمالولو سره هم ثواب لاسته راتلای شي او كه نه يعني سنت په اداء كېدای شي او كه نه ؟ .

**جـواب**: هو؛ د برس او کريمو استعمال روا دی، ځکه چي د مسواک اصلي مطلب د خولې او غاښونو پاکېدل دي لکه ددغو شيانو د نه موجودوالي په صورت کي چي مسواکه ګوته هم کفايت کوي لکه فقه سنه چي وايي:

وَاِنْ كَانَتْ السُّنَّةَ تَحْصِيْلُ بِكُلِّ مَا يُزِيْلُ صُفْرَةَ الاسنان فَيَنْظَفُ الْفَمَ كَالْفَرْشَةِ وَنحوِهَا. **(فقه السنّه جلدا صفحه ۴۲)**

او همدارنګه درمختار ليکي: وعــند فقده او فقد اسنانه تقوم الخرقة او الخشبة او الاصبع مقامه. **(الدرالمختار مع ردالمحتار جلد ا صفحه ۱۱۵ )**

## د اوداسه وروسته تر لمانځه مخکي او يا په ګرځېدلو او راګرځېدلو کي لکه نن سبا چي د ډېرو خلکو عادت دی، مسواک وهل څنګه دي؟

**پوښتنه**: يو وخت زه د خپل يو دوست سره د سعودي عربستان مرکز رياض ته تللی وم، هلته يو مسجد ته د لمانځه لپاره ولاړو. که ګورو ځيني خلک په صفونو کي ناست دي او مسواک وهي، بيا امام راغی جماعت ودرېد. تر جماعت وروسته ما پوښتنه وکړه چي آيا دا ډول مسواک وهل روا دی او که نه؟ د مسجد امام صاحب راته وويل چي دا د جناب رسول الله ﷺ حديث دی چي تر لمانځه مخکي مسواک وهئ، آيا ددغه امام خبره صحيح ده او که نه؟

**جواب**: وروره دغه امام صاحب چي تاسي ته د کوم حديث حواله درکړې ده



هغه حديث دادی: **لولا ان اشق علی امتی لامرتهم بالسواک عند کل صلوة.** يعني که ما دا انديښنه نه درلودای چي زما امت به په تکليف او مشقت کي ولوېږي، نو دهر لمانځه پر وخت به مي د مسواک حکم ورته کولای.

ددغه حديث روايت کوونکي د الفاظو په راتقلولو کي اختلاف لري، ځيني حضراتو " عــند کل صلوة " الفاظ رانقل کړي دي او ځينو بيا ددې پر ځای "عندکل وضوء" الفاظ رانقل کړي دي.

**( صحيح بخاري شريف جلد ۲ صفحه ۲۵۹ )**

يعني جناب رسول الله ﷺ وايې چي که ما دا انديښنه نه درلودای چي زما امت به په تکليف او مشقت کي ولوېږي، نو ما به د هر اوداسه پر وخت د مسواک وهلو حکم ورته کولای.

د دغو دواړو الفاظو په ورانـدي د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد، د حديث مطلب دا راوزي چي په دې حديث شريف کي د هر لمانځه څخه مخکي پراودس تازه کولو او د هراوداسه په شروع کي د مسواک وهلو ترغيب ورکول شوی دی.

د هر لمانځه پر وخت د مسواک د حکم ورکولو څخه مقصود دادی چي د هر لمانځه د اوداسه په شروع کي بايد مسواک ووهل شي، په دې حديث کي خاص د لمانځه څخه په مخکي وخت کي د مسواک وهلو ترغيب مقصود نه دی، که چيري يو څوک د لمانځه لپاره ولاړ وي او مسواک وهي نو ددې ببره شته چي د مسواک وهلو په وجه يې د غاښونو څخه وينه راووزي چي په دې سره اودس

ماتیږي ، نوچي اودس یې مات شو لمونځ یې نه صحیح کیږي، ددې وجې حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله فرمایلي دي چي د هر لمانځه تر اوداسه مخکي مسواک وهل سنت دي، د عین لمانځه پر وخت مسواک نه شي وهل کیداى .

بله خبره داده چي د مسواک وهلو مطلب د خولې نظافت او صفایي ده او دغه مقصود هغه وخت لاسته راتلاى شي، چي د اوداسه په وخت کي مسواک ووهل شي او هر وار په خوله باندي ښه اوبه ورغړول شي په دې ډول خوله ښه پاکیداى شي، نو کوم خوک چي د لمانځه لپاره ولاړوي او یا پر لاري روان وي بې له اوبو مسواک وهئ، نو ته فکر وکړه په دې صورت کي به د مسواک اصل مقصود چي د خولې پاکوالى او نظافت دى څنگه حاصل کړل شي، خودا چي تاسي په سعودي کي خلک لیدلي دي چي په مسجد کي تر لمانځه مخکي مسواک وهي ددې وجه دا کیداى شي چي د سعودي اکثره خلک د حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله مقلدین دي او د دوى په نزد د وینو په راوتلو سره اودس نه ماتیږي، نو ځکه د لمانځه لپاره په دربدلو کي هم مسواک وهي او د حدیث شریف څخه دغه مطلب اخلي .

( فتاوى یوسفیه جلد ۲ صفحه ۳۵ )

## د جماعت په وخت کي د اوداسه سنتونه پوره کول په کاردي او که جماعت ته تلل ؟

**پوښتنه** : که جماعت پر ختمیدو ؤ او یوه سړي اودس تازه کاوه، نو که چیري دى د اوداسه سنتونه هم اداء کړي ، نوجماعت ختمیږي او که صرف د



اوداسه فرضونه اداء کړي مثلاً اندامونه یو یو وار پریولي او ولاړ شي پر جماعت ورسره دربداى شي نو آیا دغه سړى به د اوداسه سنتونه پریږدي او که به د اوداسه سنتونه هم پر ځاى کوي او لمونځ به بیا د ځانه سره بوازي کوي ، کومه لاره غوره او ښه ده ؟

**جواب** : ددغه سړي لپاره د اوداسه دسنتونو پوره کول ضروري دي، که څه هم چي جماعت به ورڅخه تیریږي.

( فتاوىٰ دارالعلوم دیوبند جلد ۱ صفحه ۷۴ )

## د عذر په وجه په ولاړې اودس تازه کول :

**پوښتنه** : آیا په ولاړې اودس تازه کول روا دي په هغه وخت کي چي په ناستي تکلیف ورته پیدا کیږي او یا ښاڅکي ورغورځي او یا لکه دا نن سبا چي دا نوى سیستم راوتلى دى چي په ولاړې اودس تازه کوي او د ناستي ځاى نه وي ؟

**جواب** : که چیري په ناستي په اودس تازه کولو کي تکلیف وي او یا ښاڅکي ورغورځي او یا لکه ته چي وایي چي نن سبا دلته شینک سیستم رواج دى د ناستي ځاى نشته، نو بیا په ولاړې اودس تازه کول پروا نه لري . ( فتاوى یوسفیه جلد ۲ صفحه ۳۳ )

## ونوکانوته رنگ ناخون ورکول :

**پوښتنه** : آیاونوکانوته رنگ ناخون ورکول روا دي او که نه، لکه نن سبا

چي ډېري ښځي د ښايست لپاره دغه کار کوي، حال دا دی چي دا يو ډول پوښ دی چي تر څو ورځو پوري باقي وي، يعني تر څو ورځو پوري و نوکانو ته بيخي اوبه نه شي رسېدای ؟.

**جواب**: نوکان د بدن يوه داسي برخه ده چي د اوداسه کولو په وخت کي يې پر بولل ضروري دي، نو ستاسي دي فکر وي چي د يو واقعي ضرورت څخه ماسېوا داسي شی استعمالول چي بدن ته اوبه نه پرېږدي، او د اوداسه په صحيح کېدلو کي مشکل راولي، روا نه دی يعني اودس هغه وخت صحت پيدا کوي چي دغه شيان د نوکانو څخه لېري کړل شي، دا چي نن سبا ډېري ښځي رنګ ناخون استعمالوي، نو دا خو ښکاره خبره ده چي د ضرورت په وجه يې نه استعمالوي صرف د ښايست لپاره يې استعمالوي، نو د دوی لپاره ضروري ده چي د اوداسه کولو پر وخت دغه پالش چي رنګ ناخون نومېږي پاک کړي ترڅو چي و نوکانو ته اوبه ورسېږي لکه فتاوی عالمګيري چي وايي: اَوْلَزِق بِاَصْلِ ظُفُرِهِ طِينٌ يَابِسٌ اَوْرَطْبٌ لَمْ يَجُزْ. يعني که چيري په اصل نوک پوري لنده يا وچه خټه موښتې وي، نو پر دې باندي صرف د اوبو تېرېدل کافي نه دي. (زه ابو المختار په دې مسئله کي د نور تحقيق ضرورت وينم زما په نظر ددې قياس د غاښونو پر پوښ تر دې ښه راځي، څو صفحې وروسته د غاښونو د ډکېدلو او پوښ ورکولو بحث راروان دی، هلته هم ښه فکر وکړی).

## د هغې ښځي اودس چي سُرخي يا پوډر يې وهلي وي:

**پوښتنه**: که چيري ښځي پر مخ باندي سُرخي يا پوډر او يا کريم وهلي



وي نو آيا د اوداسه په وخت کي به لومړی ددغو شيانو څخه مخ پاکوي او که به ددغو شيانو سره پر مخ اوبه اچوي ؟.

**جواب**: که چيري په دغو ذکر شوو شيانو کي يو ناپاک شی نه وي ګډ شوی نو بيا د دوی وپاکېدلو ته ضرورت نشته، پر مخ دي اوبه واچوي او اودس دي تازه کړي. (**فتاوی يوسفيه جلد۲ صفحه ۴۳**)

## ناپاکه اوبه په صاف او شفاف کولو سره نه پاکيږي:

**پوښتنه**: نن سبا ساينسدانانو داسي آله جوړه کړې ده چي د مردارو لښتيانو اوبه بالکل صافي او شفافي جوړوي وروسته په ظاهره په دغو اوبو کي هيڅ خرابي نه معلومېږي، نو آيا دغه اوبه اوس هم مرداري بلل کيږي او که نه؟

**جواب**: ورو ره! دغه اوبه صافي بلل کيږي، مګر پاکيږي نه، که تاسي فکر وکړی په صافو او په پاکو کي ډېر فرق شته

(**فتاوی يوسفيه جلد۲ صفحه ۴۶**)

## که چيري د يو سړي بادونه جاري وي، آيا د داسي سړي په خوب سره اودس ماتيږي او که نه ؟

**پوښتنه**: که چيري د يو سړي بادونه جاري وي، آيا د داسي سړي په خوب سره اودس ماتيږي که نه؟

**جواب**: په دې کي دوه قوله راغلي دي خو فتاوی شامي ويلي دي چي د

داسي سړي خوب چي بادونه يې جاري وي د اودس ماتونکی نه دی.

(ردالمحتار جلد ۱ صفحه ۱۲۴)

## په چارزانو خوب سره د اوداسه نه ماتېدل:

**پوښتنه**: آيا په چارزانو بيدېدلو سره اودس ماتيږي او که نه؟

**جواب**: نه وروره! په چارزانو بيدېدلو سره اودس نه ماتيږي لکه فتاوی عالمګيري چي وايي: و ان نام متربعالاينقض الوضوء.

(فتاوی عالمګيري جلد ۱ صفحه ۱۱)

## په څه ډول خوب سره اودس ماتيږي؟

**پوښتنه**: که يو سړی په لمانځه کي په ولاړي بيده شو، نو اودس يې ماتيږي او که نه؟

**جواب**: که چيري يو سړی په لمانځه کي په ناستي يا ولاړي بيده شي، نو اودس يې نه ماتيږي، او که ښځه په هغه ډول سجده کي بيده شي چي دې ته حکم سوی دی، نو په دې سره يې اودس ماتيږي.

**پوښتنه**: که يو سړی په ناستي بيده ؤ، خو چي د خوب څپه پر راغله نو دی غوځار شو، نو آيا اودس يې مات دی او که نه؟

**جواب**: که يو سړی په ناستي بيده ؤ چي د خوب څپه پر راغله نو غوځار شو، نو که د غوځارېدلو سره دستي راويښ شو، اودس يې نه دی مات او که يو ګړی وروسته راويښ شو، نو اودس يې مات دی او که په ناستي بيده ؤ او



سره زنګېدی، نو په دې سره يې هم اودس نه ماتيږي.

(ردالمحتار جلد ۱ صفحه۱۴۸)

**پوښتنه**: په بې هوښۍ او لېونتوب سره اودس ماتيږي او که نه؟

**جواب**: هو! که پر يو چا بې هوښي راغله يا د لېونتوب يو څپه پر راغله او عقل يې زائل شو يا يې د نشې يو شی استعمال کړ، خو دومره نشه شو چي سم تلای نه شوای، پر لاري سره زنګېدی نو د دغه اودس هم مات دی.

(درمختار جلد۱ صفحه۱۲۸)

## د سترګو څخه رابهېدونکي اوبه:

**پوښتنه**: که چيري د سترګو د درد په وخت کي د سترګو څخه اوبه راتويدلې، نو آيا په دې سره اودس ماتيږي او که نه؟

**جواب**: که چيري د سترګو د درد يا سوروالي په وخت کي د سترګو څخه اوبه راتويدلې نو په دې کي د فقهاؤ اختلاف دی ځيني وايي چي په دې سره اودس ماتيږي او ځيني بيا وايي چي نه ماتيږي علامه حصکفي رحمه الله وايي چي اودس يې ماتيږي او همدارنګه مولانا مجيب الله ندوي رحمه الله د خپل کتاب "اسلامي فقهي" د لومړي جلد په ۱۷۰ صفحه کي وايي چي اودس يې ماتيږي. مګر ابن همام رحمه الله چي د فتح القدير مصنف دی هغه بيا وايي چي په دې صورت کي اودس نه ماتيږي، همدارنګه د مولانا رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله او مفتي عزيزالرحمٰن رحمه الله هم همدارايه ده. همدارنګه علامه ابن عابدين شامي رحمه الله

د ابن همام رحمه الله ثخه نقل کړې دی چې په دې سره اودس نه ماتيږي خو اودس کول مستحب دی ، ابن همام رحمه الله د امام محمد رحمه الله د دغه لاندې قول ثخه هم استدلال کړی دی : اِذَاكَانَ فِىْ عَيْنِه رَمَدٌ وَتَسِيْلُ الدُّمُوْعُ مِنها مُرْهُ بِالْوُضُوْءِ لِوَقْتِ كُلِّ صلوٰةٍ لِاَنِّىْ اَخَافُ اَنْ يَكُوْنَ مَايَسِيْلُ مِنْهَاصَدِيْدًا فَيَكُوْنُ صَاحِبَ الْعُذْرِ. (ردالمحتارجلد ۱ صفحه۱۳۷)

يعني د خوږ منو سترګو ثخه چې اوښکې بهيږي نو د هرلمانځه د وخت لپاره ورته د اودس کولو حکم ورکول په کار دی، ځکه چې ماته دا انديښنه ده چې د سترګو ثخه بهېدونکې دغه اوبه ، به د زخم اوبه وي، نو د دغې وجې ثخه دی صاحب عذر وبلل شو .

ددې ثخه دا معلوميږي چې امام محمد رحمه الله دغه ډول اودس ته مستحب او د احتياط مطابق ويلی دی، واجب يې نه دی بللی، پر دغه ځای د "جديد فقهي مسائل" نومي کتاب مصنف زياتوي :

لومړی بايد موږ دې ته وګورو چې آيا دا واقعي د زخم اوبه دي يعني په سترګه کې زخم موجود دی او که نه؟ که چيرې دا رشتياهم د زخم اوبه وي او ډاکټر ورته ويلي وي چې هو داد زخم اوبه دي نو بيا خو يقيني خبره ده چې اودس مات دی او که د زخم اوبه نه وي مثلاً که تاسې فکر کړی وي ډېر ځله چې په سترګه کې يوه کوچنۍ ګرمکه پيدا شي نو سترګه ډېرې اوښکې کوي حال دا دی چې دغه ګرمکه يا دانه خو دې اندازې ته نه ده رسېدلې چې اوبه دې ځنې راووزي، نو بايد ووايم چې په دې ډول اوبو سره لکه ابن همام رحمه الله چې



ويلي دي اودس نه ماتيږي .

## د سترګو د خوږېدلو په وخت کې تر سترګو اوبه تلل، آيا دا د اوداسه ماتوونکي دي او که نه ؟

**پوښتنه**: د فقهي په عامو کتابونو کې راغلي دي چې که د سترګو د خوږېدلو په وخت کې تر سترګو اوبه ولاړې شي په دې سره اودس ماتيږي آيا دا خبره صحيح ده او که نه ؟

**جواب**: د دې پوښتني جواب مخته هم تېر شوی دی خو يو وار بيا زه وايم چې په دې سره اودس نه ماتيږي، ځکه چې فتاوی دارالعلوم ديوبند هم د ډېر تحقيق کولو ثخه وروسته ليکي چې دا ناقض وضوء نه دی او دا خبره يې د قواعد شرعيه وو موافق بللې ده او راجح يې ورته ويلي دي . فقط

**( فتاوی دارالعلوم ديوبند جلد ۱ صفحه ۷۶)**

## د بواسيرو د زخم ثخه لوندوالی راوتل او کالي په لړل کېدل :

**پوښتنه**: د بواسيرو دانې چې کله سره وچاودي او د زخم په ډول شي، او په دغه زخم کې دننه لوندوالی وي ، مګر بهېدونکی نه وي، البته د ولاړې او ناستې په وخت کې کالي په لړل کيږي، نو آيا په دغه صورت کې په دې سره اودس ماتيږي که نه ، همدا رنګه کالي په مرداريږي او که نه؟

**جواب**: کوم لوندوالی چې د زخم ثخه راووزي مګر و نه بهيږي يعني سائل

نه وي، په هغه سره اودس نه ماتيږي لکه فقهاوو چې ويلي دي، او پاته دا پرښتنه شوه چې آيا په دغه نجاست سره چې سائل او بهېدونکی نه وي کالي مرداريږي او که نه، بايد ووايم چې دا يوه غټه فقهي قاعده ده چې فقهاوو ويلي ده: ماليس بحدث ليس بنجس.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار جلد ١ صفحه ١٣٠)

يعني په هغه شي چې اودس نه ماتيږي هغه مردار نه دی.

نو د کوم صورت په هکله چې تاسي پوښتنه کړې ده په هغه نه اودس ماتيږي او نه کالي په مرداريږي.

## آيا په دې سره اودس ماتيږي چې مېړه د خپلې ښځې و فرج ته لاس ور وړي او يا خپل ذکر د ښځې د فرج سره وموښلوي؟

**پوښتنه**: که مېړه د خپلې ښځې وفرج ته لاس ورووړ او يا يې خپل فرج د خپلې ښځې د فرج سره په داسې حالت کې وموښلاوه چې دواړه لڅ وي نو آيا په دې سره اودس ماتيږي او که نه؟

**جواب**: وروره! ستاسي پوښتنه دوه اړخه لري:

**لومړی اړخ دا دی**: چې مېړه دخپلې ښځې و فرج ته لاس ور وړي، نو بايد ووايم چې په دې سره د يوه اودس لا هم نه ماتيږي لکه ردالمحتار چې وايي:

لاينقضه مس ذكر الخ وامرأة وامرد (ايضًا). (ردالمحتار جلد ١ صفحه ١٣٦)



**دوهم اړخ دا دی**: چې مېړه بې له پردې د ښځې د فرج سره خپل فرج وموښلوي، نو دا چې په دې سره اودس ماتيږي او که نه، بايد ووايم چې دوه فرجونه په داسې صورت کې سره موښلېدل چې د دواړو په منځ کې هيڅ پرده او ټوکر نه وي، دا که د نارينه او د ښځې تر منځ وي او که د دوو ښځو تر منځ وي او که د دوو نارينه وو تر منځ وي په ټولو صورتونو کې اوﺱ ماتيږي، ځکه چې مباشرت فاحشه چې "بتماس الفرجين بلاحائل" وي د اوداسه ماتونکی دی. لکه درمختار چې وايي:

وينقضه خروج نجس الخ ومباشرة فاحشة بتماس الفرجين ولو بين المرأتين والرجلين مع الانتشار للجانبين المباشِر والمباشَر ولو بلا بلل على المعتمد.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار جلد ١ صفحه ١٣٦)

## تر اوداسه وروسته استنجاء په يادېدل:

**پوښتنه**: که يوه سړي ته تر اودس تازه کولو وروسته ور په ياد شول چې غټه يا کوچنی استنجاء وهل په کار ده، وروسته دغه سړی را ولاړ شو استنجاء يې ووهله، اوس پوښتنه دا ده چې په دې صورت کې ددغه سړي مخکنی اودس له منځ ولاړ او که نه؟

**جواب**: وروره! په دې صورت کې ښه کار دا دی چې دغه سړی تر استنجاء وهلو وروسته يووار بيا اودس تازه کړي، ددې لپاره چې د اختلاف څخه ووځي. (فتاوى دارالعلوم ديوبند جلد ١ صفحه٨٢)

## آیا په دې سره اودس ماتیږي چې یو چاته شک ورپیدا شي چې باد به مي پرې شوی وي او که نه ؟

**پوښتنه**: که یوه سړي ته د اودس ترتازه کولو وروسته شک ورپیدا شو چې باد به مي پرې شوی وي او که نه، نو آیا په دې سره اودس ماتیږي او که نه؟

**جواب**: نه وروره: په شک سره اودس نه ماتیږي فقط .

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار جلد ۱ صفحه ۱۴۰ او فتاویٰ دارالعلوم دیوبندجلد ۱ صفحه۸۳)**

## د مصنوعي اندامونو د اودس حکم :

**پوښتنه** :آیامصنوعي اندامونه په اوداسه کي ایستل په کاردي او که نه؟

**جواب**: مصنوعي اندامونه پر دوه ډوله دي:

**یو قسم هغه دي**: چې بې لـه اپرېشن کولو څخه امکان نه لري چې د بدن څخه دي راجلا شي. ددا ډول مصنوعي اندام حکم د اصلي اندام د حکم په شان دی یعني په غسل کي پر دغه مصنوعي اندام اوبه تویول واجب دي همدا ډول که دغه مصنوعي اندام د اوداسه د اندامونو څخه وي، نو په اوداسه کي هم ددغه مصنوعي اندام پرېولل واجب دي .

**دوهم قسم هغه دي** : چې دغه مصنوعي اندام په اسانۍ سره د بدنه



څخه راجلا کېدای شي ،نود غسل کولوپر وخت او که د اوداسه د اندامو څخه وي د اوداسه کولو پر وخت دغه مصنوعي اندام راجلا کول او اصلي برخي ته اوبه رسول ضروري دي . **( جدید فقهي مسائل لومړی برخه صفحه ۲۴)**

## پر پلستر باندي مسح کول :

د مجبورۍ په وخت کي پر پښو، لاسونو او یا داسي نورو ځایونو باندي د پلستر لګولو حکم د "جبیرې" یعني پونډکۍ په ډول دی. په اوداسه او په غسل کي پر دغوشیانو یعني پر پلستر او پونډکۍ باندي مسح کول کافي ده، داهم ضروري نه ده چې پلستر دي خامخاد پاکۍ په حالت کي لګول شوی وي.

د حضرت علي(رض) لاس مات شو، پټۍ یې پروتړ له، وروسته جناب رسول الله ﷺ پر دغه پټۍ باندي د مسح کولو حکم ورته وکړ، بله خبره داده چې دغه پټۍ څه ټاکلي موده هم نه لري یعني تر جوړېدلو پوري مسح پر کولای شي.

که چیري ترجوړېدلو مخکي دغه پټۍ په خپله د خلاصېدلو په وجه سره ولوېدله، نو دوهم ځل مسح کولوته ضرورت نشته، مګرهو که چیري دغه ځای جوړ شوی ؤ، نو دوهم ځل پرېولل یې ضروري دي، مثلاً د لمانځه کولو په دوران کي پلستر ولوېدی او حال دادی چې دغه ځای اوس جوړ شوی دی، نو لمونځ به پر دغه ځای پرېږدي او دوهم ځل به اودس تازه کوي او لمونځ به اداء کوي، لکه د مسـح علی الجبیرة حکم چې دی یعني د پلسترحکم د "مسح علی الجبیرة" د حکم په ډول دی .**(جدید فقهي مسائل لومړی برخه صفحه ۲۵)**

## د غاښونو په وینې کېدلو سره اودس ماتېدل :

**پوښتنه**:که یو سړي اودس درلود ،خو په دې وخت کې یې غاښونه وینې شوه ، نو آیا اودس یې مات دی او که نه ؟

**جواب**: که چیرې دغه سړي د وینې خوند محسوس کړ ، یا د ناوړو رنګ سوروالي ته مائل شي نو په دې صورت کې اودس ماتیږي او که داسې نه وي نو اودس نه ماتیږي . ( **فتاوی یوسفیه جلد۲ صفحه ۳۷**)

## که چیرې پر زخم باندې په مسح کولو سره هم تکلیف راتلی څه به کوي ؟

**پوښتنه**:که د یوه سړي پر بدن باندې یو ځای زخم وي او پر دغه ځای باندې د اوبو اچول تاوان لري نو دغه سړی به د اودس یا غسل کولو په وخت کې څه کوي؟

**جواب**: که چیرې پر بدن باندې یو ځای زخم وي او پر دغه ځای باندې د اوبو اچول تاوان لري، نو صرف پر دغه ځای مسح کول یا لاس تېرول کافي دي، که چیرې په دې سره هم وزخم ته تاوان رسېدی او یا په لاس تېرېدلو سره ودغه سړي ته سخت تکلیف رسېدی، نو بیا د لاس تېرولو او مسح کولو ته ضرورت نشته، صرف هغه پاته برخه پرېولل په کار دي .

(**فقه اسلامي جلد ۱ صفحه۱۷۳**)



## د پزې ترټکوهلو وروسته تر پزې د وینې د ټوټې راتوېدل او یاګوته پزې ته وړل او لړ په وینو لړل کېدل :

**پوښتنه**:که یوه سړي پزه سونړ کړه او د وینو ټوټې ورڅخه راتوی شوې آیاپه دې سره اودس ماتیږي او که نه؟

**جواب**: که یو چا پزه سونړ کړه او د وینو ټوټې ورڅخه راتوی شوې، خو نرمه او بهېدونکې وینه په دغو ټوټو کې نه وه، نو په دې سره یې اودس نه ماتیږي، ځکه چې اودس هغه وخت ماتیږي چې نرمه وینه راووزي او وبهیږي، نو که یو چا په پزه کې ګوته واچوله، وروسته چې یې ګوته بیرته راوایستل، که ګوري چې ګوته یې په وینو لړ سره ده، نو په دې سره یې اودس نه ماتیږي (**درمختارجلد ۱ صفحه۱۳۹**)

## که یو څوک په قصده دانه کنښکاږي او وینه ځني راووزي آیا په دې سره اودس مات دی او که نه؟

**پوښتنه**:که یو سړي په قصده دانه کنښکاږي او وینه ځني راووزي آیا په دې سره یې اودس مات دی او که نه؟

**جواب**: که د زخم یا دانې څخه وینه یابل شی پخپله نه وي راوتلې، بلکې قصداً دانه یا زخم کنښکاږي، او وینه ځني راووزي، نو په دې سره اودس په

هغه شرط مات دی چي شاوخوا وبهيږي. (درمختارجلد ۱ صفحه۱۴۱)

## د ښځي د تيو څخه اوبه راوتل :

که د ښځي د تيو څخه اوبه راووزي، درد هم ورسره وي، نو دغه اوبه هم مرداري دي او اودس يې هم په ماتيږي، او که درد نه وي ورسره، نو مرداري نه دي او نه يې اودس په ماتيږي. (ردالمحتارجلد ۱ صفحه۱۴۴)

## سخت عورت ته لاس وروړل اودس نه ماتوي :

**پوښتنه**: آيا سخت عورت ته لاس وروړل ناقض وضوء دی او که نه، يعني يو څوک چي عورت ته لاس وروړي بيا به د لمانځه لپاره نوی اودس تازه کوي او که په هماغه اوداسه لمونځ صحيح دی؟

**جواب**: وروره! په دې صورت کي د نوي اوداسه ضرورت نشته، په هماغه اوداسه لمونځ صحيح دی. (فتاوی دارالعلوم ديوبندجلد ۱ صفحه۸۶)

ردالمحتاروايي چي عورت ته په لاس وروړلو سره اودس نه ماتيږي ، مگر د لاس پريولل مستحب دی: لاينقضه مس ذکر لکن يغسل يده ندبا.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتارجلد ۱ صفحه۱۳۶)

## د باد په پرېکېدلو سره استنجاء وهلوته ضرورت نشته:

**پوښتنه**: د باد په پرېکېدلو سره اودس ماتيږي، مگر استنجاء وهلوته ضرورت نشته ددې څه وجه ده؟



**جواب**: د باد د پرېکېدلو په صورت کي استنجاء ته په دې وجه ضرورت نشته چي په دې صورت کي بدن په نجاست نه دی لړل شوی، د باد وتل صرف حکمي نجاست منځ ته راوړي، دې ته حدث اصغر ويل کيږي، په دې صورت کي صرف اودس کافي دی. (فتاوی دارالعلوم ديوبند جلد ۱ صفحه۸۶)

او همدارنگه درمختارليکي:

وقيل سببها الحدث الحکمية وهو وصف شرعی يحل فی الاعضاء يزيل الطهارة. (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتارجلد ۱ صفحه۱۳۶)

## په قهقهه يعني په زوره خندا سره ولي اودس ماتيږي :

**پوښتنه**: داڅه وجه ده چي يو څوک په لمانځه کي وخاندي اودس يې ماتيږي او که د لمانځه د باندي وخاندي اودس يې نه ماتيږي، همدارنگه که د جنازې په لمانځه کي وخاندي لمونځ يې فاسديږي ، مگر اودس يې نه ماتيږي ددې څه وجه ده او په دې کي څه حکمت دی؟

**جواب**: قياس عقلي خو دادی چي په قهقهې سره بايد بالکل اودس مات نه شي، لېکن د جناب رسول الله ﷺ څخه ثابت دي چي ده مبارک يو سړي ته د قهقهې په کولو سره د اوداسه او لمانځه دواړو راگرځولو حکم وفرمايه، نو ددې وجي پر مسلمان ددغه حکم منل فرض شول، که څه هم چي د انسان په ناقص فهم او کوچني فکر کي به ددې خبري حکمت نه راځي، لېکن داچي دا حکم د ظاهري قياس خلاف دی نو ددې سببه پر کوم ځای چي دغه حکم وارد شوی دی صرف پر هماغه ځای به دغه حکم کولای شي پرنوروځايونود قهقهې

په کولو سره د اوداسه د ماتېدلو حکم نه شي کېدای که څه هم چې په هغه ځای کي به خنداکول ددې په نسبت ډېر بد کاروي لکه د جنازې په لمانځه کي خندل

د اصولو دا قاعده ده هغه حکم چې قياسي نه وي، هغه به تر خپل ځای نه متجاوز کيږي يعني تر هغه ځای چې خاص حکم پکښې شوی دی، بل شي ته به ددې حکم نه غزول کيږي لکه هدايه چې دا مسئله په دې ټکو سره را اخلي

المعانی الناقضة للوضوء الخ القهقهة فی صلوٰة ذات رکوع وسجود والقياس انها لاتنقض الخ وبمثله يترک القياس والاثر ورد فی صلوة مطلقة فيقتصر عليها. **(الهدايه فصل فی نواقض الوضوء جلد ۱ صفحه۳۵)**

فلايتعدی الی صلوة الجنازة وسجدة التلاوة وصلوة الصبی الخ.

**(حاشيه هدايه جلد ۱ صفحه۳۶)**

## که د اوداسه يقين وي نو د شک په وجه سره اودس ضروري نه دی:

**پوښتنه:** يو سړي اودس درلودی. خو ولاړی د کور دباندي ميداني ته د بازيو او لوبو لپاره، يو ګړی يې هلته وخغستل، راوخغستل، بازی او ساتېری يې وکړ تر دې وروسته چې راغی کورته، نو شک ورپيدا شو چې اودس به مي مات شوی وي او که نه، آيا ددغه سړي اودس مات دی او که نه يعني بيا به اودس تازه کوي او که نه؟



**جواب:** وروره! که د دغه سړي ښه په يادوي چې اودس مي درلودی خو شک يې په دې کي ؤ چې آيا اودس به مي د لوبو او بازيو په وخت کي مات شوی وي او که نه، نو په دې صورت کي د نوي اوداسه ضرورت نشته، خپل لمونځ دي وکړي اودس يې نه دی مات، په شک سره اودس نه ماتيږي ځکه چي فقهاء وايي چي په شک سره اودس نه ماتيږي، بلکي يقين معتبر دی، لکه درمختار چي ليکي: ولوايقن بالطهارة وشک بالحدث او بالعکس اخذ باليقين ولو تيقنهما وشک فی السابق فهو متطهر.

**(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتارجلد ۱ صفحه۱۲۷)**

او همدارنګه دا د فقهي يوه قاعده ده چي: اليقين لايزول بالشک.

**(الاشباه والنظائر مع شرح حموي صفحه۷۵)**

## په پېچکاری باندي د اوداسه د ماتېدلو مسئله:

**پوښتنه:** آيا د پېچ کاری په لګولو سره اودس ماتيږي او که نه؟

**جواب:** وروره! پېچکاری پر دوه ډوله وېشل کيږي:

**لومړی دا چي:** که چيري په پېچکاری سره وبدن ته دوا وردننه کړل شي، په دې سره اودس نه ماتيږي ځکه چي په دې سره خو د دباندي څخه يو شی وبدن ته ننوتی نو د دباندي څخه خو وبدن ته په هيڅ شي ننوتلو سره اودس نه ماتيږي او که تاسي وايست چي پېچکاری چي کله د بدنه راوزي نو يو څه وينه ضرور پر موښتې وي، ددې خبري په جواب کي بايد ووايم چي دومره

اندازه وینه راوتل د اوداسه ماتونکې نه ده، ځکه چي دا خو دومره لږه اندازه وینه ده چي بهېدلای نه شي لکه فقهاؤ چي ویلي دي چي که چیري د بدنه ځخه وینه راووزي، هغه وچه کړی که بیا راووتل هغه بیا وچه کړی، وروسته وګوری که د دغو وینو اندازه دومره لږ وي چي که وچه شوې نه وای، ددغه ځای ځخه نه شوای بهېدلای، نو په دې سره اودس نه ماتیږي لکه فتاویٰ عالمګیري چي وایي:

اِذَاخَرَجَ مِنَ الْجُرْحِ دَمٌ قَلِيْلٌ فمسحهُ ثُمَّ خَرَجَ اَيْضًا ومسحه فَاِنْ كَانَ الدَّمُ بِحَالٍ لَوْتُرِكَ مَاقَدْ مُسِحَ عَنْهُ فَسَالَ اِنْتَقَضَ وُضُوْئُهُ وَاِنْ كَانَ لَايَسِيْلُ لَايَنْتَقِضُ وُضُوْءُهُ. (فتاویٰ عالمګیري جلد ۱ صفحه۶)

یعني که د زخم ځخه لږ وینه راووزي، نو هغه وچه کړئ که بیا راووزي بیا یې وچه کړئ، اوس وګوری که دغه ټوله راوتلې وینه دومره اندازه وي چي که پر خپل ځای پریښودل شوې وای او وچه شوې نه وای بهېدله، نو په دې صورت کي ددغه سړي اودس مات دی او که ستاسي فکر دا وایي چي که موږ نه وای وچه کړې، نه شوای بهېدای یعني دومره لږ وه چي ستاسي په فکر د بهېدلو نه وه، نو په هغه صورت کي بیا اودس نه ماتیږي.

**دوهم دا چي:** که یې په پېچکاری، سره وینه را ایستل مطلب وي، نو په دې سره یې اودس ماتیږي لکه فقهاؤ چي ویلي دي چي که ژوره د چاوینه دومره وزبېښي چي ډکه شي نو که کوچنۍ وي اودس یې نه دی مات لکه غوماشه او که غټه وي نو یې اودس ماتیږي، چي مثال یې د فقهي د اجزئیه ده:



اَلْقُرَادُ اِذَامَصَّ عُضْوَ اِنْسَانٍ فَامْتَلَاَ دَمًا اِنْ كَانَ صَغِيْرًا لَايَنْتَقِضُ وُضُوْءُهُ كَمَا مَصَّتِ الذُّبَابُ اَوِالْبُعُوْضُ وان كَانَ كَبِيْرًا يَنْقُضُ، وكذا العلقة اِذا مصَّ عُضْوَ اِنْسَانٍ حتىٰ امْتَلَاَتْ مِنْ دَمِه اِنْتَقَضَ الْوُضُوْءُ.

(فتاویٰ عالمګیري جلد۱صفحه ۶)

## په څومره وینو سره کالي مرداریږي:

**پوښتنه**: په څومره وینو یا په څومره قي سره کالي مرداریږي؟

**جواب**: لومړی باید داخبره زده کړئ چي د کوم شي په وتلو سره چي اودس ماتیږي هغه مردار دی، او د کوم شي په وتلو سره چي اودس نه ماتیږي هغه شی مردار نه دی لکه فقهاوو چي ویلي دي: مالیس بحدث لیس بنجس.

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتارجلد ۱ صفحه۱۳۰)**

یعني په هغه شي چي اودس نه ماتیږي، هغه مردار هم نه دی، نو که دومره وینه د زخم ځخه راووتل چي ونه بهېد له، یا دومره قی یې وواهه چي په ډکه خوله نه ؤ، نو باید ووایم چي نه دغه اندازه وینه مرداره ده او نه دغه اندلزه قی مردار دی، نو که په دې سره کالي ولړل شوه، پرېولل یې واجب نه دي.

او که د زخم ځخه دومره وینه راووتل چي وبهېدله او یا یې په ډکه خوله قی وواهه نو باید ووایم چي هم دغه وینه او هم دغه قی مردار دی او پرېمنځل یې واجب دي، نوکه یې د ډکي خولې قي وهلو ځخه وروسته ددې لپاره چي خوله

پربولي پر لوته خوله کښېښودل، نو دغه لوښی مرداريږي يعني بايد په دغه صورت کي په لپه سره اوبه راواخلي او خوله په پربولي .

(ردالمحتارجلد ۱ صفحه۱۴۵)

**پوښتنه**: که د يو سړي د زخم څخه لړ لړ وينه راوتله او ده پاکوله دې ته يې نه پرېښودل چي وبهيږي آيا په دې سره اودس مات دی او که نه ؟

**جواب**: که د زخم څخه لړ لړ وينه راوتله او سمدلاسه ده پاکوله، دې ته يې نه پرېښودل چي وبهيږي، نو دغه سړی دې په خپل زړه کي فکر وکړي چي که مي دغه وينه پاکه کړې نه وای بهېدله ، نو اودس يې مات دی او که ده ده په فکر سره دا وينه دومره نه وه چي بهېدلې دې وای، نو بيا يې نه اودس ماتيږي. او نه يې هغه ټوکر مرداريږي چي ده وينه په پاکه کړې ده. د کوچني د شيدو د قي وهلو هم همدا حکم دی. که په ډکه خوله ؤ مردار دی او که نه ؤ مردار نه دی. (ردالمحتارجلد ۱ صفحه۱۴۲)

## د اوداسه هېرېدل :

**پوښتنه**: که د يو سړي اودس تازه کول په ياد وي، خو دا يې نه په ياد نه وي چي اودس مي مات شوی دی او که نه، نو څه به کوي؟

**جواب**: که د يو سړي اودس تازه کېدل په ياد وي خو دا يې نه وي په ياد چي اودس مي مات شوی دی او که نه، نو بايد ووايم چي د دغه سړي اودس مات نه بلل کيږي لمونځ يې په صحيح کيږي ، مگر ښه کار دادی چي بيرته



اودس تازه کړي . (درمختار جلد ۱ صفحه۱۵۶)

## په اوداسه کي دا شک ورپيداکېدل چي فلاني اندام به مي پرېولي وي او که نه :

**پوښتنه**: که يو سړي ته شک ورپيداشي چي په اوداسه کي مي فلانی اندام پرېولی دی او که نه نو څه به کوي؟

**جواب**: که د اوداسه په وخت کي شک ورپيداشي نو بايد هغه اندام پرېولي او که وروسته شک ورپيداشي نو هيڅ شک دې نه کوي اودس يې صحيح دی او که دا ورته يقين شوه چي د فلاني اندام پرېولل راڅخه پاته شوي دي ، نو بيا دې پرېولي . (فتاوی شامي جلد ۱ صفحه۱۵۵)

# د غسل احکام

غسل د دوو مقصدونو لپاره کیږي یو د ثواب لاسته راوستلو لپاره مثلاً د جمعي یا اخترونو لپاره غسل کول، او دوهم د ځینو ناپاکیانو دلیري کولو لپاره، چي د غسل څخه ماسېوا بل ډول نه شي لیري کېدلای.

## د غسل معنیٰ

په لغت کي د ټوله بدن پرېولوته غسل ویل کیږي، مگر په شریعت کي د ثواب حاصلولو لپاره په ځانگړې طریقه سره د ټوله بدن پرېولوته غسل ویل کیږي.

## د غسل فرضونه:

**پوښتنه**: د غسل فرضونه څو دي؟

د غسل فرضونه درې دي:

۱- دخولې پرېولل. ۲- دپزې پرېولل. ۳ -د ټوله بدن پرېولل.

## آیا په مذي کي چي سړی د ښځي سره بازي کوي اولوندوالی محسوس کړي، غسل واجب دی اوکه نه؟

**پوښتنه**: آیا په مذي کي چي سړی د ښځي سره ساټ تېروي او لوندوالی محسوس کړي، غسل واجب دی او که نه؟



**جواب**: نه وروره! په مذي او په ودي په دواړو کي غسل نشته.

## آیا په غسل کي په خوله اوبه غړغړه کول فرض دي:

**پوښتنه**: آیا په غسل کي په خوله اوبه غړغړه کول فرض دي او که نه؟

**جواب**: نه وروره: په غسل کي غړغړه فرض نه ده، بلکي سنت ده، هغه هم چي روژه نه وي، ځکه چي په روژه کي غړغړه کول د درمختار په قول د فساد احتمال لري. (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتارجلد ۱ صفحه۱۰۷)

## د غسل نیت:

**پوښتنه**: آیا په غسل کي نیت فرض دی او که نه؟

**جواب**: نه وروره: په غسل کي نیت فرض نه دی، ځکه چي که یو سړی د گرمی په وجه باران ته ودرېدی او ټول بدن یې لوند شو، خوله او پزه یې هم ورسره پرېولل، نو بس ددغه سړي غسل صحیح شو، او یا مثلاً یو سړی په نافهمی کي حوض ته ورولوېدی او ټول بدن یې لوند شو، بیا یې خوله او پزه هم پرېولل، بس غسل یې صحیح شو. (منیة المصلي صفحه۱۵)

## په لڅ بدن او په ولاړي لمبېدل:

**پوښتنه**: آیا په لڅ بدن اوپه ولاړي لمبېدل روادي او که نه او بله پوښتنه داده چي آیا یوه ښځه د بلي ښځي په مخ کي په لڅ بدن لمبېدای شي او که نه؟

**جواب**: که چیري د تنهایي ځای وي چي هیڅوک یې نهویني، نو په لڅ بدن

سره لمبېدل پروا نه لري، اونه دا فرق کوي چي په ولاړې لمبېږي او که په ناستي ، مګر په ناسته لمبېدل ښه کار دی، پاته دا خبره شوه چي یوه ښځه د بلي ښځي په مخکي په لڅ بدن لمبېدل روادي او که نه، نو باید ووایم چي د نامه څخه تر ځنګنو پوري د بلي ښځي په مخکي هم د بدن ښکاره کول ګناه ده اود بې غیرتۍ کاردی.

**(مراقی الفلاح صفحه۵۷ اوفتاوی شامي جلد ۱ صفحه۱۴۰)**

## که د یوې ناروغۍ په سبب په غسل کي پر سر باندي اوبه اچول تاوان کوي نو څه به کوي ؟

**پوښتنه**: که د یو مرض په سبب پر سر باندي اوبه اچول تاوان کوي، نو دی به څه کوي؟

**جواب**: که د یو مرض په سبب پر سر باندي اوبه اچول تاوان کوي اودغه سړی سر پرېږدي نور بدن پرېولي، نو بیا هم غسل صحیح کیږي، مګر هر وخت چي ښه شي، نو سر دي پرېولي، د بیرته لمبېدلو ضرورت یې نشته.

**(درمختارجلد ۱ صفحه۱۵۹)**

## د غسل څخه لږ مخکي خوله پرېولل :

**پوښتنه**: که یو سړي ته احتلام ورپېښ سو یعني شیطان خطا یستی، نو وروسته دی راولاړ سو په خوله یې اوبه ورغړولې، او د هغه وروسته یې ډوډۍ وخوړل، او د ډوډۍ خوړلو څخه وروسته یې غسل وکړ خو خوله یې په



غسل کي نه پرېولل ، نو آیا ددغه سړي غسل صحیح شو ، یعني هغه د ډوډۍ مخکي چي یې خوله پرېولې ده هغه کافي شوه او که نه ؟

**جواب**: هو ، د ډوډۍ څخه مخکي چي یې خوله پرېولې ده هغه دده لپاره کافي شوه، یعني که چیري د غسل په وخت کي دوهم ځل خوله پرې نه ولي نوڅه پروا نه لري . **( فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد ۱ صفحه۹۱)**

## په غسل کي څو واري د خولې او پزي پرېولل فرض دي :

**پوښتنه**: په غسل کي څو واري د خولې او پزي پرېولل فرض دي او بله پوښتنه داده چي آیا په خوله اوبه غړغړه کول فرض دي او که نه؟

**جواب**: یو یو ځل یې پرېولل فرض دي او درې واره سنت دي، پاته دا خبره شوه چي په غسل کي په خوله باندي اوبه غړغړه کول فرض دي او که نه، باید ووایم چي غړغړه کول سنت ده ، هغه هم په هغه صورت کي چي روژه نه وي.

**(فتاوی دارالعلوم جلد ۱ صفحه۹۱)**

## په غسل کي د ښځي وریښتان :

**پوښتنه**: که ښځي کوڅۍ اودلي وي نو آیا خلاصول یې ضروري دي او که نه؟

**جواب**: نه وروره! که چیري ښځي کوڅۍ اودلي وي ، نو د هغو خلاصول

ضروري نه دي ، بلکي د وربښتانو وبېخوته اوبهٔ رسول کافي دي، يعني پر سر دي اوبه واچوي، او په لاسونو باندي دي سر ښه وموږي چي د وربښتانو وبېخوته اوبه ورسيږي لکه هدايه چي وايي: **وليس على المرأة ان تنقض ضفائرها فى الغسل اذا بلغ الماء اصول الشعر.** (**هدايه جلد اصفحه۳۷**).

يعني پر ښځي باندي دا نشته چي په غسل کي دي کوڅۍ خلاصي کړي په هغه صورت کي که د وربښتانو وبېخوته اوبه ور رسېدلي.

دغه حکم يوازي د ښځو لپاره دی، سړی که هر څومره غټ وربښتان هم ولري او کوڅۍ يې اودلي وي، خلاصوي به يې او ټولو وربښتانو ته به اوبه رسوي. او همدارنګه که ښځي کوڅۍ نه وي اودلي يعني وربښتان يې ايله وي لکه نن سبا چي اکثره رواج لري، نو په دې صورت کي ټوله وربښتان لندول او د وربښتانو وبېخوته اوبه رسول فرض دي.

(**منيه المصلي صفحه۱۶ اوفتاویٰ دارالعلوم جلد ۱ صفحه۹۴**)

## په پښو اولاسونوکي چاودي:

**پوښتنه**:که د يوسړي پښې اولاسونه چاودلي وي او په دغو چاودو کي يې غوړي يا وازګه ايښې وي، نو آيا پردې سرېبره اوبه بهيول روادي او که نه؟

**جواب**: هو، روادي. (**منية المصلي صفحه ۱۷**)

## دلمبېدلوپه وخت کي په ډکه خوله غټ غوړپ کول:

**پوښتنه**:که يو سړی دلمبېدلو په وخت کي په خوله اوبه ونه رغړولې خو



په ډکه خوله سره يې غټ غوړپ وکړی، نوآيا غسل يې صحيح دی او که نه؟

**جواب**: هو صحيح دی، ځکه چي مطلب خو وټولي خولې ته اوبه رسول دي، فرق نه کوي که يې د پرېوللو پر طريقه ور ورسوي او که يې د څښلو په ډول ور ورسوي، خو په دې شرط چي دومره غټ غوړپ به کوي چي ټولي خولې ته اوبه ورسيږي. (**منية المصلي صفحه ۱۸**)

**پوښتنه** :که يو سړي بدن په تيلو غوړ کړی ؤ يا يې وربښتان په تيلو غوړ کړي وه، نو د غسل په وخت کي بدن ښه نه لنديږي اوبه دا غسي پر رغړي ، نو آيا غسل يې صحيح دی او که نه؟

**جواب**: هو، دا هيڅ پروا نه لري ، بس چي پر ټول بدن باندي يې اوبه واچولې غسل يې صحيح شو. (**ردالمحتار جلد ۱ صفحه ۱۶۰**)

## په يو حوض کي د مسلمانانو سره هندوان يو ځای لمبېدل :

**پوښتنه**:که په يو حوض کي د مسلمانانو سره هندوان يو ځای لمبيږي، او د هغوی د بدن اوکالو ځاځکي د مسلمانانو پر بدنونو هم موښلي، نو آيا په دغه صورت کي غسل صحيح کيږي او که نه ؟

**جواب**: هو،وروره! په دغه صورت کي غسل صحيح دی، د ناپاکۍ وهم نه دی کول په کار. فقط. ( **فتاویٰ دارالعلوم ديوبندجلد ۱ صفحه۹۱**).

او همدارنګه الاشباه والنظائر ليکي: **اليقين لايزول بالشک.**

## د غابښ يوه برخه لوېدل او بيرته تړل:

**پوښتنه**: که د يو سړي يو غابښ راولوېدی، هغه يې بيرته راپورته کړ، بيرته يې په هغه ځای پوري په يو شي وتړی، نو ايا په دې صورت کې د دغه سړي غسل صحيح کيږي او که نه؟

**جواب**: هو صحيح کيږي، په غسل کې مضمضه کول کافي ده، د غابښونو وبېخونو ته اوبه رسول مقصود او ضروري نه دي، او په کوم کار کې چې تکليف وي هغه شرعًا معاف دی. فقط.

**(فتاویٰ دارالعلوم ديوبندجلد ۱ صفحه۹۴)**

## آيا د غابښونو د ډکولو په صورت کې غسل صحيح کيږي او که نه؟

**پوښتنه**: زما يو غابښ سوری دی، په دې وجه سره زما غابښ درد کوي او خوله مې بدبويې هم کوي، ما غوښتل چې په ډاکټر يې ډک کړم، مګر ځيني خلکو راته وويل چې دا کارمه کوه، ځکه چې بيا دې غسل نه صحيح کيږي. ددغو خلکو دليل داؤ چې په غسل کې د ټولې خولې پربولل فرض دي، نو يو داسي شی په خوله کې موښلول چې د هغه په وجه ولاندې ځای ته اوبه ونه رسيږي، د غسل د صحت لپاره مانع دی، آيا ددغو خلکو دغه خبره صحيح ده؟

**جواب**: وروره: ددغو خلکو رايه غلطه ده، ځکه چې دغابښونو تر ډکولو وروسته چې کوم مواد په غابښونو پوري وموښلي، د هغه حکم د پردې شي نه



دی، نوځکه د غسل د صحيح کېدلو لپاره دا کار مانع نه دی، خو ددغو خلکو دا خبره چې په خوله کې داسي شی موښلول چې لاندې ځای ته يې اوبه ور ونه رسيږي د غسل د صحيح کېدلو لپاره مانع دی، د دوی دا خبره صحيح ده. مګر دا حکم هغه وخت دی چې ددغه شي ايستل بېله تکليفه امکان ولري، مګر کوم شی چې دا ډول موښلول شوی وي چې ايستل يې بېله تکليفه ممکن نه وي مثلاً غابښونوته د سرو يا سپينو زرو داسي پوښ ورکول شوی وي چې په اسانۍ سره نه شي ايستل کېدای، نو ددغه پوښ ظاهري برخه د غابښونو حکم اخلي، يعني ظاهري برخې ته يې اوبه رسول کفايت کوي.

**(فتاویٰ يوسفيه جلد۲ صفحه۵۳)**

## غابښونه ډکول يا مصنوعي غابښونه اېښودل:

**پوښتنه**: غابښونه ډکول، او يا غابښونوته د سرو يا د سپينو زرو څخه پوښ ورکول روادي او که نه، ځکه چې فقهاؤ خو ويلي دي چې که چيرې د بدن پر يو ځای اوړه وموښلي او وچ شي او يا ختمې اوخيرې پر موښتي وي چې د دوی په وجه سره ولاندې ځای ته اوبه نه رسيږي نو غسل يې نه صحيح کيږي.

**جواب**: د غابښونو د يوې خرابۍ په سبب سره د سرو يا د سپينو زرو څخه پوښ ورکول روادی، اوصرف د ښايست لپاره دا ډول پوښ ورکول مکروه دی.

خو دا چې ددغه پوښ سره غسل روادی او که نه، بايد ووايم چې و غابښونو ته د سرو زرو او يا سپينو زرو پوښ که د ضرورت په وجه ورکول شوی وي او که بې له ضرورته ورکول شوی وي په دواړو صورتونو کې غسل روا دی ځکه

چي دغه پوښ د يو لازم جزء حيثيت لري ، په خلاف د اوړو او خيرو چي هغه لازم جزء نه دی . (**کفايت المفتی جلد۲ صفحه۳۱۳**)

**پوښتنه**: نن سبا ډېر خلک د سرو يا د سپينو زرو څخه غاښونه جوړوي او حال دادی چي د غسل پر وخت نه دغه غاښ را ايسته کېدای شي او نه بيا تر غاښ لاندي ځای ته اوبه ور رسېدای شي ، نو آيا دغه کار شرعاً څه حکم لري؟

**جواب**: د ضرورت پر بناء دغه ډول غاښ لګول روا دی ، مګر دغه ډول غاښ صرف د ښايست لپاره لګول مکروه دی، خو غسل په دواړو حالتونو کي صحيح دی ، ځکه چي دغه مصنوعي غاښ ترلګولو وروسته د جسم حکم اخلي (**کفايت المفتی جلد۲ صفحه۳۱۵**)

## مصنوعي غاښونه اېښودل روادي او که نه :

**پوښتنه**: مصنوعي غاښونه اېښودل روادي او که نه؟

**جواب**: مصنوعي غاښونه پر دوه ډوله دي:

**يو قسم هغه ډول غاښونه دي چي**: داسي پاخه ولګول شي چي په اسانۍ سره نه شي را ايستل کېدای.

**او بل قسم هغه ډول غاښونه دي چي**: د ضرورت پر وخت په اسانۍ سره را ايستل کېدای شي، لومړی ډول غاښونه خو لکه مخکي مو وويل د اصلي غاښونو حکم لري ، صرف سرېېرن غاښونو ته اوبه ور رسول په



اوداسه کي سنت او په غسل کي فرض دي يعني غاښ را ايستل او بېخ ته يې اوبه ور رسول ضروري نه دي، ردالمحتار وايي چي ددې خبري د جواز لپاره يو دليل دادی چي ځيني فقهاؤ پخپله هم دغه ډول غاښونه لګولي دي او هم يې و غاښونوته د سرو يا د سپينو زرو پوښونه ور جوړ کړي دي او په دې سره يې د غاښونو د ټينګولو اجازه ورکړې ده . (**ردالمحتارجلد۵ صفحه۳۱۸**)

**پوښتنه**: غاښ ته پوښ ورکول او يا غاښ ډکول خوبه د غسل لپاره مانع نه وي؟

**جواب**: غاښ ته د سروزرو يابل شي څخه پوښ ورکول او يا غاښ ډکول د غسل د صحيح کېدلو لپاره مانع نه دی، ځکه چي د غاښ دغه پوښ يا د غاښ د ډکولو وروسته کومه مساله چي د غاښونو سره موښلول شوې ده. د هغه حکم د پردي شي نه دی، يعني ددې سره غسل صحيح دی ددې خبرو تفصيل مخته د خپلو حوالو سره يو ځای تېر شوی دی .

## د جماع څخه وروسته بولي کول :

**پوښتنه**: موږ اورېدلي دي چي د جماع څخه وروسته که بولي ونه کړل شي، نو غسل يې نه صحيح کيږي آيا دا خبره صحيح ده او که نه؟

**جواب**: دا خبره صحيح نه ده، دايو غلط مشهور دی .

(**فتاویٰ دارالعلوم ديوبندجلد ۱ صفحه۹۴**)

## آیا صرف د سړي مني د ښځي په فرج کي په داخلېدلوسره پر ښځي باندي غسل واجبېږي که نه؟

**پوښتنه**: آیا صرف د سړي مني د ښځي په فرج کي په داخلېدلو سره پر ښځي باندي غسل واجبېږي او که نه یعني چي د پېچکارۍ په ذریعه یا په بله ذریعه د ښځي وفرج ته ورننه ایستل شي ؟ .

**جواب**: صرف د منیو په داخلېدلو سره پر ښځي غسل نه واجبېږي.

**(فتاوی دارالعلوم دیوبندجلد ۱ صفحه۹۹)**

## د منیو بندول:

**پوښتنه**: دا څو ورځي کیږي چي ماته بدخوابي راته پېښه ده او دامي هم عادت شوي دي چي احتلام بندوم، ځیني وخت هیڅ څاڅکی هم راونه وزي او ځیني وخت بیا یوۀ نیم څاڅکی راووزي، ځیني وخت ماته شک راولوېږي چي څاڅکی په شهوت سره راووتی او ځیني وخت بیا په شهوت سره د نه راوتلو یقین وي، څاڅکی ډېر کوچنی وي او کله بیا غټ وي، ځیني وخت لا داهم کېږي چي د احتلام بندولو څخه وروسته یو یا دوه څاڅکي بې لـه شهوته راووزي، نو آیا په دغو حالتونو کي غسل واجب دی او که نه ؟ .

**جواب**: په کوم صورت کي چي د یوه یا نیم څاڅکي د راوتلو یقین وي په هغه صورت کي غسل واجبېږي او په کوم صورت کي چي هیڅ څاڅکی را و نه وزي په دغه صورت کي بیا غسل نه واجبېږي او د احتلام د بندولو څخه



وروسته که بې لـه شهوته څاڅکی راووزي، نو امام ابویوسف (رحمه الله) په دغه صورت کي غسل واجب نه بولي مګر امام اعظم ابوحنیفه (رحمه الله) او امام محمد (رحمه الله) بیا غسل واجب بولي او همدا خبره ډېره د احتیاط وړده . فقط.

**(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد ۱ صفحه۹۹)**

په دې هکله د ردالمحتار عربي متن په دې ډول دی: وفرض الغسل عند خروج منی الخ منفصل عن مقره الخ بشهوة الخ لانه لیس بشرط عندهما خلافا للثانی ولذا قال وان لم یخرج من راس الذکر بها وشرطه ابو یوسف وبقوله یفتی الخ (درمختار) ولاسیما قد ذکر وان قوله قیاس وقولها استحسان وانه الاحوط. **(ردالمحتارجلد ۱ صفحه ۱۴۸، ۱۴۹)**

## آیا د ښځو څخه د منیو وتل هم غسل واجبوي :

**پوښتنه**: که چیري د ښځو څخه د نارینه ؤ په ډول په شهوت سره مني ووتل، نو آیا پر دوی باندي غسل واجب دی او که نه؟

**جواب**: هو واجب دی، لکه هدایه چي وایي.

اَلْمَعَانِی الْمُوْجِبَةُ لِلْغُسْلِ اِنْزَالُ الْمَنِيِّ عَلَى وَجْهِ الدَّفْقِ وَالشَّهْوَةِ مِنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ حَالَةَ النَّوْمِ وَالْيَقْظَةِ. **(هدایه جلد ۱ صفحه۱۳۷)**

**یعني اسباب د غسل واجبوونکي**: وتل د مني دي پر طریقه د غورځېدلو او شهوت سره، دا که د سړي څخه وي او که د ښځي څخه، په حالت د خوب

کي وي او که د بيداري کي.

## که ښځوته احتلام ورپېښ شي، اياغسل پر واجب دی او که نه ؟

**پوښتنه:** که ښځوته احتلام ورپېښ شي، ايا غسل پر واجب دی او که نه؟

**جواب:** هو واجب دی. لکه هدايه چي وايي:

اَلْمَعَانِي الْمُوْجِبَةُ لِلْغُسْلِ اِنْزَالُ الْمَنِيِّ عَلٰى وَجْهِ الدَّفْقِ وَالشَّهْوَةِ مِنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ حَالَةَ النَّوْمِ وَالْيَقْظَةِ. **(هدايه جلد ۱ صفحه۱۳۷)**

**يعني اسباب د غسل واجبوونکي:** وتل د مني دي پر طريقه د غورځېدلو او شهوت سره، دا که د سړي څخه وي او که د ښځي څخه، په حالت د خوب کي وي او که د بيداري کي.

## د غسل کولو څخه وروسته د منيو راوتل:

**پوښتنه:** که چيري دچا مني رقيق وي او هغه د بولو کولو څخه وروسته غسل وکړي او بيا نور بقيه مني راووزي، نو بيا به غسل کوي او که نه ؟

**جواب:** په دې باره کي ردالمحتار ليکلي دي چي د بولو کولو څخه وروسته که چيري انتشار باقي وي او ددغه انتشار په حالت کي باقي مني راووزي، نو غسل دوهم ځل بيا لازم دی او که چيري انتشار پاته نه ؤ، نو غسل واجب نه



دی او د غسل د واجبېدو لپاره انفصال بشهوت يعني په شهوت سره راجلا کېدل شرط دي که څه هم چي وتل يې په شهوت سره نه وي، خو د ضرورت په ځايونو کي خروج بشهوت يعني په شهوت سره پر وتلو باندي فتواده کوم چي د امام ابو يوسف رحمه الله قول دی، نو ماسېوا د ضرورت څخه پر انفصال بشهوت يعني په شهوت سره پر راجلا کېدلو باندي فتواده لکه ردالمحتار چي د لومړي جلد په ۱۴۹ صفحه کي وايي.

**(فتاوىٰ دارالعلوم ديوبندجلد ۱ صفحه۱۰۱)**

## سرينښاکه اوبه راوتل:

**پوښتنه:** آيا پر سرينښاکو اوبو راوتلو باندي غسل واجب دی او که نه؟

**جواب:** د سرينښاکو اوبو په راوتلو سره غسل نه واجبيږي. فقط

لکه درالمختار چي وايي چي نه د مذي او نه د ودي پر راوتلو غسل شته. بلکي ددغو شيانو په راوتلو سره صرف اودس مات دی. عربي متن يې په دې ډول دی: لا (اى لايفرض الغسل) عند مذى او ودى بل الوضوء ومنه ومن البول جميعا على الظاهر.

**(الدرالمختار على هامش ردالمحتارجلد ۱ صفحه۱۵۳)**

## د نابالغي انجلۍ سره پر زنا کولو باندي غسل:

**پوښتنه:** که يو چا ديو نابالغي انجلۍ سره زنا وکړل، نو آيا پر دغي نابالغي انجلۍ باندي غسل واجب دی او که نه؟

**جواب**: پر نابالغه باندي غسل فرض نه دی خو غسل کول ښه کار دی

(فتاویٰ دارالعلوم دیوبندجلد ۱ صفحه ۱۰۱)

## د خوب څخه وروسته لوندوالی لیدل او یقین درلودل چي دا مني نه دي :

**پوښتنه**: که یو سړی د خوبه څخه راپورته شو، که گوري چي پر ذکر باندي یې لوندوالی ولیدی خو ده ته دایقین ؤ چي احتلام نه دی راته پیښ شوی، یایې احتلام یعني د شیطان خطا ایستل نه وي په یاد، او دا د مذي لوندوالی دی، او حال دادی چي پر بدن او کالو باندي یې د مني هیڅ اثر هم نشته، نو آیا په دغه صورت کي غسل واجب دی او که نه؟

**جواب**: په دغه صورت کي غسل نه دی واجب، په منية کي هم ودغه صورت ته مطلقًا غسل واجب نه دی ویل شوي لکه څنگه چي یې په دې عبارت ان کان ذکره منتشرا قبل النوم سره یې تفصیل کړی دی، په کوم صورت کي چي یې د غسل وجوب فرمایلی دی هغه وجوب یې احتیاطًا فرمایلی دی. (**غنية المستملی صفحه ۴۱**)

## په خوب کي د یوې ښځي سره جماع کول، مگر نه انزالېدل :

**پوښتنه**: یو سړي په خوب کي د یوې ښځي سره جماع وکړه، خو انزال



شوی لا نه ؤ چي راویښ سو، نو کله چي یې بولي کولې، که گوري چي د بولو څخه مخکي یو څو نرم سپین څاڅکي د ذکر څخه راتوی شول، نو آیا پر دغه سړي غسل واجب دی او که نه؟ او بله پوښتنه داده چي یو سړي ته سرعت انزال ورپېښ دی، نو دی چي څه وخت په خوب یا په ویښه کي یو فکر وهي، نو د ده ذکر منتشر کیږي او یو څو نرم سپین څاڅکي څني راتویږي، نو آیا په دغو حالتو کي غسل واجب دی او که نه؟

**جواب**: ښکاره خبره ده چي په دغو حالاتو کي چي کومي سپیني اوبه راوتلي دي هغه مذي دي لکه ردالمحتار چي د مذي تعریف په دې ډول کړی دی: ماء رقیق ابیض یخرج عندالشهوة. (**ردالمحتار جلد ۱ صفحه ۱۵۳**)

یعني مذي نرمي او سپیني اوبه دي چي د شهوت په وخت کي راوزي نو له دې سببه پر دغه سړي باندي غسل واجب نه دی، خو که احتیاطًا یې وکړي ښه خبره ده، ځکه چي ردالمحتار وایي چي نه په مذي کي غسل شته او نه په ودي کي. (**ردالمحتار جلد ۱ صفحه ۱۴۳**).

## د مجبورۍ په وخت کي په لڅ بدن غسل کول :

**پوښتنه**: په بهشتي گوهر کي راغلي دي چي که چیري پر یو چا باندي غسل فرض وي خو دپردې ځای نه وي نو په داسي حالت کي سړي ته د سړي په مخکي او ښځي ته د ښځي په مخکي غسل کول واجب دي آیا دا خبره صحیح ده؟

**جواب**: هو دا خبره صحیح ده ځکه چي ردالمحتار دلومړي جلد په ۱۴۳ صفحه

کي هم همدا ډول ليکلي دي

(فتاوی دارالعلوم ديوبندجلد ۱ صفحه۱۰۴)

## آيا په څو واره جماع سره يو غسل واجبيږي؟

**پوښتنه**: آيا په څو واره جماع سره يو غسل واجبيږي او که نه يعني که يو سړی د شپې څو واره جماع وکړي او سهار صرف يو ځلي غسل وکړي آيا دا صحيح دی او که نه؟.

**جواب**: هو، ورورهٔ په څو واره جماع کولو سره صرف يو ځل غسل واجبيږي ځکه چي حضرت انس ﷺ د جناب رسول الله ﷺ فعل هم همدا ډول را اخيستی دی (مشکوة شريف صفحه۴۹)

## په غسل کي يو ځای په هېره سره پاته کېدل:

**پوښتنه**: که په هېره سره د يو سړی څخه يو ځای وچ پاته شو، يا د خولې يا پزې پرېولل پاته شوه، نو څه به کوي؟

**جواب**: ورورهٔ په دې صورت صرف د وچ پاته شوي ځای پرېولل کافي دي د سره څخه د غسل راګرځول نه غواړي، پاته شوه دا خبره چي دغه حکم د اندامونو د لوندوالي په وخت کي دی او که د وچوالي په وخت کي هم دی، بايد ووايم چي دغه حکم په دواړو وختوکي دی تر دې چي که د يو سړي په غسل کي د خولې پرېولل هير شوي وي، راغلی يو لمونځ يې وکړی وروسته يې ورپه ياد شوه چي ماخوپه غسل کي خوله نه ده پرېولې نو ځي به صرف خوله



به پرېولي او لمونځ به بيرته راګرځوي

(حلبي کبيرصفحه ۵۰ او همدارنګه منية المصلي صفحه۱۸)

## د جنابت څخه وروسته سمدلاسه حائضه کېدل:

**پوښتنه**: يو سړي د خپلي ښځي سره جماع وکړه، سهار که ګوري ښځي ته حيض ورپېښ شوی دی، نو آيا پر دغي ښځي باندي د جنابت غسل فرض دی او که نه؟

**جواب**: نه، ورورهٔ پر دغي ښځي باندي د جنابت غسل فرض نه دی، خو څه وخت چي د حيضه څخه پاکه شول نو غسل دي وکړي

(فتاوی دارالعلوم ديوبندجلد ۱ صفحه۱۰۲)

همدارنګه ردالمحتار ليکي:

وفرض الغسل (الى قوله) عند انقطاع حيض ونفاس الخ اى يجب عنده (درمختار) اى عند تحقق الانقطاع ونحوه والمراد بعده.

(ردالمحتار ابحاث الغسل جلد ۱ صفحه۱۵۳)

الاجماع على انه لايجب الوضوء على المحدث والغسل على الجنب والحائض والنفساء قبل وجوب الصلوة اوارادة مالايحل الابه كذا فى البحرالرائق. (عالمگيري موجبات الغسل جلد ۱ صفحه۱۵)

## د بولو کولو څخه مخکي سپيني اوبه راوتل :

**پوښتنه**: که چيري د بولو کولو په دوران کي يو څو سپين څاڅکي هم راووتل ، نو آيا په دې سره غسل واجبيږي او که نه؟

**جواب**: د بولو کولو په دوران کي د سپينو څاڅکو په راوتلو سره غسل نه واجبيږي، ځيني خلکوته دا ناجوړي ورپيښه وي چي د بولو کولو څخه مخکي يا د بولو کولو څخه وروسته د شيدو په ډول سپين څاڅکي ځني راتوييږي، دې ته "ودي" ويل کيږي، نو لکه مخته چي تاسي ته تېره شوه د "ودي" په راوتلو سره غسل نه واجبيږي (فتاوىٰ يوسفيه جلد۲ صفحه۶۱)

## د غسل او لمانځه کولو څخه وروسته مني راوتل :

**پوښتنه**: که د يوه سړي څخه د غسل کولو او لمانځه کولو څخه وروسته مني راووتل ، نو آيا دوهم ځل غسل کول واجب دی او که نه؟

**جواب**: ورورہ! که چيري د غسل کولو څخه وروسته بيده شوی وي، يا يې بولي کړي وي، يا شاؤخوا ګرځېدلی وي، نو په دې صورت کي دوهم ځل غسل نه دی واجب، او که يې د دغو شيانو څخه مخکي غسل کړی وي يعني د غسل کولو څخه مخکي نه شاؤخوا ګرځېدلی وي، او نه يې بولي کړي وي او نه بيده شوی وي، يعني د انزالېدلو څخه وروسته يې سمدستي غسل کړی وي او بيا يې لمونځ کړی وي، د لمانځه څخه وروسته څو څاڅکي مني ځيني راتوی شي، نو غسل به دوهم ځل بيا کوي، مګرد څاڅکود راتويدلو مخکي چي يې کوم لمونځ کړی دی هغه يې صحيح شو. (فتاوىٰ يوسفيه جلد۲ صفحه۶۲)



## د مني او مذي تر منځ فرق :

**پوښتنه** :د مني او مذي تر منځ څه فرق دی؟

**جواب**: مني خو د جماع کولو يا په خوب کي د احتلام کېدلو په سبب سره راوزي، او مذي چي کوم دي هغه خو د ښځي سره د بازی کولو، او يا د غلط فکر وهلو په وخت کي د اوبو په ډول د بولو د ځای څخه راوزي، بايد ووايم چي د مني په راوتلو کي غسل ضروري دی اود مذي په راوتلو کي غسل نشته.

(اسلامي فقه جلد ۱ صفحه۱۷۰)

## ايا د جنابت په حالت کي په غلاف سره قرآن شريف ته لاس وروړل روادي اوکه نه ؟

**جواب**: هو، وروره! په غلاف سره جنوب سړي لره د قرآن شريف را اخيستل روادي لکه فقهاء چي وايي: ولايجوز لهم اى للجنب والحائض والنفساء مس المصحف الابغلافه وكذا كل مافيه آية تامة من لوح اودرهم ونحو ذلک لقوله تعالى لايمسه الاالمطهرون. (غنية المستملي صفحه۵۶)

## په غسل کولو سره اودس هم کيږي :

**پوښتنه**: که چيري يو سړي غسل وکړی وروسته لمونځ کول غواړي، نو آيا دغه غسل کافي دی او که به اودس تازه کوي ؟

**جواب**: په غسل کولو سره اودس هم کيږي ځکه چي اصل شی خو غسل دی

خو داچي "الدين يسر" يعني د دين بناء پر اسانۍ ده، نو ځکه لوی خدای ﷻ د خلکو د اسانۍ لپاره اودس کافي بللی دی، که چيري د هر لمانځه لپاره غسل فرض وای، نو ډېره مشکله به وای، ستاسي د سوال په جواب کي بايد ووايم چي که يو سړی غسل وکړي نو اودس يې خودبخوده کيږي يعني د غسل وروسته اوداسه ته ضرورت نشته، تر څو چي يې اودسه شوی نه وي لکه د ترمذي دا حديث مبارک چي دی:

عن عايشه (رض) قالت، قال النبي ﷺ: **لايتوضوء بعدالغسل .**

**(جامع الترمذی باب الوضوء بعدالغسل جلد ۱ صفحه۳۰)**

## د جنابت په حالت کي خوړل او څښل روادي :

**پوښتنه**: د جنابت په حالت کي خوړل او څښل روادي او که نه؟

**جواب**: هو، وروره! د جنابت په حالت کي خوراک او څښاک روا دی، خو ښه خبره داده چي لومړی اودس تازه کړل شي، بیاوروسته خوراک او څښاک وکړل شي، او که صرف لاسونه پرېولي او خوراک او څښاک وکړي داهم روا دي، مګرخلاف اولی دي **(کفایت المفتی جلد ۲ صفحه۳۱۳)**

وفی الشامیه: قال فی الخلاصة اذا اراد الجنب ان یاکل فالمستحب له ان یغسل یدیه ویتمضمض اه تامل وذکر فی الحلیة عن ابی داؤد وغیره، انه علیه الصلوٰة والسلام اذا اراد ان یاکل وهو جنب غسل کفیه وفی روایة مسلم یتوضا وضوئه للصلوة . **(ردالمحتار باب الحیض جلد ۱ صفحه۲۹۳)**



## که سړی د ښځي سره جماع وکړي پر دواړو غسل واجبيږي :

**پوښتنه**: که سړی د ښځي سره جماع وکړي ، خو انزال نه شي نو آيا پر ښځي هم غسل واجب دی او که به يوازي سړی غسل کوي؟

**جواب**: هو، وروره! که چيري د سړي د ذکر سر چي حشفه ورته ويل کيږي د ښځي په شرمګاه کي داخل شي، نو په دې صورت کي پردواړو غسل واجبيږي دا فرق نه کوي که انزال شي او که نه، ځکه چي دا زموږ د علماوو مذهب دی چي پر فاعل او مفعول دواړو غسل واجبيږي که انزال شي او که نه، په هغه صورت کي چي د ذکر سر د مفعول په شرمګاه کي پټ شي لکه فتاوی عالمګيري چي وايي:

الايلاج فی احدالسبيلين اذا توارت الحشفة يوجب الغسل على الفاعل والمفعول به انزل اولم ينزل وهذا هوالمذهب لعلمائنا.

**(فتاوی عالمګيري جلد ۱ صفحه۱۵)**

## د جنوب سړي د لاس پاخه شوي خواره خوړل روادي او که نه ؟

**پوښتنه**: که يو جنوب سړی مخکي تر غسل کولو يو شی پوخ کړ، نوايا ددې خورک روادی او که نه؟

**جواب**: هغه څوک چي جنوب وي يعني د غسل حاجت ولري ، هغه ته ناپاک

ویل کېدلای شي، مګر دا داسي ناپاکي نه ده چي دده پر بدن دي د ناپاکۍ احکام جاري کړل شي، بلکي دا ناپاکي حکماً ده، یعني په لمانځه کولو، مسجد ته په داخلیدلو او د قرآن شریف په تلاوت کولو کي، خو ناپاک دی یعني دغه ذکر شوي شیان نه شي کولای، مګر په خوړلو او څښلو کي. همدارنګه دده په لاس پاخه شوي خواړه، دا هر څه پاک دي، خوړل یې بالکل روادي (**کفایت المفتی جلد ۲ صفحه۳۱۸**)

همدارنګه ردالمحتار لیکي: ولایکره طبخها ولا استعمال ماسته من عجین اوماءونحوهما. (**ردالمحتارباب الحیض جلد ۱ صفحه۲۹۲**)

## که یو کمزوره سپین ږیری سړی د غسل کولو په وجه پر خپلي ناجوړی بېرېدی څه به کوي:

**پوښتنه**: که چیري یو سپین ږیری کمزوره سړی د اوبو د استعمال څخه بېرېدی دا اندېښنه یې درلوده چي ناجوړي به مي سخته شي، نو آیا ددغه سړي لپاره روادي چي د غسل لپاره تیمم ووهي او که نه؟

**جواب**: که چیري یو سپین ږیري کمزوره سړي ته دا بېره ورپیدا وه چي که زه غسل وکړم ناجوړي به مي سخته شي، نو دده لپاره دا روادي چي د غسل پر ځای د غسل لپاره تیمم وکړي او اودس تازه کړي بیا وروسته لمونځ وکړي بیا دي دغارمي په وخت کي غسل وکړي. (**کفایت المفتی جلد۲ صفحه۳۱۹**).

اوهمدارنګه عالمګیري لیکي: ویجوز التیمم اذا خاف الجنب اذا اغتسل



بالماء ان یقتله البرد او یمرضه. (**فتاویٰ عالمګیري جلد ۱ صفحه۲۸**)

یعني که چیري جنب سړی پر دې بېرېدی چي که زه غسل وکړم، نو به د ډېره یخه مړ شم او یا به ناروغه شم، نو دده لپاره روادي چي تیمم ووهي

## د غسل خانې پر دېوالونو چي کوم څاځکی لوېدلی وي په هغو سره په غسل کي کوم نقصان نه راځي:

**پوښتنه**: د غسل کولو په وخت کي چي کوم څاځکی د غسل خانې پر دېوالونو باندي لوېدلی وي، په دې سره خو به په غسل کي کوم نقصان نه راځي؟

**جواب**: نه، وروره! غسل صحیح کیږي هیڅ خرابي نه راځي، وهم کول نه دی په کار. فقط. (**دارالعلوم دیوبندجلد ۱ صفحه۹۵**)

ځکه چي فقهاؤ لیکلي دي: "المشقة تجلب التیسیر"

بیایي لیکلي دي: واعلم ان اسباب التخفیف فی العبادات وغیرها سبعة.

په دوی کي یې شپږم سبب عُسر او عموم بلویٰ یاده کړی دی او د دې قسم په لاندي جزئیاتو کي چي کوم امر قابل درګذر دی په هغو کي یې د غُسل خانې دېوالونه هم لیکلي دي: وکذالحمام اذا اهریق فیه النجاسات فعرق حیطانها وکوتها وتقاطرمنه. (**الاشباه والنظائر صفحه۹۸**)

## د غسل په وخت کي د اوبو څاڅکي که چيري په منګي کي ولويږي، د هغو اوبو څه حکم دی؟

**پوښتنه**: وروسته تر طهارت د مقام نجس او وروسته د اودس څخه چي د غسل کولو په وخت کي کوم څاڅکی د غسل د منګي په اوبو کي ولويږي، نو آيا په دې سره اوبه مرداريږي او که نه؟

**جواب**: په دې کي احتياط په کار دی، په لږو ډېرو څاڅکو سره اوبه نه مرداريږي لکه ردالمحتار چي وايي: **وعفى دم سمك الخ وانتضاح غسالة لاتظهر مواقع قطرها فى الاناء عضو (درمختار) وفى الفتح وماترشش على الغاسل من غسالة الميت مما لايمكنه الامتناع عنه مادام فى علاجه لاينجسه لعموم البلوىٰ الخ.** **(ردالمحتارجلد ۱ صفحه ۳۰۰)**

## د سړي ذکر د کالو سره يو ځای د ښځي په شرمګاه کي داخليدل:

**پوښتنه**: که چيري د سړي حشفه يعني د ذکر سر د ښځي په مخصوص اندام کي داخل شي، په دې سره خو پر دواړو غسل فرض دی که مني راووزي او که نه، خو اوس پوښتنه داده که چيري دواړو کالي اغوستي وي او د سړي ذکر د ښځي په شرمګاه کي داخل شي، نو آيا په دې صورت کي هم پر دواړو غسل فرض دی او که نه؟



**جواب**: په دې صورت کي هم احتياط په دې کي دی چي سړی او ښځه دواړه غسل وکړي لکه ردالمحتار چي ليکي:

**اولج الحشفة او قدرها ملفوفة بخرقة ان وجد لذة الجماع وجب الغسل والالا، على الاصح، والاحوط الوجوب (درمختار) اى وجوب الغسل فى الوجهين.** **(ردالمحتار جلد ۱ صفحه۱۵۲ – ۱۵۳)**

## د جماع څخه سمدستي وروسته غسل کول ضروري نه دی:

**پوښتنه**: بعضي حضرات تر جماع وروسته فوراً د غسل کولو حکم ورکوي، خو په دې کي د ناجوړی احتمال شته، آيا د شريعت حکم همداسي دی لکه دغه خلک چي وايي؟

**جواب**: وروره! ښه کار خو دادی چي غسل ونه ځنډول شي (ځکه چي هېره او داسي نور شيان پکښي راځي)، مګر که څه وځنډول شي هيڅ ګناه نشته.

**(فتاوىٰ دارالعلوم ديوبندجلد ۱ صفحه۹۸)**

همدارنګه د مشکوة شريف دا مبارک حديث دی: **عن ابن عمر رضي الله عنه قال ذكر عمر بن الخطاب رضي الله عنه لرسول الله ﷺ انه تصيبه الجنابة من الليل فقال له رسول الله ﷺ توضأ واغسل ذكرك ثم نم. متفق عليه.**

**(مشکوة شريف صفحه۴۹)**

## د غسل کولو صحیح طریقه :

**پوښتنه** : د غسل صحیح طریقه څه شی ده؟ دوهم داچي آیا د غسل څخه مخکي د اوداسه کول ضروزي دي دریم داچي آیا د غسل کولو پر وخت پر زیري ناف باندي یو ټوکر راپیچل یعني لنګ وهل ضروري دی او که نه؟ څلورم داچي د غسل کولو پر وخت کومه دُعا ویل په کار ده آیا پنځمه کلمه ویل په کار ده او که صرف درود ویل هم کافي دي ؟.

**جواب** : د غسل طریقه داده چي مخکي دي لاسونه پرېولي او استنجاء دې ووهي وروسته که چیري پر بدن یو ځای نجاست موښتی وي هغه دي پرېولي، بیا دي اودس تازه کړي، بیا دي پر ټوله بدن باندي اوبه واچوي اوښه دې و موږي وروسته دي پر ټوله بدن درې واري اوبه وبهوي.

وروره! په غسل کي درې شیان فرض دي :

۱- د خولې پرېولل.

۲- د پزي پرېولل.

۳- د ټوله بدن پرېولل.

که چیري د بدن یو وریښته هم وچ پاته شو، غسل یې نه صحیح کیږي، او سرې نه پاکیږي، د پزي او غوږونو سوریان لندول هم لازم دي، که نه نو غسل یې نه صحیح کیږي، همدارنګه که انګشتری یې په ګوته وي او تنګه وي نو د هغې ښورول یعني لاندي ځای ته یې اوبه رسول هم لازم دي، ځیني وختونه تر نوکانو لاندي اوړه موښتي وي، د هغو را ایسته کول هم ضروري دي، مطلب دادی چي پر ټوله بدن اوبه بهول او کوم شیان چي وبدن ته د اوبو په رسولو کي



مانع دي د هغو ایسته کول ضروري دي، که نه نو غسل یې نه صحیح کیږي.

د ښځو د سر وریښتان که چیري کوڅی وي لکه پخوانیو ښځو چي به کولې، نو د کوڅیو خلاصول او ټوله وریښتان لندول ضروري نه دي، بلکي د وریښتانو تر بېخو پوري اوبه ور رسول کافي دي، مګر که چیري وریښتان ایله وه یعني کوڅی نه وې لکه نن سبا چي رواج لري، نوپه دې صورت کي بیا د ټولو وریښتانو لندول ضروري دي.

ستاسي د دوهم سوال په جواب کي باید ووایم چي تر غسل مخکي اودس تازه کول سنت دی، که چیري تر غسل مخکي اودس ونه کړل شي هم غسل صحیح کیږي.

دریم سوال داچي د غسل پر وخت پر زیري ناف باندي یو ټوکر راپیچل یعني لنګ وهل ضروري دی او که نه؟ باید ووایم چي نه،وروره! ضروري نه دی، مګر مستحب دی (دا په هغه وخت کي چي په چار دېوالي کي لمبیږي یعني څوک یې نه ویني او که په رود یا ویاله کي لمبېدی نو بیا خو د عورت پټول فرض دي).

ستاسي د څلورم سوال په جواب کي باید ووایم چي د غسل په وخت کي هیڅ دُعا، کلمه او درود شریف ویل ضروري نه دي، بلکي که چیري پر بدن هیڅ جامه نه وه، نو په دې وخت کي خو دُعا، کلمه او یا درود شریف ویل بیخي روانه دي، ځکه چي په لڅ بدن د چپ پاته کېدلو حکم دی، په دې وخت کې کلمه ویل د ناخبرو او ناواقفه ښځو ایجاد دی.

**(فتاوی یوسفیه جلد ۲ صفحه۴۹)**

## که چیري د غسل مخکي خوله او پزه پرېولل شي او بیا په غسل کي پرې نه ولل شي نو آیا ددغه سړي غسل صحیح کیږي او که نه؟

**پوښتنه**: داخو معلومه شوه چي په غسل کي درې شیان فرض دي:
١- د خولې پرېولل ٢- د پزي پرېولل ٣- د ټول بدن پرېولل او داهم معلومه شوه چي تر غسل کولو مخکي اودس تازه کول سنت دی، خو اوس سوال دادی که چیري یو سړی تر غسل مخکي اودس تازه کړي او په اوداسه کي خوله او پزه پرېولي، وروسته چې غسل کوي بیا خوله او پزه پرې نه ولي، دی فکر وکړي چي په اوداسه کي خو مي خوله او پزه پرېولې ده اوس دوهم ځل د خولې او پزي وپرېوللو ته څه ضرورت دی، بس دغه سړی د اوداسه تازه کولو څخه وروسته سمدستي پر بدن اوبه واچوي او دوهم ځل خوله او پزه پرې نه ولي، نو آیا ددغه سړي غسل صحیح دی او که نه؟

**جواب**: هو، ورورهٔ چي تر غسل مخکي اودس تازه کړي او په اوداسه کي خوله او پزه پرېولي، نو د اوداسه وروسته دوهم ځل د خولې او پزي و پرېولو ته ضرورت نشته، غسل یې صحیح دی.

**(فتاوی یوسفیه جلد ٢ صفحه٤٩)**

## د غسل په آخر کي د خولې او پزي ورپه یادېدل:

**پوښتنه**: که یو سړي د جنابت څخه د پاکېدلو لپاره غسل کاوه، خو چي



ټول بدن یې پرېولی وروسته ورپه یاد شوه چي ماخو خوله او پزه نه ده پرېولې، نو یې خوله او پزه پرېولل، اوس سوال دادی چي آیا ددغه سړي غسل صحیح شو او که به یو وار بیا پر ټول بدن اوبه اچوي؟

**جواب**: ددغه سړي غسل صحیح شو، دوهم ځل د ټول بدن پرېوللو ته ضرورت نشته، ځکه چي دالازمي نه دی چي لومړی به خوله او پزه پرېولي وروسته به بیا پر ټول بدن اوبه اچوي. **(فتاوی یوسفیه جلد ٢ صفحه ٥٠)**

## په هغه ځای کي غسل کول چي غسل خانه او مکان یعني د ضرورت ځای یو ځای جوړ شوی وي:

**پوښتنه**: نن سبا دایو فېشن جوړ شوی دی چي په کورونو کي غسل خانه او مکان یو ځای وي یعني هم مکان وي او هم اوبه پکښې کي وي چي سړی په لمبیږي، نو آیا په داسي ځای کي غسل کول روا دی او که نه؟

**جواب**: په کوم ځای کي چي غسل کیږي که هغه پاک وي او د ناپاک ځای څخه مردار څاڅکي دده بدن ته نه راغورځي، نو په دې صورت کي خو د غسل د نه صحیح کېدلو په هکله هیڅ سوال نه پیداکیږي او که دغه ځای مشکوک وي، نو لومړی باید اوبه پر وبهوي او پاک یې کړي، وروسته خپل غسل وکړي. **(فتاوی یوسفیه جلد ٢ صفحه٥٣)**

## د جنابت په حالت کي خوراک او څښاک کول او یا یو حیوان حلالول :

**پوښتنه** :د جنابت په حالت کي خوراک او څښاک کول او یا یو حیوان حلالول صحیح کیږي او که نه ؟

**جواب**: هو ،ورو ره! د جنابت په حالت کي خوراک او څښاک کول او نور داسي کارونه کول چي طهارت پکښي شرط نه وي ټول روادي، مګر تر خوراک او څښاک مخکي استنجاء وهل او اودس تازه کول ښه کار دی. په صحیحینو کي د حضرت عائشې (رض) څخه په دې ډول روایت شوي دی:

**کان النبی ﷺ اذا کان جنبا فاراد ان یأکل او ینام توضأ وضوءه للصلوة.**

**(مشکوة شریف صفحه ۴۹)**

یعني څه وخت چي به جناب ﷺ د جنابت په حالت کي ؤ، نو چي په دې حالت کي به یې د خوراک او یا بیدېدلو اراده وکړه، نو لومړی به یې اودس تازه کاوه بیا به یې خوراک کاوه او یا به بیدېدی .**(فتاوی یوسفیه جلد ۲ صفحه۵۵)**

## د جنابت په حالت کي روژه نیول :

**پوښتنه** : که چیري یو چاته د غسل کولو ضرورت ؤ یعني غسل پر واجب شوی ؤ خو سبایې د روژې نیت ؤ، نو آیا دغه سړی بې له غسل کولو یعني د جنابت په حالت کي پېشلمی کولای شي او که نه؟ او آیا د سبا روژه یې صحیح کیږي او که نه ؟



**جواب**: دغه سړی باید لاسونه او خوله پرېولي وروسته دي خپل پېشلمی وکړي او روژه دي ونیسي، غسل دي تر پېشلمي وروسته وکړي داڅه پروا نه لري، ځکه چي د جنابت په حالت کي خوراک او څښاک مکروه نه دی .

**(فتاوی یوسفیه جلد ۲ صفحه۵۵)**

## غسل نه کول د دفتري مشغولیت له عذره قابل قبول نه دی :

**پوښتنه**: که چیري پر یو سړي غسل واجب شوی وي، مګر غسل نه شي کولای ، ځکه چي د دفتر یې ناوخته کیږي، نو په داسي صورت کي آیا دغه سړی د کار په دوران کي تیمم وهلای شي او بیا لمونځ کولای شي او که نه؟ او که به تر هغو لمونځونه ځنډوي تر څو چي یې غسل نه وي کړی؟

**جواب**: په ښار کي د اوبو په موجود والي کي تیمم څه ډول کېدای شي؟ ځکه چي تیمم خو د اوبو د نېستي په وجه کېدلای شي. او دا عذر چي د دفتر مي ناوخته کیږي، او هلته په دفتر کي هم غسل نه شي کولای معقول او د اورېدلو قابل نه دی او بله خبره داده چي غسل دومره ځنډول چي لمونځ ځیني قضاء شي حرام او سخته ګناه ده. **(فتاوی یوسفیه جلد ۲ صفحه۵۶)**

## په غسل یا اوداسه کي شک ورلوېدل او سودایي کېدل.

**پوښتنه** :زه چي غسل یا اودس تازه کوم، اوبه پر خپلو اندامونو ښه وبهوم

خو چي غسل يا اودس تازه کړم، ډېر زيات شک راپيداشي چي داسي نه وي چي يو ورېښته دي وچ پاته شوی وي، نو اوس ددې يوه لاره راوښيه؟

**جواب**: محترمه وروره! خپل غسل او اودس د سنت مطابق کوه يعني درې واري پر خپلو اندامونو باندي اوبه بهوه، د دې وروسته هيڅ شک مه دراچوه چي يو ځای به مي وچ پاته شوی وي، دا شيطاني وسوسې دي چي تاته درلوېږي ددې هيڅ پروا مه کوه. **(فتاوی يوسفيه جلد ۲ صفحه۵۶)**

دا زما ابوالمختار محمدعبدالرؤف حقيار تجربه ده چي د داډول شيطاني وسوسو انجام ډېر تباه کوونکی وي، تر دې چي د ډېرو داسي خلکو څخه آخير لمونځونه او هر څه پاته شي او د شيطان په دام کي راګير شي.

## د جنابت په حالت کي د يو چا سره روغبړ کول او د سلام جواب ورکول:

**پوښتنه**: د جنابت په حالت کي د يو چا سره يو ځای کېدل، روغبړ ورسره کول، د سلام جواب ورکول، يا پخپله سلام وراچول خوراک او څښاک کول روادي او که نه؟.

**جواب**: هو، وروره! د جنابت په حالت کي دا ټوله شيان روادي.

**(فتاوی يوسفيه جلد ۲ صفحه۵۷)**

## د زيرناف د ورېښتانو اندازه:

**پوښتنه**: د زيرناف د ورېښتانو اندازه څومره ده يعني څومره اندازه بايد



د زيرناف ورېښتان وخريل شي، او بله پوښتنه داده چي څومره وخت وروسته بايد د زيرناف ورېښتان وخريل شي؟

**جواب**: د نامه څخه نيولې تر څنګونو پوري او د شرم ګاه د مخ او شاطرف دواړو حصو شاؤخوا څومره چي امکان ولري صفايي کول يې ضروري دي، هره هفته صفايي کول افضل او ښه کار دی، خو تر څلوېښتو ورځو پوري پرېښوول يې روادي، او تر څلوېښتو ورځو زياته وقفه منع ده، يعني تر څلوېښتو ورځو بايد بالکل ونه ځنډېږي، په څلوېښتو ورځو کي دننه دننه بايد صفايي ضرور وکړل شي. **(فتاوی يوسفيه جلد ۲ صفحه۵۸)**

## د سينې ورېښتان په چاړه سره خريل:

**پوښتنه**: آيا د سينې ورېښتان په چاړه سره صفاکول روادي او که نه؟.

**جواب**: هو، وروره! روادي. **(فتاوی يوسفيه جلد ۲ صفحه۵۸)**

## د جنابت په ورپېښېدو سره روژه نه خرابېږي:

**پوښتنه**: که چيري په روژه کي يو سړی بيده شو خو په خوب کي احتلام ورته پېښ شو، نو آيا روژې ته يې تاوان رسيږي او که نه؟ او بل سوال دادی چي که جنب سړی ويو شي ته لاس وروړي، هغه شي خوبه نه مرداريږي؟.

**جواب**: چاته چي احتلام ورپېښ شي، نو غسل پر واجب دی، خو روژې ته يې تاوان نه رسيږي يعني روژه يې نه ماتيږي، او د دوهم سوال په جواب کي بايد ووايم، چي جنب سړی چي لاسونه پرېولي، نو بيا که يو شي ته لاس

ورورې، هغه شی نه مرداريږي (فتاوی یوسفیه جلد ۲ صفحه۵۹)

## آیا د کوچني د پیداکېدو وروسته سمدلاسه غسل فرض دی؟

**پوښتنه**: موږ اورېدلي دي چې د ښځې کوچنی پیداشي باید سمدستي غسل وکړي، خکه چې که غسل ونه کړي، نو ددې خوراک او څښاک ټوله حرام دي او ددې په لاس پاخه شوي خواړه حرام دي؟

**جواب**: نه ،وروره! تاسي چې څه اورېدلي دي غلط مو اورېدلي دي، دا ټولي غلطي خبري دي، نه سمدلاسه پر ښځې غسل واجب دی او نه ددې د لاس پاخه شوي خواړه حرام دي، هغه ښځه چې په حیض او یا په نفاس کې وي، ددې د لاس خواړه بالکل روادي، او تر کومه وخته چې دا پاکه شوې نه وي، غسل پر واجب نه دی او داخبره بيخي غلطه ده چې د کوچني تر پیداکېدلو سمدلاسه وروسته غسل کول واجب دی، بلکې صحیح خبره داده څه وخت چې یې وینې بندي شي ، نو هغه وخت غسل پر واجب دی

(فتاوی یوسفیه جلد ۲ صفحه۶۰)

## د بولو سره د سپینو څاڅکو په راوتلو سره غسل واجب نه دی:

**پوښتنه**: د بولو په دوران کې که چیري څو سپین څاڅکي راووزي، نو



آیا په دې صورت کې غسل واجب دی او که نه؟

**جواب**: د بولو په دوران کې د سپینو څاڅکو په راوتلو سره غسل واجب نه دی، بلکې ځینې خلک دا ناجوړي لري چې تر بولو مخکې او یا تر بولو وروسته د شیدو په ډول سپیني اوبه ځیني راوزي چې دغو سپینو اوبو ته "ودي" ویل کیږي، ددغو سپینو اوبو په خارجېدلو سره غسل واجب نه دی

(فتاوی یوسفیه جلد ۲ صفحه۶۱)

# پاکي اوناپاکي اوبه

**پوښتنه**: ایااوبوته د یو شي په لوېدلوسره اوبه ناپاکي بلل کیږي که نه؟

**جواب**: الماء خلقه الله تعالى طاهرا وطهورا، اى مطهرا یعني الله ﷻ اوبه "طاهر" یعني پاکي او "طهور" یعني پاکوونکي پیداکړي دي لکنه يتنجس إذا وقعت فيه النجاسة قليلا كان أو كثيرا، مګر کله چي په دې کي لږ یاډېر نجاست ولویږي، نو دغه اوبه ناپاکي بلل کیږي، ځکه چي جناب رسول الله ﷺ داوبو د ساتلو حکم کړی دی، او داسي يې فرمایلي دي: لايبولن أحدكم فى الماء الدائم الذى لايجرى ثم يغتسل فيه.

(أخرجه البخارى عن أبى هريرة ؓ فى كتاب الوضوء)

وقال النبى ﷺ: إذا استيقظ أحدكم من نومه فلايغمسن يده فى الاناء حتى يغسلها ثلاثا فإنه لايدرى أين باتت يده.

(أخرجه المسلم عن أبى هريرة ؓ باب كراهية غمس المتوضى الخ)

**پوښتنه**: چي کله په حوض (تالاب) کي نجاست ولویږي، نو آیاد دغه حوض په اوبو اودس تازه کول د فقهاؤ په نزد روا دی او که نه؟

**جواب**: وروره! که چیري په کوچني حوض کي نجاست ولویږي، ټول حوض



مرداریږي، اودس او غسل نه دی په روا، مګر که په غټ حوض کي نجاست ولویږي نو په هغه بل طرف چي نجاست نه دی پکښي لوېدلی اودس او غسل روا دی. دا چي غټ حوض کوم یو دی باید ووایم چي غټ حوض یا تالاب هغه دی چي کله ددې حوض د یوې څوکي اوبه وښوروې یعني حرکت ورکړې د حوض د هغې بلي څوکي اوبه حرکت نه کوي یعني نه ښوري، نو چي کله د دا ډول حوض په یوه څوکه کي نجاست ولویږي، ددغه حوض دبل طرف په اوبو غسل او اودس روا دی. دا ځکه چي فقهاء وایي چي په دې صورت کي ددغه طرف نجاست په ظاهره وهغه بل طرف ته نه شي رسېدای. دا په دې وجه چي هغه پاک طرف ددغه طرف څخه چي نجاست پکښي لوېدلی دی لیري دی (او که چیري هغه بل طرف ته هم د نجاست اثر وروررسېدی نو بیا خو هغه طرف هم بې له څه شکه مردار دی. ځکه چي اصل خبره د نجاست د اثر په وررسېدوکي ده).

التسهیل الضروري لمسائل القدوري د غټ حوض په هکله داسي لیکي:

الغدير العظيم الذى لايتحرك احد طرفيه بتحريك الطرف الأخر إذا وقعت فى أحد جانبيه نجاسة جاز الوضوء فيه من الجانب الاخر، لان الظاهر أن النجاسة لاتصل إلى الطرف الاخر، لبُعده من الطرف الذى وقعت فيه النجاسة. (التسهيل الضروري جلد ۱ صفحه ۲۱)

**ترجمه**: غټ حوض هغه حوض ته ویل کیږي چي دیوه طرف په ښورولو سره د حوض هغه بل طرف حرکت نه کوي، څه وخت چي د حوض ددغو دوو طرفو څخه په یوه طرف کي نجاست ولویږي، د حوض په هغه بل طرف اودس

روا دی . څکه چي په ظاهره وهغه بل طرف ته نجاست نه رسيږي ، دا په دې وُجه چي هغه بل طرف د دغه طرف څخه چي نجاست پکښي لوېدلی دی ليري دی.

**پوښتنه**: په جاري اوبو کي چي نجاست ولوېږي د دې څه حکم دی؟

**جواب**: په داسي اوبو سره غسل او اودس دواړه روادي تر څو پوري چي په اوبو کي د نجاست اثر نه وي معلوم شوی، څکه چي د اوبو د بهېدلو په صورت کي نجاست قرار نه نيسي يعني نه شي دربدای، بلکي اوبه يې له ځانه سره وړي لکه التسهيل الضروري چي وايي: جاز الوضوء والاغتسال منه إذا لم يُر لها أثر فى الماء لانها لاتستقر مع جريان الماء.

**(التسهيل الضروري جلد ۱ صفحه ۲۱)**

## د غټ حوض په هکله مکمل تحقيق:

دا چي غټ حوض کوم دی اندازه يې څومره ده ، په دې هکله صاحب د هدايې دا رازوايي : والغدير العظيم الذى لايتحرک احد طرفيه بتحريک الطرف الآخر . **(هدايه صلوٰة صفحه ۴۱)**

**ترجمه** : غټ حوض هغه حوض ته ويل کيږي چي د يوه طرف په ښورولو سره يې بل طرف حرکت نه کوي .

اوس دلته سوال پيداکيږي چي څه ډول تحريك معتبر دی ، بايد ووايم چي په دې کښي اختلاف دی دغه اختلاف صاحب د هدايې څه دا ډول



بيانوي : عن ابى حنيفة انه يعتبر التحريک بالاغتسال وهوقول ابى يوسف وعنه التحريک باليد وعن محمدبالتوضى . **(هدايه صلوٰة صفحه ۴۱)**

يعني حضرت امام ابو يوسف رحمه الله د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله څخه روايت کړی دی چي د حوض په تحريك کښي اعتبار غُسل لره دی يعني چي په اوسط حرکت سره د حوض په يوه اړخ کښي که څوك غُسل کوي بل اړخ د حوض نه ښوري همدغه غټ حوض دی او د امام ابوحنيفه رحمه الله څخه د امام ابي يوسف رحمه الله بل روايت دادی چي د لاس حرکت ته اعتبار دی : او د امام محمد رحمه الله څخه بيا روايت دی چي د اودس کوونکي د حرکت اعتبار دی .

د لومړی قول وجه صاحب د هدايې دا راز بيانوي : ان الحاجة اليه فى الخياض اشد منها الى التوضى . **(هدايه صلوٰة صفحه ۴۱)**

يعني په حوض کښي د اوداسه په نسبت د غُسل زيات ضرورت دی ﴿ نو څکه د غُسل تحريك معتبر دی ﴾ .

خو علماوو د اساني لپاره دې لره اندازه ټاکلي ده چي اندازه يې هم د مختلفو اقوالو څخه ډکه ده مثلاً : علامه عيني رحمه الله د محمدبن سلمه رحمه الله قول اته په اته کښي را اخيستی دی او همدغه علامه عيني رحمه الله دابو مطيع بلخي رحمه الله قول لس په لس کښي بيان کړی دی او صاحب د تاتارخانيې بيا د اکثرومشايخ بلخ قول د پنځلس په پنځلس کښي را اخيستی دی ، مگر صاحب د هدايې په صفحه نمبر ۴۲ کښي د لس په لس په ذراع کرباس سره اندازه ښوولې ده او پر همدې قول يې فتوىٰ کړې ده ؛ داد ابوسليمان جوزجاني رحمه الله اندازه ده ، کوم چي دوی د امام محمد رحمه الله ديو حکايت څخه

را اخيستی ده ، فقيه ابوالليث رحمه الله ، عبدالله بن المبارك رحمه الله او عامومشائخو د بلخ هم دا قول غوره ګڼلی دی ، لکه چې په فتاوئ قاضي خان ، نوازل ، تاتارخانيه او داسې نورو کښې يې يادونه شوې ده .

داچې حوض بايد څومره ژور وي بايد ووايم چې په ظاهرالروايت کښې خو د ژوروالي کومه مقرره اندازه نشته ، مګر مولانا محمد حنيف ګنګوهي ديوبندي رحمه الله دهدايې په شرح کښې تر دغه بحث لاندې دشيخ زاهدي رحمه الله په حواله سره څه دا راز وايي : البته شيخ زاهدي په مجتبی کښې ددې په بابت څوا قوال ذکر کړي دي :

۱- شيخ بزدوي وايي ترڅوپورې چې دحوض اوبه تر بجلکو پورې نه وي نو دغه معتبرنه دی .

۲- بايد تر يوې لويشتې کمي نه وي .

۳- بايد تر يو ګز کمي نه وي .

په تاتارخانيه کښې بيادکتاب المعلی څخه رانقل شوي دي چې د حوض ژور والی د دوو ګزو په انــدازه په کار دی ، مګر صاحب د هدايې د حوض د ژور والي په هکله دا راز وايي :

والمعتبر فی العمق ان يکون بحال لاينحسر باالاغتراف هوالصحيح.

(هدايه صلوٰة صفحه ۴۲)

يعني د ژور والي په هکله معتبره داده چې اوبه به دومره وي چې په لپه ډکولو سره مځکه نه ښکاره کيږي او دا صحيح ده ، مولانا محمد حنيف ګنګوهي ديوبندي رحمه الله د هدايې په شرح کې تردغه بحث لاندې دا راز



وايي : په غنيه کې راغلي دي چې د امام صاحب رحمه الله څخه د امام ابو يوسف رحمه الله روايت هم دا دی اوپه بنايه کښې راغلي دي چې فقيه ابوجعفر هندواني هم دغه غوره ګڼلی دی ، په تاتار خانيه کښې د خلاصې څخه ددې تصحيح نقل ده او په ظهيريه کښې راغلي دي چې پر دې باندې فتوىٰ ده .

مفتي اعظم محمدشفيع صاحب رحمه الله هم د اوبو د مساحت مسئله را اخيستي ده او د اوزان شرعيه په ﴿۳۴﴾ صفحه کښې وايي چې معتمد قول د فقهاوو په نزد د اوبو د مساحت په اړوند د لس په لس په مسئله کښې ذراع کرباس معتبر دی او د دغه يوه کرباس ګز صحيح او راجح اندازه ﴿۲۴﴾ ګوتې يا ﴿۶﴾ موټه ده او دغه اندازه د نن ورځې د انګرېزي ګز په حساب سره نيم ګز يا ﴿۱۸﴾ انچه ده ؛ نو دا چې د حوض لس ګزه موجودېدل شرط دي دا ﴿۱۸﴾ انچه چې په لس کښې ضرب شي ، نو ﴿۱۸۰﴾ انچه يا پنځه ګزه يا ﴿۱۵﴾ فوټه اويا څلور مېتره او اووه پنځوس سانتي او دوې ملي کيږي .

## ددې بحث خلاصه :

هغه حوض د روانو اوبو په حُکم کې راځي چې لس په لس کې شرعي ګزه وي يا په بل عبارت پنځه په پنځه کې انګرېزي ګزه وي چې په بل عبارت سره څلورمېتره او اووه پنځوس سانتي او دوې ملي کيږي .

د لس په لس کې مطلب دادی چې لس شرعي ګزه به يې اوږدوالی او لس شرعي ګزه به يې بر وي يا په بل عبارت پنځه انګرېزي ګزه به يې اوږدوالی او پنځه انګرېزي ګزه به يې بر وي او ژور والی يې بايد د صاحب د هدايې په قول دومره وي چې په لپه ډکولو سره مځکه نه ښکاره کيږي صاحب د هدايې همدا قول صحيح او معتبر بللی دی .

## کوم حیوان چي اوبو ته ولویږي او هلته مړ شي اوبه په مرداریږي؟

**پوښتنه**: کوم حیوان چي اوبو ته ولویږي او هلته مړ شي اوبه په مرداریږي؟

**جواب**: د هغه حیوان په مرګ سره چي بهېدونکې وینه ولري اوبه ناپاکه بلل کیږي. دا فرق نه کوي که دغه حیوان غټ وي او که کوچنی. مګر د هغه حیوان په مرګ سره چي په اوبو کي ژوند کولای شي لکه ماهی، چونګښه او داسي نور... اوبه نه مرداریږي او نه د هغه حیوان په مرګ سره اوبه مرداریږي چي بهېدونکې وینه نه لري (لکه غوماشه، مچ، لړم او داسي نور...)

**(تسهیل الضروري جلد ۱ صفحه۲۲)**

## په حوض کي د جنابت غسل کول:

**پوښتنه**: په حوض کي دننه د جنابت غسل، یا د حیض او نفاس غسل صحیح دی او که نه؟

**جواب**: هو. وروره! د لس په لس په حوض کي دغه ټوله شیان روادي

**(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد ۱ صفحه ۱۰۶)**



## د جنابت د غسل په وخت کي داوبو یو څو څاڅکي د لوښي په منځ کي لوېدل:

**پوښتنه**: که چیري یو سړی د جنابت غسل کوي او یا ښځه د حیض او د نفاس غسل کوي او په دې وخت کي یو څو څاڅکي د لوښي په منځ کي ولویږي آیا په دغه صورت کي د دغو اوبو څه حکم دی؟

**جواب**: وروره! دا هیڅ پرواه نه لري، اوبه پاکي دي لکه عالمګیري چي وایي: جنب اغتسل فانتضح من غسله شيء في انائه لم يفسد عليه الماء.

**(فتاوی عالمګیري مصری جلد۱ صفحه ۲۲)**

ځکه چي لږي مستعملي اوبه ډېري غیري مستعملي اوبه نه شي مستعملي ګرځولای. **(ردالمحتار باب المیاه جلد ۱ صفحه ۱۸۵ همدارنګه دارالعلوم دیوبند جلد ۱ صفحه۱۰۶)**

## که چیري په اوبو کي ظاهري نجاست نه وي او اوبه لس په لس کي هم نه وي نو آیا دغه اوبه پاکي بلل کیږي او که نه

**پوښتنه**: که چیري په اوبو کي ظاهري نجاست نه وي او اوبه لس په لس کي هم نه وي او ژور والی یې هم زیات نه وي لکه په ځنګله کي چي کندي وي نو آیا دغه اوبه پاکي بلل کیږي او که نه؟

**جواب**: هو، وروره! دغه اوبه پاکي دي لکه درالمختارچي وايي: لالو تغير بطول مکث فلو علم نتنه بنجاسة لم يجز ولو شک فالاصل الطهارة.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار جلد ۱ صفحه ۱۷۱)

## د اوبو د خوند، رنګ یا بوی د بدلېدلو په صورت کي داوبو پاکي اوناپاکي:

**پوښتنه**: که چيري د اوبو بوی، رنګ يا خوند بدل شو، نو آيا دغه اوبه پاکي دي او که نه؟

**جواب**: په نجاست سره که چيري د اوبو خوند يا بوی يا رنګ يا په دوی کي دوه شيان يا دری سره بې بدل شي، نو دغه اوبه ناپاکي بلل کيږي، ځکه چي عالمګيري وايي چي غټ حوض د جاري اوبو په حکم کي دی. دا نه مرداريږي، مګر په تغير سره لکه چي وايي: ان الغدير العظيم کالجاری لاينتجس الابالتغير من غير فصل هکذا فى فتح القدير.

(عالمګيري جلد ۱ صفحه۱۶)

يا لکه درمختار چي وايي چي ډيري اوبه د درو صفتونو څخه د يوه صفت په بدلېدلو سره مرداريږي لکه چي وايي: وبتغير احد او صافه من لون او طعم او ريح ينجس الکثير و اما القليل ينجس وان لم يتغير.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار جلد ۱ صفحه۱۷)



## په کوم حوض کي چي ګنده او به يو ځای کيږي ايا هغه پاکي دي او که نه؟

**پوښتنه**: يو ډنډته باراني او نهري اوبه راځي او په باران کي د ټوله ښار ګنده اوبه هم راځي، نو آيا په دغو اوبو سره کالي پريولل او اودس په تازه کول روادي او که نه؟

**جواب**: هو، وروره! دغه اوبه پاکي دي اودس په تازه کول او کالي په پرېولل صحيح دی فقط.

لکه عالمګيري چي وايي چي غټ حوض د جاري اوبو په حکم کي دی. دا نه مرداريږي مګر په تغير سره. عربي متن يې په دې ډول دی

ان الغدير العظيم کالجاری لاينتجس الا بالتغير.

(فتاوىٰ عالمګيري جلد ۱ صفحه۱۶)

## په تالاب يا حوض کي د سپي لوېدل او مړ کېدل:

**پوښتنه**: په يو کوچه تالاب کي چي ژور والی يې دوه يا دري فوټه کېدی، يو سپی ولوېدی او هلته مړ شو. څو ساعته په هغه تالاب کي پروت ؤ، وروسته راوايستل شو، مګر وېرسېدی، نو اوس خلک د دغه تالاب اوبه نه استعمالوي آيا دغه اوبه پاکي دي او که نه؟

**جواب**: وروره! دغه تالاب چي تاسي يې ژور والی دري يا څلور فوټه يادکړی دی که چيري لس په لس کي وي يعني لس شرعي ګزه يې اوږد والی او

لس شرعي ګزه یې بر وي، یا په بل عبارت پنځه انګریزی ګزه یې اوږد والی او پنځه انګریزی ګزه یې بر وي، نو په دغه کي د سپي د مړکېدلو او پړسېدلو په وجه به هغه وخت دغه حوض یا تالاب مرداریږي چي په دغه اوبو کي یې بوی راشي او یایې رنګ او خوند بدل شي، یعني دغه تالاب تر هغه وخته پوري نه مرداریږي چي ددغه مړشوي او پړسېدلي سپي په اوبو کي یا خوند نه وي راغلی او یا ددغو اوبو رنګ او بوی نه وي بدل شوی لکه درمختار چي وایي

وکذا یجوز براکد کثیر کذلک ای وقع فیه نجس لم یر اثر بحر (الی قوله) وفی النهروانت خبیر بان اعتبار العشراضبط لاسیما فی حق من لارأی له. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار جلد ۱ صفحه ۱۷۶)

## د کلي په لوی ډنډ کي غلیظي اوبه راتلل او هلته جمع کېدل:

**پوښتنه**: زموږ کلي ته نژدې یو ډنډ موجود دی، د باران پر وخت د ټوله کلي غلیظي اوبه راځي او په دغه ډنډ کي سره یو ځای کیږي. خو دومره اوبه نه وي چي د ډنډ څخه دي راووزي او شاوخوا دي وبهیږي. مګر هو دغه ډنډ ډیرغټ دی. نو آیا ددغه ډنډ اوبه د جاري اوبو په حکم کي دي یعني په دغواوبو باندي اودس او غسل روادی او که نه؟

**جواب**: هو ·وروره' دغه اوبه پاکي دي هم اودس په روا دی او هم غسل، ترڅو چي دغو اوبو د نجاست رنګ. بوی او یا خوند نه وي اخیستی لکه



درمختار چي وایي: وکذا یجوز براکد کثیر کذلک ای وقع فیه نجس لم یراثره. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار جلد ۱ صفحه ۱۷۶)

## د هغه حوض د اوبوحکم چي د ګرمۍ په موسم کي وچ شي او خلک مرداري پکښي کوي او د ژمي په وخت کي بیرته د اوبو څخه ډک شي:

**پوښتنه**: زموږ په سیمه کي یو ډېر غټ تالاب دی چي د باران په موسم کي ډکیږي او د ګرمۍ په موسم کي بیرته وچ شي. نو خلک پکښي بولي او مرداري کوي او هم د حیوانانو پچي پکښي لویږي، خوڅه وخت چي باران شي، نو د نورو ویالو څخه هم اوبه ورته راشي او تالاب ډک شي. خو په تالاب یعني حوض کي د نجاست هیڅ اثر نه معلومیږي اونه یې د اوبو یو صفت بدلیږي، نو آیا ددغه حوض اوبه پاکي دي او که نه. غسل او اودس په روا دی او که نه؟

**جواب**: په درمختار کي راغلي دي:

وکذا یجوز براکد کثیر کذلک ای وقع فیه نجس لم یرأثره ولو فی موضع وقوع المرئیة الخ.

او په ردالمحتار کي راغلي دي:

قوله وقع فیه نجس شمل مالو کان النجس غالبا ولذا قال فی الخلاصة

الماء النجس اذا دخل الحوض الكبير لاينجس الحوض وان كان الماء النجس غالبًا على ماء الحوض الخ.(ردالمحتار باب المياه جلد ١ صفحه١٧٦)

او پر همدغه ځای علامه شامي رحمه الله په آخره کي دغه حديث رانقل کړی دی: ويشهدله ما فى سنن ابن ماجه عن جابر رضي الله عنه انتهيت الى غدير فاذا فيه حمارميت فكففنا عنه حتى انتهىٰ الينا رسول الله ﷺ فقال ان الماء لاينجسه شيء فاستقينا وارويناو حملنا الخ. (فتاوىٰ شامي جلد ١ صفحه ١٧٦)

ددغو دلائلو څخه وروسته فتاوىٰ دارالعلوم ديوبند د لومړي جلد په ١١١ صفحه کي داسي وايي:

د دغو روايتونو څخه معلومه شوه چي د ذکر شوي تالاب اوبه پاکي ګڼل په کار دي. او بايد ووايم چي اودس او غسل په دغه حوض باندي صحيح دی. او د اوبو په هکله لکه څنګه چي جناب رسول الله ﷺ اسانتياوي فرمايلي دي او فقهاؤ په دي کي د عموم بلوىٰ لحاظ کړی دی او پراختيا يې فرمايلي ده. نو همدا ډول عمل په کار دی، پر خلکو باندي تنګي راوستل نه ده په کار، مګر دا بيا ستاسي خپل اختيار دی که احتياط کوی، نو ددغه حوض څخه کار مه اخلئ، خو عمومًا د مردارو اوبو حکم به نه پر کوئ، که نه نو ټولو حوضونو ته به د ډکېدو څخه وروسته مردار ويل کيږي، او داخو ښکاره خبره ده چي په دي کي خومره تکليفونه، زحمتونه اوحرج شته، حال دادی چي الله جل جلاله په سورة حج کي فرمايلي دی: ليس عليكم فى الدين من حرج . فقط.

(فتاوىٰ دارالعلوم ديوبند جلد ١ صفحه١١٢)



## د مسجد تالاب ته شرمښکی لوېدل :

**پوښتنه**: زموږ د مسجد وتالاب ته شرموښکی لوېدلي وه او هلته مړه شوې وه، په دې هکله چاته معلومات نه ؤ خلکو اودسونه او غسلونه په کول، خو ددې درک هغه وخت ولګېدی، چي د ټانکی يا تالاب په اوبو کي بد بويي پيدا شول، نو آيا دغه اوبه پاکي دي او که نه او بله خبره داده چي هغو کسانو چي په دغو اوبو يې لمونځونه کړي دي، بيرته به لمونځ راګرځوي او که نه؟

**جواب**: که چيري شرموښکی کوچنی وي، نو ددې په لوېدلو او هلته په مړه کېدلو سره اوبه نه مرداريږي، ځکه چي په هغې کي بهېدونکې وينه نشته، لکه نن سبا چي عمومًا په کورونو کي اوسيږي، نو ددغه ډول کوچنی شرموښکی په لوېدلو او مړه کېدلو سره اوبه نه مرداريږي، يعني د اوداسه او لمانځه و راګرځولو ته ضرورت نشته . فقط.

لکه حلبی کبير چي وايي: وموت ماليس لـه دم سائل لاينجس الماء ولاغير اذا وقع فيه فمات او مات ثم وقع فيه.

(غنية المستملي صفحه١٦٢)

## پر عموم بلوىٰ باندي فتوىٰ او د هغي اندازه :

**پوښتنه**: د عموم بلوىٰ په وجه سره الماء طهور لاينجسه شيء باندي فتوىٰ ورکول روا دي او که نه، او د عموم بلوىٰ اندازه خومره ده ؟

**جواب**: عموم بلوىٰ و ابتلاء عام ته ويل کيږي، چي ددې څخه ځان ساتل

سخت او مشکل دی او په هغه کي عامو خلکو ته تنګي او حرج واقع کيږي او دا هم يو فقهي قاعده ده چي: اليقين لايزول بالشک.

**(الاشباه والنظائر مع شرح حموي صفحه ۷۵)**

يعني په شک سره يقين له منځه نه ځي، نو په مجرد احتمال او وهم سره او همدارنګه د شک په صورت کي د اوبو د مرداري حکم نه دی ورکول په کار. او د عموم بلوی په وجه سره د مشکوٰة شريف د باب المياه د **۵۱** صفحي دا حديث چي الماء طهور لاينجسه شيئا معمول به جوړول روا دی فقط.

**(فتاویٰ دارالعلوم ديوبند جلد۱ صفحه۱۱۳)**

## د هغو اوبو حکم چي چرس يا هيروين په کښ شوي وي:

**پوښتنه**: آيا په هغو اوبو کي چي بنګي، چرس، تمباکو، هيروين کښ شوي وي په هغو اوبو اودس او غسل روا دی او که نه؟

**جواب**: دغه شيان مردار نه دي، بلکي د دوی څکول حرام دي، او د تداوی په سبب لږ استعمال يې پرواه نه لري، دومره نه وي چي دی د مستی واندازې ته ورسوی لکه فتاویٰ شامي چي وايي:

ولم يقل احد بنجاسة البنج ونحوه. الخ

**(فتاویٰ شامي جلد۳ صفحه ۱۶۶)**



## په اوبو کي پاک شی ګډېدل او پر اوبو غلبه کېدل:

**پوښتنه**: که چيري په مطلقو يعني خالصو اوبو کي يو پاک شی ګډ شي او پر اوبو باندي غالبه شي يعني رنګ او خوند يې بدل شي، نو آيا په دغو اوبو سره اودس روا دی او که نه؟

**جواب**: په اوبو کي که چيري يو پاک شی ګډ شي او اوبه مغلوبه شي او د اوبو نوم له منځه ولاړ شي، يارنګ او خوند يې پاته نه شي، نو په دغو اوبو سره اودس روا نه دی.

**ددې خبري تفصيل د ردالمحتار د لومړي جلد په ۱۶۷ او۱۶۸ صفحو کي اوهمدارنګه د فتاویٰ دارالعلوم ديوبند د لومړي جلد په ۱۱۴ صفحه کي راغلی دی.**

## د هغه مردار تالاب حکم چي د باران په اوبو سره ډک کړل شي:

**پوښتنه**: په يوه تالاب کي ناپاکي اوبه موجودي وي، خو څه وخت چي باران وشو او پاکي اوبه د لوړه ځايه څخه راغلې او ناپاکي اوبه چي د تالاب په کومه برخه کي موجودي وي هغه يې د هغې برخي څخه راوايستلې او د تالاب بلي څنډي ته يې بوتلې، بيا په کثرت سره تالاب د اوبو څخه ډک شو، مګر د اوبو يوه برخه لاهم د تالاب څخه دباندي ونه وتله. نو آيا دغه اوبه پاکي دي او که نه؟

**جواب**: هو، وروره! دغه اوبه پاکي دي.

**(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد ۱ صفحه۱۱۵)**

## دهغه غټ حوض حکم چي ناپاکي اوبه پکښي واچول شي:

**پوښتنه**: یو حوض چي لس په لس کي ؤ یعني لس شرعي ګزه یې اوږدوالی او لس شرعي ګزه یې بر ؤ، یا په بل عبارت پنځه انګریزی ګزه یې اوږدوالی او پنځه انګریزی ګزه یې بر ؤ، او د یوه لاس په اندازه یا ددې څخه زیاتي اوبه پکښي موجودي وې، نو که چیري په دغه حالت کي د یو ناپاک ځاه څخه اوبه راوایستل شي او دغه حوض په ډک کړل شي، نو آیا دغه اوبه پاکي دي او که نه؟ او بله پوښتنه داده چي که په دغه قیاس سره چي لس په لس کي حوض د دریاب په حکم کي دی، چي د نجس شي په ورلوېدلو سره نه مرداریږي، عمل وکړل شي، نو څه پېښیږي؟

**جواب**: هو، وروره! دغه اوبه پاکي دي.

**(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد ۱ صفحه۱۱۸)**

او همدارنګه شرح وقایه وایي:

ولابماء راکد وقع فیه نجس الا اذا کان عشرة اذرع فی عشرة اذرع ولاینحسر ارضه بالغرف فحکمه حکم الماء الجاری.

**(شرح وقایه جلد ۱ صفحه۸۶)**



## یوه کوچني په یوه کوچني حوض کي بولي وکړې:

**پوښتنه**: که چیري یو حوض د لس په لس څخه کم وي مګر ژور والی یې ډېر وي خلور یا پنځه لویشتي وي، نو که چیري په دغه حوض کي یوه کوچني هلک بولي وکړې، یا یو بل نجاست ورلوېږي، نو آیا دغه حوض د احنافو د مذهب مطابق پاک دی او که نه؟

**جواب**: وروره! لومړی خوبايد دا خبره زده کړئ چي د کوچني هلک او لوی سړي نجاست فرق نه لري دواړه یوډول مردار دي، بله خبره داده چي د عشر فی عشر د روایت موافق کوم چي مختار د اصحاب متونو دی، مرجع عند اهل الترجیح کصاحب الهدایه وقاضی خان وغیره دی، نوموړی حوض چي د لس په لس څخه کم دی، د نجاست په ورلوېدلو سره مرداریږي، او ژور والي لره یې اعتبار نشته یعني صرف ژور والي ته یې اعتبار نشته لکه درمختار چي وایي: اذالمعتمد عدم اعتبار العمق.

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار جلد ۱ صفحه ۱۸۲)**

همدارنګه په فتاوی دارالعلوم دیوبند کي دا ډول سوال راغلی دی چي که یو حوض لس په لس کي نه وي مثلاً اته شرعي ګزه یې اوږد والی او اته شرعي ګزه یې بر وي، مګر ژور والی یې دومره ډېر وي چي که د دغه حوض اوبه اندازه کړل شي، نو د هغه حوض سره برابرېږي چي لس په لس کي وي نو آیا ددې حکم د ډېرو اوبو دی او که نه؟

ددې سوال په جواب کي نوموړې فتاوی زیاتوي دمتاخرینو فقهاوو د فتوی

موافق د حوض اوږدوالی او پر لس شرعي ګزه کېدل ضروري دي، ډېر ژوروالی یې کومه ګټه نه رسوي، یعني ژوروالی یې که ډېر وي او که لږ هغه لره اعتبار نشته، اوږدوالی او بر به یې تر لس شرعي ګزه چې پنځه انګریزي ګزه کیږي کم نه وي. **(فتاویٰ دارالعلوم دیوبندجلد ۱ صفحه۱۱۹)**

## په کوچني حوض کې د کالو پرېولل:

**پوښتنه**: د کوم حوض اوږدوالی او بر چې عموماً درې ګزه وي او ژوروالی یې تقریباً دوه ګزه وي. ډېر ځله تردې لاهم کوچني حوضونه وي، په ځیني ځایونو کې بیا دوه حوضونه نږدې نږدې جوړ شوي وي، په یوه کې جامې پرېولي او په بل کې د صفایي په غرض سره اچول کیږي او نشتېږل کیږي. مګر داچې اکثره جامې مرداري وي او د هغې ځاځکي ولاړي شي په دوهم حوض کې ولوېږي، ددې احتمال دی چې ټولي اوبه دي شرعاً مرداري شي، نو آیا په دغه حوض سره جامې پاکیږي او که نه؟

**جواب**: د احنافو د مذهب موافق هغه حوض چې د لس په لس څخه کم وي په نجاست ورلوېدلو سره مرداریږي، نو له دې وجې د احنافو د مذهب موافق په کوم کوچني حوض کې چې جامې پرېولل شي، نو په دې سره جامې نه پاکیږي، مګر د عموم بلوی او د احتراز د نه ممکن والي په صورت کې د حضرت امام مالک رحمه الله او داسې نورو د مذهب په وړاندې د طهارت فتوی ورکول کېدای شي، لکه د اوبو په اړوند چې ډېر ځله د حضرت امام مالک رحمه الله د مذهب موافق عمل کیږي **(فتاویٰ دیوبند جلد ۱ صفحه۱۱۹)**



او همدارنګه ردالمحتار لیکي:

اماالقلیل فینجس وان لم یتغیر خلافا لمالک (درمختار) فان ماهو قلیل عندنا لاینجس عنده مالم یتغیر والقلیل ماتغیر والکثیر بخلافه.

**(ردالمحتار باب المیاه جلد ۱ صفحه۱۷۱)**

## د هغه حوض حکم چې سر یې بند وي:

**پوښتنه**: که چیرې حوض لس په لس کې وي او سر یې پټ شوی وي، مګر په منځ کې یې لږ ځای خلاص وي. نو آیا ددغه حوض په اوبو اودس تازه کول صحیح دی او که نه؟ او که چیرې په دا ډول حوض کې نجاست ولوېږي نو بیا په دې سره اودس صحیح کیږي او که نه؟

**جواب**: هو، وروره! ددغه حوض په اوبو سره اودس صحیح کیږي، او که چیرې د حوض چت د اوبو سره موښتی نه وي، نو د نجاست په ورلوېدلو سره به دغه اوبه نه مرداریږي او اودس به په صحیح کیږي، ترڅو چې د نجاست اثر نه وي پکښې ښکاره شوی یعني خوند، رنګ او بوی یې نه وي بدل شوی **(فتاویٰ دارالعلوم دیوبندجلد ۱ صفحه۱۱۸)**.

همدارنګه ردالمحتار لیکي:

وکذا یجوز براکد کثیر کذلک ای وقع فیه نجس لم یراثره (درمختار) ای من طعم او لون او ریح. **(ردالمحتار باب المیاه جلد ۱ صفحه۷۶)**

# د څاه مسئلي

## په څاه کي د جنوب سړي لمبېدل :

**پوښتنه** : که چیري وڅاه ته یو جنوب سړی ورکښته شي او هلته ولمبیږي. او یا د څاه پر غاړه کښیني او ولمبیږي او څاه ته یې څاڅکي لویږي ددې څه حکم دی؟

**جواب**: وروره! په لومړي صورت کي د څاه اوبه طاهري غیر مطهري دي یعني مستعملي اوبه دي چي پخپله پاکي دي ، مګر بل شی نه په پاکیږي. لکه ردالمحتار چي وایي

فعلم ان المذهب المختار في هذه المسئلة ان الرجل طاهر والماء طاهر غير طهور الخ. (**ردالمحتار جلد ۱ صفحه۱۸۷**)

او پاته دا خبره شوه چي د څاڅکو په ورلوېدلو سره د څاه حکم څه ډول دی باید ووایم چي د څاڅکو په ورلوېدلو سره د څاه اوبه نه مرداریږي ، ځکه چي دا خو مستعملي اوبه دي ، مرداري خو نه دي. فقط. (**فتاوی عالمگيری جلد ۱ صفحه۲۲- او فتاویٰ دارالعلوم دیوبندجلد ۱ صفحه۱۲۰**)



## وڅاه ته د حرامو مرغانو مرداري لوېدل :

**پوښتنه** : که چیري وڅاه ته د حرامو مرغانو مرداري ولویږي لکه د تپوس، کارغه او د اسي نورو... نو آیا په دې سره دڅاه اوبه مرداریږي که نه؟

جواب وروره! د څاه په باره کي فقهاوو لیکلي دي چي د حرامو مرغانو مرداري وڅاه ته په لوېدلو سره څاه نه مرداریږي لتعذرصونها عنه. یعني ددې څخه ځان ساتل مشکل دي. فقط. (**فتاویٰ دارالعلوم دیوبندجلد ۱ صفحه۱۲۱- او همدارنګه ردالمحتار جلد ۱ صفحه۲۰۳**)

## که مشرک د څاه څخه اوبه راوایستلي :

**پوښتنه** : که چیري مشرک د مسلمانانو د څاه څخه په خپل لوښي باندي اوبه راوایستلي نو آیا څاه پاک دی او که مردار، ځکه چي ځیني خلک وایي چي که یې په هغه سلواغه سره چي پر څاه پرته ده اوبه راوایستلي پرواه نه لري او که یې پخپل لوښي سره راوایستلي څاه مردار دی آیا دا خبره صحیح ده او که نه؟ نو که چیري څاه پاک وي نو د "**انّما المشركون نجس**" به څه معنیٰ وي؟

**جواب**: که هندو یعني مشرک د مسلمانانو د څاه څخه که پخپل لوښي اوبه راوکاږي او که یې د څاه په مخصوصه سلواغه باندي راوکاږه په دواړو صورتونو کي څاه نه مرداریږي. څاه پاک دی هیڅ وهم نه دی کول په کار الله ﷻ فرمایلي دي. **وماجعل عليكم فى الدين من حرج** اوهمدارنګه الله ﷻ

فرمايلي دي. وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً طَهُوراً . (سورة الفرقان آيت ۴۸)

او همدارنګه جناب رسول الله ﷺ فرمايلي دي الماء طهور او همدارنګه د فقهي په کتابونو کي راغلي دي چي په شک سره يقين له منځه نه ځي. نو اصل طهارت د اوبو به د څه شبهې او وهم په وجه نه زائل کيږي. فقط

(فتاوی دارالعلوم ديوبندجلد ۱ صفحه۱۲۲)

او پاته دا خبره شوه چي د انما المشركون نجس څه معنی ده؟ نو بايد ووايم چي ددې څخه د دوی د عقيدې نجاست مراد دی. ځکه چي فقهاء پردې خبره اتفاق لري چي د مشرکانو بدنونه پاک دي لکه تفسير خازن چي ليکي

اراده بهذه النجاسة نجاسة الحكمي لانجاسة العين سموا نجسا على الذم لان الفقهاء اتفقوا على طهارة ابدانهم الخ .

(تفسيرخازن جلد ۱ صفحه۲۱۵)

## په حرامو پيسو سره د کښل شوي څاه حکم :

**پوښتنه**: يوې ښځي په حرامه ګټه باندي يو څاه جوړ کړی، دغه څاه يې زموږ د مسجد سره نژدې جوړ کړی، اوس يو ملا وايي چي ددغه څاه څخه اوبه څښل او اودس په تازه کول روا نه دي آيا دغه خبره صحيح ده او که نه؟

**جواب**: وروره! د دغه ملا خبره صحيح نه ده، په دغو اوبو سره هم اودس روادی او هم په دغه اوداسه سره لمونځ روادی، ځکه چي (الماء طهور) حديث ويل شوی دی. فقط (فتاوی دارالعلوم ديوبندجلد ۱ صفحه۱۲۲)



## د څاه په اوبو يې ډوډۍ پخه کړه وروسته د څاه څخه مړحيوان راووتی ايا په دې صورت کي څه کول په کار دي ؟

**پوښتنه**: يو مړ چرګ د څاه څخه راوايستل شو، خو ددغه مړ چرګ د راوتلو څخه مخکي ددغه څاه په اوبو سره ډوډۍ پخه شوې ده، نو آيا دغه ډوډۍ پاکه ده او که نه؟

**جواب**: وروره! کومي اوبه چي ددغه مړ چرګ د را ايستلو او ليدلو څخه مخکي ددغه څاه څخه را ايستل شوي دي هغه پاکي دي. نو بايد ووايم چي په دغه اوبو سره پخه شوې ډوډۍ هم پاکه ده او خوړک يې حلال دی. خو ددغه چرګ د ليدلو څخه وروسته دغه څاه ناپاک بلل کيږي. نو چرګ دي راوباسي او ورته ودي ګوري که چرګ پړسېدلی يا شوړېدلی نه ؤ، نو تر شپېته سلواغو پوري د اوبو راکښل مستحب دي، مګر واجب څلوېښت سلواغې دي لکه درمختار چي وايي:

ويحكم بنجاستها الى قوله وقالا من وقت العلم فلا يلزمهم شيء قبله قيل وبه يفتى (درمختار) قال الشامي صاحب الجوهرة وقال العلامة قاسم فى تصحيح القدورى قال فى فتاوىٰ العتابى قولهما هوالمختار(شامى جلد۱ صفحه۲۲٦) ان اخرج الحيوان غير منتفخ و متفسخ ان كان كحمامة وهرة نزح اربعون من الدلاء وجوبًا الى ستين ندبًا.

**پوښتنه**: یو وخت د یو امیر په ځای کي د ډېرو خلکو مهماني وه. چي کله ډوډۍ تیاره کړل شول، نو په دې وخت کي د څاه څخه اوبه راوغوښتل شوې، که ګوري چي په سلواغه کي مړ چرګ راوختی. خو حال دا دی چي ټوله ډوډۍ د دغه څاه په اوبو باندي پخه شوي وه. مګر دغه مړ چرګ نه خو پړسېدلی ؤ او نه هم شوړېدلی ؤ، نو په دې وخت کي یو مولوي صاحب فتوی ورکړه چي دغه ډوډۍ مرداره ده. باید وحیوانانو ته واچول شي. مګر بل مولوي صاحب بیا ویل چي هو د دغه مولوي صاحب فتوی د امام اعظم رحمه الله پر مذهب باندي صحیح ده. خو دا چي دلته د مال ضائع کېدل او لوی حرج راځي. نو په داسي ځای کي د یارانو پر قول باندي فتوی ورکول په کار دي. نو اوس پوښتنه دا ده چي د امام صاحب رحمه الله پر قول فتوی ورکول په کار ده او که د یارانو پر قول؟

**جواب**: وروره! د فتاوی دارالعلوم دیوبند د لومړي جلد په ۱۲۴ صفحه کي همدا سوال او بیا یې په دې ډول جواب راغلی دی

په دغه باره کي د دوهم مولوي صاحب قول صحیح دی. کوم چي د یارانو پر قول یې فتوی ورکړې ده، ځکه چي ډېرو علماوو او فقهاوو په دې هکله د صاحبینو پر قول فتوی ورکړې ده، او باید ووایم چي د فقهي په کتابونو کي ددې مفتی به کېدل مصرح دي یعني پر دې باندي فتوی راغلې ده.

لکه درمختار چي لیکي

ویحکم بنجاستها مغلظة من وقت الوقوع ان علم والافمذ یوم ولیلة ان لم ینتفخ ولم یتفسخ (الی قوله) وقالامن وقت العلم فلایلزمهم شیء قبله



قیل وبه یفتی. **(الدرالمختار جلد ۱ صفحه۲۱۲)**

او همدا رنګه په فتوی شامي کي راغلي دي:

وقال العلامة قاسم فی تصحیح القدوري قال فی فتاوی العتابی قولهما هوالمختار. **(فتاوی شامی جلد ۱ صفحه۴۱۳)**

ددې او نورو دلائلو څخه وروسته فتاوی دارالعلوم دیوبند داسي لیکي:

"په دې هکله د یارانو دلیل قوي دی او ددغو دلائلو څخه د یارانو د دلیل قوت معلومېږي."

**(فتاوی دارالعلوم دیوبندجلد ۱ صفحه۱۲۴)**

## په څاه کي د خرکار یابنګي لوېدل:

**پوښتنه**: یو چینه دار څاه چي دوه یا دوه نیم بانس اوبه پکښي موجودي وې یو بنګی یعني خرکار چي کالي او بدن یې مردار وه پکښي ولوېدی او هلته پکښي مړ شو. په بله ورځ را وایستل شو. نو اوس پوښتنه دا ده چي د څومره اوبو په راکښلو سره دغه څاه پاک بلل کېږي؟

**جواب**: وروره! په دغه صورت کي دوه سوه سلواغي وجوبًا او درې سوه سلواغي استحبابًا راکښل په کار دي، ددغو سلواغو د راکښلو وروسته څاه پاک بلل کېږي لکه ردالمحتار چي لیکي:

جزم به فی الکنز والملتقی وهو مروی عن محمد رحمه الله وعلیه الفتوی. خلاصه و تاتارخانیه عن النصاب وهوالمختار معراج عن العنایة وجعله

فی العنایة روایة عن الامام وهو المختار والایسر کما فی الاختیار وافاد فی النهر ان المأتین واجبتان والمأة الثالثة مندوبة الخ.

(فتاویٰ شامی جلد ۱ صفحه۱۹۸)

## په څاه کي د مار لوېدل او هلته مړکېدل

**پوښتنه**: موږ اورېدلي دي چي که څاه ته مار و لوېږي او هلته مړ شي نو په دې سره څاه نه مرداریږي آیا دا خبره صحیح ده او که نه؟.

**جواب**: وروره! په دې مسئله کي دغه لاندي تفصیل دی:

که چیري د اوبو مار وي په چاکي چي وینه نه وي نو باید ووایم چي دده په مرګ سره د څاه اوبه نه مرداریږي او که ځنګلي مار ؤ په چاکي چي وینه هم وي نو د هغه په مرګ سره اوبه مرداریږي لکه درمختار چي لیکي:

وضفدع الابریاله دم سائل فیفسد فی الاصح کحیة بریة ان لهادم والالاقوله کحیة بریة امامائیة فلاتفسد مطلقا. الخ.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار جلد ۱ صفحه۱۷۱ باب المیاه)

## که چنګوښه په اوبو کي مړه شي د هغې څه حکم دی:

**پوښتنه**: هغه څاه چي لس په لس کي نه وي، نو په داسي څاه کي که چیري چنګوښه مړه شي او وپړسیږي، او په څاه کي بد بویي هم پیدا شي. مګر



چنګوښه ونه رژیږي، په داسي حال کي چي دغه چنګوښه خو د اوبو ده، یعني په اوبو کي پیدا کیږي او هم په اوبو کي اوسیږي او لوییږي . نو آیا ددغه څاه څه حکم دی؟

**جواب**: په کوم څاه کي چي د اوبو چنګوښه مړه شي او وپړسیږي، نو ددغه څاه اوبه نه مرداریږي، یعني ددغه څاه په اوبو سره هم اودس روادی او هم یې څښل روادي، خو که چیري دغه چنګوښه ورژیږي او سره توی شي. نو په هغه صورت کي ددغه څاه په اوبو سره اودس روادی، مګر څښل یې روا نه دي لکه درمختار چي لیکي:

ویجوز رفع الحدث بما ذکر وان مات فیه غیر دموی ومائی المولد کسمک وسرطان وضفدع فلوتفتت فیه نحوه ضفدع جازالوضوء به ولایشربه لحرمته الخ . فقط

(الدرالمختار مجتبائی باب المیاه جلد ۱ صفحه۱۳۵)

## په څاه کي د سپي لوېدل او بیا یوځو هډوکي یې راوتل:

**پوښتنه**: د یوه مسجد په څاه کي چي اوبه یې تر شلو لاسونو ډیري وي سپی ولوېدی، په دې منځ کي چي سپی ورلوېدلی دی یوه نیمه میاشت تېره شوه، خو یوه ورځ د محل خلکو د څاه پاکېدل شروع کړل ، که ګوري چي د سپي هډوکي راووتل ،خو اوس دا احتمال شته چي په دغه څاه کي به د سپي

نورهډوکي هم پاته وي، او اوبه هم اوس دوه لاسه لړ شوي وي، تږوله اوبه خو نه شي را ایستل کېدای، نو اوس د شریعت څه حکم دی، څه ډول دغه ځاه پاکېدای شي؟

**جواب**: وروره! ددغه ډول ځاه د پاکولو په هکله فقهاؤ داسې لیکلي دي:

ددغه ډول ځاه څخه به تر دومره وخته پوري کارنه اخیستل کیږي چې ددغه سپي هډوکي، غوښه او پوست ورژیږي او خته وګرځیږي، او ځینې فقهاوو بیا فرمایلي دي چې ترشپږو میاشتو پوري دي ددغه ځاه څخه کار نه اخیستل کیږي او د هغه وروسته دي د ځاه ټوله اوبه راوکښل شي. خوکه چیري د ځاه د چینه دارکېدلو په وجه د ټولو اوبو راکښل مشکل وه، نو د دووسوو سلواغو څخه نیولې بیا تر دروسوو سلواغو پوري د اوبو په راکښلو سره ځاه پاک بلل کیږي. **(کمافی الشامی جلد ۱ صفحه۱۶۹)**.

ددې څخه وروسته فتاوی دارالعلوم دیوبند لیکي:

دا چې د طهارت علت استحاله ده یعني ددغه ورلوېدلي حیوان خاوره یا خته کېدل، نو دا خو ښکاره خبره ده چې د هر حیوان لپاره به دده د کوچني والي او لوی والي په وجه موده هم مختلفه وي.

**(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد ۱ صفحه۱۲۵)**

## آیا د ځاه څخه پرله پسې اوبه راکښل ضروري دي؟

**پوښتنه**: ایا د ځاه د پاکولو په وخت کي پرله پسې اوبه راکښل ضروري دي او که په تدریج سره؟



**جواب**: نه وروره! پرله پسې اوبه راکښل شرط نه دي

فتاوی دارالعلوم دیوبند د لومړي جلد په ۱۲۶ صفحه کي لیکي چي د صحیح او مختار مذهب موافق پرله پسې د ټولو اوبو راکښل ضروري نه دي، د څومره اوبو راکښل چې واجب دي، نوصرف د هغه اوبو راکښل ضروري دي، یعني په توقف سره څو واري راکښل هم صحیح دي. پرله پسې والی بې شرط نه دی لکه په فتاوی شامي کي چې راغلي دي:

علی انه لایشترط التوالی وهوالمختار الخ. فقط.

**(ردالمحتار فصل فی البئر جلد ۱ صفحه۱۲۶)**

## د چینه دارځاه څخه خو ټوله اوبه نه شي راکښل کېدای څه کول په کاردي:

**پوښتنه**: یو چینه دارځاه دی، مردار شوی دی، موږ غواړو چې ټوله اوبه ځني راوکاږو خو چې هر څومره اوبه ځني راوکاږو، نوري راوزي، نو اوس موږ څه وکړو؟

**جواب**: وروره! لومړی دي دغه نجاست د ځاه څخه راوایستل شي، وروسته دي د دووسوو سلواغو څخه نیولې تر دروسوو سلواغو پوري اوبه راوکاږي. نو اوس د ځاه پاته اوبه پاکي بلل کیږي، فتوی هم پر همدې قول ده. د ټولو اوبو راایستل ضروري نه دي.

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار فصل فی البئر جلدا صفحه۱۹۶)**

**پوښتنه**: زموږ په سيمه کي مخکي د ډېرو څاهانو اوبه لږې وې، خو اوس دومره ډېري شوي دي که چيري څاه مردار شي، نو چي يو نيم زر سلواغي راوايستل شي هم د څاه اوبه نه خلاصيږي نو په دې هکله زموږ د سيمي خلک ډېر پرېشانه دي، موږ ته د اسانۍ يوه لاره راوښوئ ؟

**جواب**: فتاوىٰ دارالعلوم ديوبند ددغه سوال په جواب کي دا راز ليکي:

زموږ د حضراتو اکابرو حضرت مولانا محمد يعقوب صاحب او د حضرت مولانا شيخ الهند قدس سرهما وغيرهما په دې هکله اتفاق دی چي د دووسو سلواغو څخه نيولې تر دروسوو سلواغو پوري په راکښلو سره دغه څاه پاک بلل کيږي، او د اسانۍ او سهولت په سبب پر همدغه قول باندي فتوا ده او دلته همېشه پر همدې قول باندي عمل کيږي **(فتاوىٰ دارالعلوم ديوبند جلد ۱ صفحه۱۳۹)**

همدارنګه درمختار ليکي:

وان تعذر نزح كلها لكونها معينا فبقدر مافيها وقت ابتداء النزح قاله الحلبى ويؤخذ ذلك بقول رجلين عدلين لهما بصارة بالماء به يفتى وقيل يفتى بمأتين الى ثلثمائة وهذا ايسر وذلك احوط (درمختار) قوله وقيل يفتى الخ جزم به فى الكنز والملتقى وهو مروى عن محمد رحمه الله وعليه الفتوىٰ. **(ردالمحتار جلدا صفحه۱۹۸)**

که غواړې چي په دې هکله ډېر تفصيل ترلاسه کړې نو د ردالمحتار د لومړي صفحه۱۹۸ صفحې ته مخ ورښکاره کړئ، مطلب دادی که څاه داسې



مردار شوی وي چي ټولي اوبه راکښل يې په کار وي نو د اسانۍ لپاره د دووسوو سلواغو څخه نيولې تر دروسووسلواغو پوري په راکښلو باندي دغه څاه پاک بلل کيږي.فتاوىٰ دارالعلوم ديوبند او ردالمحتار ليکي چي پردې قول فتوىٰ ده.

## د مرغانو مرداري او داسي نور... چي په څاه کي ولويږي د هغي حکم:

**پوښتنه**: دلته د اوبو يو څاه دی خو د څاه پر غاړه يو غټه درخته ولاړه ده، په دغه درخته کي هر وخت قسم قسم مرغان لکه تېپوس، کارغه او داسي نور کښيني، ددغو مرغانو مرداري، بوڼکي او کله کله هډوکي هم په څاه کي لويږي، نو اوس پوښتنه داده چي په دغه څاه اودس روادی او که نه، يعني دغه څاه پاک بلل کيږي او که نه؟.

**جواب**: وروره! فتاوىٰ دارالعلوم ديوبندد لومړي جلد په۱۲۶ صفحه کي داسي ليکي: تر هغه وخته پوري چي په دغه څاه کي مرداري ونه ليدل شي تر هغو پوري پر دغه څاه باندي د مردار حکم نه شي کېدای، ددغه څاه په اوبو اودس صحيح دی او هم لمونځ په صحيح دی، همدارنګه درمختار ليکي:

ولا نزح فى بول فارة فى الاصح ولابخرء حمام وعصفور وكذا سباع طير فى الاصح لتعذر صونها عنه.

**(الدرالمختار على هامش ردالمحتار فصل فى البئر جلدا صفحه۲۰۳)**

همدارنګه فقهاء وايي چي په شک سره يقين له منځه نه ځي: اليقين لايزول بالشک. (الاشباه والنظائر صفحه٧٥)

## د کوچنيانو د بازيو ګين وڅاه ته لوېدل :

**پوښتنه**: زموږ په سيمه کي کوچنيان اکثره وخت د توکره څخه ګين جوړکړي او بازي په کوي خو دا چي دغه ګين اکثره وخت مرداروي مثلاً لښتيانو او ناليانو ته لويږي، نو که چيري دا په څاه کي ولويږي او په اوبو کي ډوب شي او لاندي مځکي ته ولاړشي، نو آيا دغه څاه پاک بلل کيږي اوکه نه؟

**جواب**: ددې پوښتني په جواب کي فتاویٰ دارالعلوم ديوبند د لومړي جلد په ١٢٦ صفحه کي دا راز فرمايي:

ترڅو پوري چي ددغه ګين د نجس کېدلو يقين نه وي راغلی او د نجاست موښتل نه وي پرليدل شوي، تر هغو پوري د څاه پر اوبو باندي د مردارو حکم نه شي کېدای لکه د فقهي په کتابونو کي چي په دې هکله دا ډول راغلي دي: اليقين لايزول بالشک نو د شک په وجه سره د نجاست حکم نه شي کېدای.

پر دغي قاعدې باندي چي "اليقين لايزول بالشک" د مسلم شريف دغه حديث دليل دی: عن ابی هريرة مرفوعا اذا وجد احدکم فی بطنه شيئا فاشکل عليه اخرج منه شیء ام لا فلا يخرجن من المسجد حتی يسمع صوتا او يجد ريحا.



## په څاکي د موږک لوېدل او هلته مړ کېدل :

**پوښتنه**: په کوم څاه کي چي موږک او يا بل شی ولويږي او هلته مړ شي، خو موږک راوکښل شي مګر اوبه هيڅ راونه کښل شي لکه اکثره وخت د هندوانو په سيمو کي داسي کيږي، نو آيا په دغه څاه سره اودس روا دی که نه؟

**جواب**: بې له اوبو راکښلو څخه څاه مردار بلل کيږي. خو که هندوانو ددغه څاه څخه اوبه راکښلي دومره اوبه يې راوکښلې څومره چي لازمي وې، نو په دغه صورت کي دغه څاه پاک بلل کيږي. ځکه چي متفرقًا اوبه راکښل هم موجب د طهارت دي، نو ددې څخه وروسته د مسلمانانو لپاره هم دغه اوبه استعمالول صحيح دي (فتاویٰ دارالعلوم ديوبند جلد ١ صفحه١٢٧)

همدارنګه ردالمحتار ليکي:

وان کان کعصفور وفارة فعشرون الی ثلاثين کمامر الخ ويحکم بنجاستها مغلظة من وقت الوقوع ان علم (درمختار) لايشترط التوالی وهوالمختار. (ردالمحتار فصل فی البئر جلد ١ صفحه١٩٦)

## مړ موږک وڅاه ته لوېدل :

**پوښتنه**: که موږک يا په مثل د موږک يو بل شی لکه کربوړی، چوغکه يا داسي بل شی وڅاه ته ولويږي او هلته مړ شي، نو داخو ښکاره خبره ده چي اول به دغه مړ حيوان راکاږي او بيا به د شلو سلواغو څخه نيولې تر ديرشو سلواغو پوري يعني شل سلواغې راکښل واجب دي اولس نوري زائد سلواغې

راکښل مستحب دي، خو زمونږ پوښتنه داده چي که موږک یا مثل د موږک مړ شوی ؤ، خو پړسېدلی او شوړېدلی نه ؤ، وروسته وڅاه ته ولوېدی، نو ددې څه حکم دی؟

**جواب**: وروره! دا فرق نه کوي که مخکي مړشوی وي بیا څاه ته ولوېږي او که په څاه کي مړشي خو چي شوړېدلی او پړسېدلی نه وي د شلو سلواغو څخه نیولې تر دېرشو سلواغو پوري راکښل په کار دي لکه فتاویٰ عالمګیري چي لیکي: ولافرق بین ان تموت الفارة فی البئر او خارجها وتلقیٰ فیها وکذا سائر الحیوانات. **(فتاویٰ عالمګیري جلد ۱ صفحه۱۹)**

یعني همدا حکم چي په څاه کي مړشي او که د باندي تر څاه مړشي د موږک او نورو ټولو حیواناتو لپاره دی.

## کوتره، پیشي او چرګه وڅاه ته لوېدل:

**پوښتنه**: که چیري کوتره، پیشي، او یا چرګه وڅاه ته ولوېدل او هلته مړه شول، نو د څاه څخه څو سلواغي راکښل په کار دي؟

**جواب**: که چیري کوتره یا چرګه او یا پیشي یا د دوی په مثل بل شی په څاه کي مړ شو، پړسېدلی او شوړېدلی نه ؤ، او یا دباندي تر څاه مړ شو بیا وروسته وڅاه ته ولوېدی پړسېدلی او شوړېدلی نه ؤ، باید اول وار دغه مردار شی راوکښل شي او بیا څلوېښت سلواغي راکښل واجب دي خو لس سلواغي نوري زیاتي ورسره راکښل مستحب دي.

**(فتاویٰ عالمګیري جلد ۱ صفحه۱۹، البحرالرائق جلد ۱ صفحه۱۱۸)**



## آیا وڅاه ته په ورلوېدلو کي کوچنی او غټ حیوان فرق لري او که نه؟

**پوښتنه**: آیا وڅاه ته په ورلوېدلو کي د حیوان کوچني والی او غټوالی فرق لري او که نه یعني که چرګ کوچنی وي او که غټ وي یو حکم یې دی او که څنګه؟

**جواب**: ردالمحتار لیکي چي د موږک، چرګ او انسان په هکله چي کوم حدیثونه ذکر شوي دي په هغو حدیثونو کي د دغو درو ذکر شوو شیانو فرق د څاه څخه د اوبو د راکښلو په هکله نه دی شوی، او دا ظاهر روایت دی

**(ردالمحتار جلد ۱ صفحه۱۴۴)**

مګر کوچنی بطه، کوچنی هیلۍ حکم د چرګ لري. څلوېښت سلواغي کښل غواړي تر پنځوسو سلواغو پوري، مګر لویه هیلۍ او لویه بطه حکم د پسه لري، کښل د ټولو اوبو غواړي لکه خلاصة الفتاویٰ چي فرمایي:

والبط والاوز کالدجاج انکان صغیراً، وان کان کبیراً فهو کالجمل العظیم ینزح کل الماء. **(خلاصة الفتاویٰ جلد ۱ صفحه۱۰)**

## وڅاه ته د مردار لرګي یا مردار ټوکر لوېدل:

**پوښتنه**: که وڅاه ته مردار لرګی یا مردار ټوکر ولوېدی، نو دغه څاه څه ډول پاکېدای شي؟

**جواب**: که وڅاه ته مردار لرګی او یا مردار ټوکر ولوېدی د ټوله څاه اوبه

راکښل په کار دي لکه قاضی خان چي وايي: ولو وقع فی البئر خرقة اوخشبة نجسة ينزح كل الماء.

(قاضی خان علی هامش عالمگيری جلد ۱ صفحه۹)

## که څا چينه داره وي او يا دومره ډيري اوبه پکښي کي وي چي د ټولو اوبو راکښل مشکل وي نو دغه څاه څه ډول پاکيږي؟

**نوټ** : فکر موويي که چيري څاه داسي مردار شوی وي چي د ټول اوبو راکښل ضروري وي. مگر څاه چينه داره وي او يا هم دومره ډيري اوبه پکښي کي وي چي د ټولو اوبو راکښل گران وي، نو لکه ددې کتاب په مخکي صفحو کي چي تاسي ته د خپلو حوالو سره يو ځای په دوو جوابونو کي تېر شول يعني پر دې خبره فتوی ده چي د دووسوو سلواغو څخه نيولي تر دروسوو سلواغو پوري د اوبو په راکښلو باندي دغه څاه پاک بلل کيږي د ټولو اوبو راکښل ضروري نه دي که مو هېر شوي وي يو وار بيا د فتاوی دارالعلوم ديوبند د لومړي جلدو ۱۳۹ صفحي ته او يا هم د ردالمحتار د لومړي جلدو ۱۹۸ صفحې ته مخ وربنکاره کړی او يا هم ددغه کتاب ومخکنيو صفحو ته رجوع وکړئ.



## په څاه کي تر موږک غټ او تر پيشي کوچنی حيوان پيداکېدل:

**پوښتنه** : که په څاه کي تر موږک غټ او تر پيشي کوچنی مړ حيوان پيداشو ددې څه حکم دی؟

**جواب** : که چيري په څاه کي داسي مړ حيوان چي تر موږک په صورت کي غټ ؤ خو تر پيشي کوچني ؤ، نو ددغه حيوان حکم د موږک په شان دی يعني شل سلواغې راکښل واجب دي، او که په څاه کي داسي مړ حيوان پيدا شو چي تر پيشي غټ ؤ خو تر سپي او پسه کوچني ؤ، نو دغه حيوان حکم د پيشي لري يعني د ځلويښتو سلواغو راکښل واجب دي دا ظاهر روايت دی لکه البحرالرائق چي فرمايي:

وماکان بين الفارة والهرة فحکمه حکم الفارة وماکان بين الهرة والکلب فحکمه حکم الهرة وهکذا يکون حکم الاصغر.

(البحرائق جلد ۱ صفحه۱۱۹ فتاوی تاتارخانيه جلد ۱ صفحه۱۹۰)

## پيشي او موږک دواړه يو ځای په څاه کي لوېدل:

**پوښتنه** : که پيشي او موږک دواړه په څاه کي ولوېدل ددې څه حکم دی؟

**جواب** : که پيشي اوموږک دواړه په څاه کي ولوېدل اوس به وگورو که دوی زخمي شوي نه وه او دوی دواړه د څاه څخه ژوندي را وکښل شول . نو

احتیاطًا د څو سلواغو راکښل ښه دی، خو بې له څو سلواغو راکښلو هم په دغو اوبو اودس صحیح دی، دا قول د امام اعظم رحمه الله دی.

که موږک مړ او پېشي ژوندی راوکښل شول، نو د شلو سلواغو څخه نیولې تر دیرشو سلواغو پوري اوبه راکښل په کار دي.

او که موږک ژوندی پاتې ؤ، خو پېشي مړه شوې وه، د څلوېښتو سلواغو څخه تر پنځوسو سلواغو پوري اوبه راکښل په کار دي.

او که دواړه مړه شوي وه، نو د څلوېښتو سلواغو څخه نیولې تر پنځوسو سلواغو پوري د اوبو راکښل په کار دي.

(فتاویٰ تاتارخانیه جلد ۱ صفحه ۱۹۰)

او که یو د دوی دوو څخه زخمي ؤ، نو په دې صورت کې د ټولو اوبو راکښل ضروري دی که څه هم ژوندي د څاه څخه راوخيژي لکه تتاخانیه چې فرمایي فانكانت بها جراحة ینزح جمیع الماء سواء اخرجت من البئر حية اومیتة. (فتاوی تاتارخانیه جلداول صفحه ۱۹۰)

## دوه موږکان حکم د یوه موږک لري:

**پوښتنه**: که دوه موږکان یو ځای څاه ته ولوېدل، نو ددې حکم څه شی دی؟

**جواب**: دوه موږکان حکم د یوه موږک لري. یعني که دوه موږکان په څاه کې مړه پیداشول، نو د شلو سلواغو څخه نیولې تر دېرشو سلواغو پوري اوبه راکښل غواړي لکه مبسوط د امام سرخسی چې فرمایي: وحکم الفارتین



كحكم الفارة الواحدة فى ان البئر تطهر ینزح عشرین دلوًا منها.

او همدارنګه د امام محمد رحمه الله څخه روایت شوی دی چې ده مبارک به ویل چې په دوو موږکانو کې شل سلواغې راکښل په کار دي لکه بدائع چې وايي

وروی عن محمد رحمه الله انه قال فى الفأرتین ینزح عشرون.

(بدائع جلد ۱ صفحه ۷۶)

## درې موږکان حکم د یوه چرګ لري:

**پوښتنه**: که درې موږکان وڅاه ته ورولوېدل، څه حکم یې دی؟

**جواب**: درې موږکان حکم د یوه چرګ لري. یعني د څلوېښتو سلواغو څخه بیا تر پنځوسو سلواغو پوري اوبه راکښل په کار دي دا ظاهر روایت دی لکه مبسوط چې لیکي:

وثلث فأرات فى ظاهر الرواية كالدجاجة، فاذا كان الثلث كالدجاجة فى ظاهر الرواية يطهرها نزح اربعين دلوًا.

(مبسوط الامام السرخسی رحمه الله جلد ۱ صفحه ۹۴)

او همدارنګه د امام محمد رحمه الله څخه روایت شوی دی چې ده به ویل چې په درې موږکانو کې څلوېښت سلواغې راکښل په کار دي لکه بدائع چې وايي

وروی عن محمد رحمه الله انه قال فى الفارتین ینزح عشرون، وفى الثلث اربعون. (بدائع جلد ۱ صفحه ۷۶)

## شپږ مورکان حکم د یوه سپي لري :

**پوښتنه**: که په څاه کي شپږ مورکان پیدا شي حکم بې څه ډول دی؟

**جواب**: دري مورکان تر پنځو پوري حکم د یوې پیشي لري. یعني که دري مورکان تر پنځو پوري په څاه کي پیدا شول، لومړی به دغه مړه مورکان راکاږي، بیا به څلوېښت تر پنځوسو پوري سلواغي راکاږي.

او که شپږ مورکان په څاه کي مړه پیدا شي، حکم د یوه سپي لري، یعني که شپږ مورکان څاه ته ورلوېدلي وه، او هلته مړه شوي وه، نو د ټوله څاه اوبه راکښل په کار دي، باید ووایم چي دغه دواړه حکمونه د امام محمد رحمه الله قول دی لکه مبسوط چي لیکي: وقال محمد رحمه الله الثلاث كالهرة والست كالكلب. **(مبسوط الامام سرخسی جلد ۱ صفحه۹۴)**

## دوې پیشیاني حکم د یوه پسه لري :

**پوښتنه**: که دوې پیشیاني په څاه کي مړې پیدا شي حکم بې څه ډول دی ؟

**جواب**: دوې پیشیاني حکم د یوه پسه لري یعني دوې پیشیاني چي په څاه کي مړې پیدا شي داسي مثال لري لکه پسه چي په څاه کي مړ پیدا شي. نو دا چي د پسه په پیداکېدلو سره خو د ټوله څاه اوبه راکښل ضروري دي . نو همدا ډول که دوې پیشیاني و څاه ته ورولوېږي او مړې شي نو د ټوله څاه اوبه راکښل ضروري دي. او که څاه چینه داره او یا هم دومره ډېري اوبه بې درلودې چي راکښل بې مشکل وه .نو لکه مخکي چي درته تېر شوه د دوو



سوو څخه نیولې تر درو سوو پوري سلواغي راکښل هم کافي دي.

همدارنګه هغه حیوان چي صورت دده په اندازه د صورت د دوو پیشیانو وي په سبب د مرګ ددغه حیوان په څاه کي. کښل د ټولو اوبو لازمیږي . ګویا پسه په څاه کي مړ شوی دی لکه ردالمحتار چي لیکي:

ونحو الهرتين كشاة اتفاقًا (درمختار) قوله ونحو الهرتين اى ماكان مقدار هما في الجثة . **(ردالمحتار جلد ۱ صفحه ۱۴۵)**.

## په څاه کي پنځه مړه مورکان او یوه مړه پیشي پیدا کېدل :

**پوښتنه**: که چیري پنځه مورکان سره د یوې پیشي په څاه کي مړه پیدا شوه، نو ددغه څاه د پاکېدلو څه حکم دی؟

**جواب**: وروره! که چیري په څاه کي پنځه مړه مورکان سره د یوې مړې پیشې پیدا شول. نو د څاه ټوله اوبه کښل په کار دي لکه فتاوی تاتارخانیه چي لیکي: حتى يكون سنوراً وخمس فأرات فينزح كله.

**(فتاوی تاتارخانیه جلداول صفحه ۱۹۰)**

## په څاه کي د پړسېدلي او شوړېدلي حیوان پیداکېدل :

**پوښتنه**: که په څاه کي یو پړسېدلی یا شوړېدلی حیوان پیدا شو. نو

دغه څاه څه ډول پاکېدای شي؟

**جواب:** په څاه کي که پړسېدلی یا شوړېدلی حیوان پیدا شي، که کوچنی حیوان وي او که غټ د ټولو او بو کښل لازم دي لکه هدایه چي لیکي:

**فان انتفخ الحیوان فیها (ای فی البئر) او تفسخ نزح جمیع ما فیها صغر الحیوان اوکبر لانتشار البلة (الرطوب المائعة النجسة) فی** اجزاء الماء. **(هدایه صفحه ۴۷)**

**مسئله:** فتاوی بزازیه لیکي چي په هغه صورت کي چي د څاه ټوله اوبه راکښل ضروري وي، که چیري یو څوک یو څو سلواغې راوکاږي، خو وروسته سلواغه نیمه لا نه ډکېږي، بس دا کفایت کوي، ګویا ده ټوله اوبه راوکښلې. همدا خبره کبیري هم په دې الفاظو سره کړې ده:

**وفی وجوب نزح الکل اذا وصل الی حدلایملأنصف الدلوکان** نزحاللکل ویحکم بطهارة البئر ونواحیها. **(کبیری صفحه ۱۶۴)**

**مسئله:** لکه مخکي چي مو هم وویل چي د اوبو په راکښلو کي پرله پسې والی شرط نه دی که چیري موږک څاه ته لوېدلی وي، خو شل سلواغې راکښل واجب دي، نو که یو سړی دغه شل سلواغې په لسو ورځو کي هم راوکاږي فرق نه کوي، څاه پاک بلل کیږي لکه مبسوط چي لیکي:

قلنا لونزحها عشرة ایام ونحوه یطهرلوجود القدر.

**(مبسوط السرخسی رحمة الله علیه جلد ۱ صفحه ۹۲)**



**مسئله:** ردالمحتار د سلواغو د اندازې په هکله لیکي چي میانه سلواغې اعتبار لري، دا فرق نه کوي چي پر څاه څه ډول سلواغه پرته ده، مثلاً که پر څاه ډېره غټه سلواغه پرته وه چي میانه شل سلواغې ځني ډکېدلې، نو د موږک په ورلوېدلو سره صرف یوه غټه سلواغه راکښل کافي ده، او که پر څاه ډېره کوچنی سلواغه پرته وه، نو هغه هم د میانه سلواغو سره اندازه کول په کار ده **(ردالمحتار جلد ۱ صفحه۱۴۵)**

## څاه مردار شو، خو د اوبو تر راکښلو مخکي وچ شو:

**پوښتنه:** یو څاه مردار شو، خو چي هغه مقرره اوبه یې لا نه وې راکښلې، بیا څاه وچ شو، یو څو ورځي وروسته بېرته په څاه کي اوبه پیدا شوې، نو آیا ددغه څاه اوبه استعمالول په کار دي او که به اوس هم یو وار هغه مقرري اوبه راکاږي؟

**جواب:** وروره! که وڅاه ته موږک یا چوغکه اویا بل شی ورولوېدی. خو دغه مردار شی ځني راوکښل شو، مګر هغه مقرره اندازه اوبه لا نه وې راختلي چي بیا څاه وچ شو، نو اوس به وګورو، که چیري د څاه مځکه پوره وچه شوې وه، بیا یې وروسته اوبه کړې وې، نو ددغه څاه اوبه پاکي بلل کیږي او که د څاه مځکه نه وه وچه شوې، بېرته څاه اوبه وکړې، نو ددغه څاه اوبه پاکي نه بلل کیږي، په هغه اندازه اوبه کښل چي په شریعت کي لازم وه، هغومره اوبه به راکاږي بیا نو څاه پاک بلل کیږي. **(بحرالرائق جلد ۱ صفحه۱۲۰)**

## د مقرري یا ټاکلي اندازې اوبو راکښلو څخه مخکې د څاه اوبه ختمېدل وروسته بېرته ډېرېدل :

**پوښتنه** : که د یو چا و څاه ته یو داسې حیوان ورولوېدی او هلته مړ شو چې څلوېښت سلواغې اوبه راکښل واجب وې، نو دغه سړي لومړی دغه مړ حیوان راوکښی او وروسته یې د اوبو په راکښلو شروع وکړه، خو چې شل سلواغې یې راوکښلې په څاه کې اوبه ختمې شوې، له دې وروسته بېرته د څاه اوبه ډېرې شوې، نو آیا نورې شل سلواغې هم راکښل په کار دي او که نه؟

**جواب** :بس دغه شل سلواغې اوبه راکښل کافي دي، د نورو نوو اوبو راکښلو ته ضرورت نشته. لکه بحرالرائق چې لیکي:

واذالـم یوجـد فـی البـئر القـدر الواجب نزح مافیها فاذا جاء الماء بعده لاینزح منه شئ. **(البحرالرائق جلد ۱ صفحه۱۲۰)**

## مخکې تر موږک راکښلو شل سلواغې راکښل :

**پوښتنه** : که موږک په څاه کې مړ پیدا شو، او مخکې د موږک تر راکښلو موږ شل سلواغې اوبه راوکښلې، نو آیا څاه پاک دی او که نه؟

**جواب** : نه وروره ! مخکې تر موږک راکښلو د اوبو راکښل فائده نه کوي، څاه مردار بلل کیږي لکه مبسوط چې لیکي : فان نزح منها عشرون دلواً قبل اخراج الفأرة لم تطهر. **(مبسوط السرخسی** رحمه الله علیه **جلد ۱ صفحه۹۰)**



## یو سړي پر خپلو کالیو باندې نجاست ولیدی خو ده ته معلومه نه وه چې په څه وخت کې مې کالي مردارشوي دي ، نو دی به لـه څه وخت څخه لمونځ راګرځوي؟

**پوښتنه** : یو سړي پر کالیو باندې تر یوه درهم زیات نجاست غلیظه یعنې سخت نجاست ولیدی، خو ده ته معلومه نه وه چې په څه وخت کې مې کالي مردار شوي دي، نو دی به له څه وخت څخه لمونځ راګرځوي؟

**جواب** : که یوه سړي پر خپلو کالیو باندې تر یوه درهم زیات نجاست غلیظه یعنې سخت نجاست ولیدی خو دا ورته معلومه نه وه چې زما کالي په څه وخت کې مردار شوي دي، نو پر دغه سړي باندې د لمانځه راګرځېدل نشته په اجماع سره د علماوو لکه مبسوط او نور چې وایي: لووجد فی ثوبه نجاسة مغلظة اکثر من قدر الدرهم ولم یعلم بالاصابة لم یعد شیئا بالاجماع وهو الاصح. **(مبسوط السرخسي** رحمه الله علیه **جلد ۱ صفحه۵۹ ، ردالمحتار جلد ۱ صفحه ۱۴۷، زیلعي جلد ۱ صفحه۳۰ ، بدایع جلد ۱ صفحه ۷۸)**

او که د یو سړي کالي په وینو وه، نو دغه سړی دې لمونځ نه راګرځوي، مګر هغه وخت چې دده یقین شي چې په فلاني وخت کې زما وکالیو ته وینې ورسېدلې، نو بیا دې د هغه معلوم وخت څخه لمونځونه را وګرځوي لکه شبلي چې لیکي : وفی المحیط قال فی الدم لا یعید شیئاحتی یتیقن.

**(شبلي پر حاشیه د زیلعی جلد ۱ صفحه۳۱)**

## د پسه او یا پیشي په څاه کې بولې کول:

**پوښتنه**: که چیرې و یو څاه ته پسه ورولوېدی، او یا سپی او پیشي ورولوېدل او په څاه کې یې بولې وکړې، او بېرته ژوندي راپورته شول، نو دغه څاه په څومره سلواغو راکښلو پاکیږي؟

**جواب**: وروره! ددغه څاه ټولې اوبه راکښل لازمي دي، مګر فقهاوو رحمهم الله د ټولو اوبو پر ځای دوه سوه سلواغې تر درې سوه سلواغو پورې اوبه راکښل جائز بللي دي، یعني د ټوله څاه د اوبو راکښلو پر ځای یې دوه سوه سلواغې کافي بللي دي، په دوه سوه سلواغو راکښلو سره د څاه نورې اوبه پاکې دي لکه درمختار چې لیکي: اذا وقعت نجاسة الخ فی بئر دون القدر الکثیر الخ فینزح کل مائها الخ وان تعذر فیقدر مافیها الخ وقیل یفتی بمائتین الی ثلثمائة وهذا ایسر وذالک احوط. (**الدرالمحتار علی هامش ردالمحتار فصل فی البئر جلدا صفحه ۱۹۴**)

## بې له حیوانه یو بل نجاست په څاه کې معلومېدل:

**پوښتنه**: که چیرې په څاه کې بې له حیوانه یو بل نجاست ولیدل شو، نو که یې چیرې په دغو اوبو اودسونه تازه کړي وه او لمونځونه یې په کړي وه او یا یې کالي او یا یې نور شیان په پرېولي وه، نو ایاپه دې صورت کې به د ورځو لمونځونه راګرځوي، اوایا هغه شیان به ټوله بېرته پرېولي او که نه؟



**جواب**: ګرانه وروره! بې له حیوانه چې یو بل نجاست په څاه کې معلوم شي نو همدا اوس پر دغه څاه د مردار حکم کیږي. یعني بس ددغه مرداری د لیدلو د وخت څخه څاه مردار بلل کیږي یعني راګرځېدل د لمونځونو. غسل. او داسه او کالیو هیڅ شی نشته لکه طحطاوي چې لیکي

ووجود حیوان میت فیها (ای فی البئر) ینجسها من یوم ولیلة الخ (مراقی الفلاح) قید بالحیوان لان غیره من النجاسات لایتاتی فیه التفصیل (ای التفصیل من التفسخ وعدمه) ولاالخلاف (بین الامام وصحابیه رحمهم الله تعالی) بل ینجسها من وقت الوجدان فقط والمراد الحیوان الدموی غیر المائی. (**حاشیه طحطاوی صفحه ۲۳**)

## د مسجد په څاه کې د سپي لوېدل او بېرته ژوندی را ایستل:

**پوښتنه**: که چیرې د مسجد په څاه کې ژوندی سپی ولوېږي او سمدلاسه ژوندی راوکښل شي، نو ددغه څاه اوبه د څومره سلواغو په راکښلو سره پاکیږي. خو خبره دا ده چې ددغه څاه اوبه بېخي زیاتې دي چې د ټولو راکښل ډېر مشکل دي؟

**جواب**: محترمه! ددغه سوال جواب څو ځله تېر شوی دی یعني د دوو سوو سلواغو په راکښلو سره دغه څاه پاک بلل کیږي لکه درمختار چې لیکي

وان تعذرفیقدرمافیها الخ وقیل یفتی بمائتین الی ثلثمائة وهذا ایسروذالک

احوط. (**الدرالمختار علی هامش ردالمحتار جلد ۱ صفحه ۱۹۴**)

مطلب دا دی چي داسي څاه چي ټوله اوبه راکښل بې لازمي وي د دوو سوو سلواغو څخه نیولي تر درو سوو سلواغو پوري په راکښلو سره دغه څاه پاک بلل کیږي

## د باران په وخت کي د لارو او کوڅو اوبه مرداري دي که نه؟

**پوښتنه**: د کورونو، لارو او کوڅو اوبه کومي چي په باران کي راځي که هغه وبهیږي او په یوه څاه کي ولوېږي، نو آیا په دې سره څاه مرداریږي او که نه، په چشمه فیض نومي کتاب کي بې د لارو او کوڅو اوبه غلیظي او نجسي نه دي بللي؟

**جواب**: فتاوی دارالعلوم دیوبند د خپل لومړي جلد په (۱۲۹) صفحه کي ددې سوال په جواب کي داسي لیکي

د باران اوبه کومي چي په لارو او کوڅو کي وبهیږي، راشي او ټولـه نجاستونه وبهوي، بـلـه شکه هغه اوبه پاکي دي، کمابین فی کتب الفقه. (**دارالعلوم دیوبند جلد ۱ صفحه ۱۲۹**)

همدارنګه فتاوی عالمګیري هم لیکي: المطر مادام یمطر فله حکم الجریان حتی لو اصاب العذرات علی السطح ثم اصاب ثوبالایتنجس الاان یتغیر. (**عالمګیری جلد ۱ صفحه۱۵**)



## د څاه د مردارولي له خبرېدو څخه مخکي چي کومي اوبه استعمال شوي دي د هغو څه حکم دی؟

**پوښتنه**: د څاه د مرداری د معلومېدلو څخه مخکي که چیري د دغه څاه په اوبو سره اودسونه تازه شوي وه او یا غسلونه په شوي وه او یا کالي او لوښي په پرېولل شوي وه، نو ددې څه حکم دی؟

**جواب**: وروره! د څاه د مردارولي د معلومېدلو څخه مخکي چي کومي اوبه د هغه څخه راکښل شوي دي هغه د مفتي بـه قول لـه رویـه پاکي بلل کیږي، کوم اودسونه او لمونځونه چي بې په هغو تازه کړي دي هغه ټول صحیح دي (**فتاوی دارالعلوم دیوبندجلد ۱ صفحه۱۳۰**)

همدارنګه ردالمحتار لیکي

ویحکم بنجاستها مغلظة من وقت الوقوع ان علم والافمذیوم ولیلة ان لم ینتفخ ولم یتفسخ وهذا فی حق الوضوء والغسل الخ اما فی حق غیره کغسل ثوب فیحکم بنجاسته فی الحال الخ وقال لامن وقت العلم فلایلزمهم شئ قبله قیل وبه یفتی (درمختار) قوله قیل وبه یفتی قائله صاحب الجوهرة وقال العلامه قاسم فی تصحیح القدوري قال فی فتاوی العتابی قولهما هوالمختار الخ وصرح فی البدائع بان قولهما قیاس وقوله استحسان وهوالاحوط فی العبادات. (**ردالمحتار فصل فی البئر جلدا صفحه۲۰۲**)

## د مردار څاه په باره کي د امام محمد رحمة الله عليه پر قول فتویٰ ورکول :

**پوښتنه**: د څاه د پاکوالي په باره کي د امام محمد رحمه الله پر قول چي درې سوه سلواغې دي فتویٰ ورکول کېدای شي او که نه؟

**جواب**: هو د امام محمد رحمه الله پر قول فتویٰ ورکول صحیح دي، ځکه چي په دې قول کي اساني ده، او فقهاوو پر دې باندي فتویٰ ورکړې ده، نو د اسانتیا د اختیارولو په وجه پردې باندي فتویٰ ورکول جائز دي ، ځکه چي الله جل جلاله فرمایلي دي: **يريد الله بكم اليسر ولايريد بكم العسر**.

همدارنګه الله جل جلاله فرمايي: **وماجعل عليكم فى الدين من حرج**.

**(سورة الحج آيت ۷۸)**

**ترجمه**: اونه يې دی ګرځولی پر تاسي باندي په دين کي هيڅ حرج (مشقت او تکليف).

همدارنګه الاشباه والنظائر وايي: **المشقة تجلب التيسر والاصل فيها قوله تعالى يريد الله بكم اليسر ولايريد بكم العسر وقوله تعالى وما جعل عليكم فى الدين من حرج وفى الحديث احب الدين الى الله تعالى الحنفية السمحه، قال العلماء يتخرج على هذه القاعدة جميع رخص الشرع** وتخفيفاته. **(الاشباه والنظائر صفحه۹۵_۹۶)**



## د سلواغې د راکښلو وروسته معلومه شوه چي څاه ته يو حيوان ورلوېدلی دی :

**پوښتنه**: يو څاه ته د نور وخت په شان يوه سلواغه د اوبو د راکښلو لپاره ورواچول شوه، د سلواغې د راکښلو وروسته دا معلومه شوه چي څاه ته يو حيوان ورلوېدلی دی او څاه مردار شوی دی، نو آيا دغه سلواغه پاکه بلل کېږي او که نا پاکه، او که چيري دغه سلواغه پر همدغه حال بل پاک څاه ته ورولوېږي آيا په دې سره هغه پاک څاه مرداريږي او که نه؟

**جواب**: وروره! ستاسي د سوال څخه دا معلومېږي چي د سلواغې د راکښلو وروسته دا معلومه شوه چي دغه څاه مردار شوی دی، نو له دې وجي د صاحبينو د قول سره سم چي مفتي بِهٖ قول دی هم دغه سلواغه او هم هغه اوبه چي د دغه څاه څخه د نجاست تر علم مخکي راکښل شوي دي پاکي دي، لکه درمختار چي ليکي: **وقالامن وقت العلم الخ فلايلزمهم شئ قبله.**

**(الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار فصل فى البئرجلد۱صفحه۲۰۲)**

يعني صاحبين رحمهما الله فرمايي چي د څاه د مردار والي حکم به د هغه وخت څخه ورکول کېدای شي، د کوم وخت څخه چي د څاه مردار والی معلوم شوی دی، او کومي اوبه چي مخکي را ايستل شوي دي هغه پاکي دي، نو له دې وجي سلواغه هم پاکه بلل کيږي.

**(فتاوی دارالعلوم ديوبندجلد ۱ صفحه ۱۳۲)**

## خنزير په څاه کي وژل او د هغه څاه حکم:

**پوښتنه**: څاه ته خنزير ورولوېدی، هلته په څاه کي دننه په چاړه ووهل شو او مړ کړل شو، د خنزير په وينو سره د څاه اوبه تکي سرې واوښتې او د څاه پر دېوالونو هم د خنزير د وينو څاڅکي ولوېدل، نو آيا ددغه څاه پاکېدل څه ډول کېدای شي؟ اوبله خبره داده چي ددغه څاه په اوبو سره کښت اوبه شوی ؤ ، نو آيا د هغه کښت غنم او ترکاري پاک دي او که مردار؟.

**جواب**: ورورہ! لومړی دي دغه خنزير د څاه څخه راوايستل شي او بيا دي ددغه څاه ټوله اوبه راوکښل شي، تردې وروسته دغه څاه پاک بلل کيږي او د مُفتى بِه قول له رويه د دووسوو سلواغو څخه نيولې تر دروسوو سلواغو پوري د اوبو راکښل د ټوله څاه د اوبو د راکښلو قائم مقام دی يعني پردې قول فتوىٰ شوې ده چي د ټول څاه د اوبو د راکښلو پر ځای دوه سوه يا درې سوه سلواغې راکښل کفايت کوي لکه ردالمحتار چي ليکي:

اذا وقعت نجاست الخ فى بئر دون القدر الكثير الخ ينزح كل مائها الذى كان فيها وقت الوقوع بعد اخراجه الخ يطهرالكل الخ وقيل يفتى بمائتين الى ثلثمائة وهذا ايسر (درمختار) قوله قيل الخ جزم به فى الكنز والملتقى وهومروى عن محمد وعليه الفتوىٰ خلاصة وتاتارخانيه عن النصاب وهوالمختار معراج عن العتابيه وجعله فى العناية عن الامام وهوالمختاروالايسر كما فى الاختيار افاد فى النهران المأتين واجبتان والمائة



الثالثة مندوبة. **(ردالمحتار جلدا صفحه۱۹۸)**

او ددې وروسته چي دوه سوه يا درې سوه سلواغې يې راوکښلې، د څاه ختي، ديوالونه، سلواغه او رسی ټول پاک دي لکه ردالمحتار چي ليکي:

ينزح كل مائها الخ يطهر الكل تبعا (درمختار) قوله يطهر الكل من الدلو والرشاء والبكرة ويدالمستقى تبعا بنجاسة البئر فتطهر بطهارتها.

**(ردالمحتار جلدا صفحه۱۹۶)**

او هغه کښت او پټي چي ددغه څاه اوبه ورکول شوي وي پاک دي ترکاري، غنم او هرڅه يې حلال دي ، دافرق نه کوي چي وکښت او پټي ته د څاه تر پاکېدلو مخکي اوبه ورکول شوي وي، او که د څاه تر پاکېدلو وروسته اوبه ورکول شوي وي لکه درمختار چي ليکي: العبرة للطاهر من تراب او ماء اختلطا به يفتى. **(الدرالمختار على هامش ردالمحتار فصل فى الاستنجاء جلدا صفحه۳۲۳) (فتاوىٰ دارالعلوم ديوبند جلدا صفحه۱۳۳)**

## هغه څاه چي هندوان او مسلمانان يو ځای اوبه ځيني راکاږي پاک بلل کيږي او که نه؟

**پوښتنه**: زمونږ په سيمه کي يو څاه دی، ددې څاه څخه هم هندوان او هم مسلمانان اوبه راکاږي، دلته خلکو ته شک ورپيدا شو چي آيا دغه څاه پاک دی او که نه. بيا مو د يو ملا څخه پوښتنه وکړه هغه ويل چي ناپاک دی او بل ملا بيا ويل چي دا څاه پاک بلل کيږي، نو اوس د شريعت له نظره صحيح

حکم څه شی دی؟.

**جواب**: ورور! د هغه ملاصاحب خبره صحیح ده چې څاه یې پاک بللی دی یعني پر دغه څاه د پاک حکم کیږي، ان الیقین لایزول بالشک.

(فتاویٰ دارالعلوم دیوبند جلدا صفحه۱۳۳)

## په یو لوښي کي بولي کول او بیا څاه ته وراچول:

**پوښتنه**: یو هلک په یو لوښي کي بولي وکړې او وڅاه ته یې وراچولې نو اوس په څو سلواغو راکښلو سره څاه پاکیږي؟

**جواب**: ورور! اوس پر دروسوو سلواغو باندي فتویٰ ده، د دروسوو سلواغو په راکښلو سره څاه او د څاه اوبه پاکي بلل کیږي

(فتاویٰ دارالعلوم دیوبند جلدا صفحه۱۳۴)

دا په هغه صورت کي چي څاه چینه داره وي او که چینه داره نه وي نو بیا د ټولو څاه د اوبو راکښل ضروري دي او په دي کي احتیاط دی او یا دي دوه داسي نفر او معتبره انسانان راولي چي د اوبو په اندازه کولو کي مهارت لري او بیا دي د دوی د اندازې سره سم اوبه راوکاږي، مفتیانو حضراتو ته په کار دي چي پر هغه ایسر او اسانه قول باندي فتویٰ ورکړي.

(فتاویٰ دارالعلوم دیوبند جلدا صفحه۱۳۴)

لکه ردالمحتار چي لیکي:

اذاوقعت نجاست الخ فی بئر دون القدر الکثیر الخ ینزح کل مائها الذی



کان فیها وقت الوقوع بعد اخراجه الخ یطهرالکل الخ وقیل یفتی بمائتین الی ثلثمائة وهذا ایسر (درمختار) قوله قیل الخ جزم به فی الکنز والملتقی وهومروی عن محمد وعلیه الفتویٰ خلاصة وتاتارخانیه عن النصاب وهوالمختار معراج عن العتابیة وجعله فی العنایة عن الامام وهوالمختاروالایسرکما فی الاختیار افاد فی النهران المأتین واجبتان والمائة الثالثة مندوبة. (ردالمحتار جلدا صفحه۱۹۸)

## د چرګي مرداري په څاه کي لوېدل:

**پوښتنه**: که چیري په څاه کي د چرګي مرداري ولوېدل نو څومره سلواغي راایستل په کار دي؟.

**جواب**: د چرګي مرداري چي څاه ته ولوېږي نو د دووسوو څخه نیولي تر دروسوو پوري به سلواغي راکاږي، او مخکي هغه مرداري راایستل په کار دي او که مرداري نه شي راایستل کېدلای نو څو ورځي دي د څاه څخه کار نه اخلي تر هغو پوري چي هغه مرداري ورژیږي او ختیه وګرځي

(فتاویٰ دارالعلوم دیوبند جلدا صفحه۱۳۵)

او همدارنګه ردالمحتار لیکي:

اذاوقعت نجاسة فی بئردون القدر الکثیرالخ ینزح کل مائها بعد اخراجه الا اذا تعذر کخشبة اوخرقة متنجسة فینزح الماء الی حدلایملأ نصف الدلو یطهر الکل تبعاالخ وقیل یفتی بمأتین الی ثلثمائة وهذا ایسر(درمختار)

واشار بقو له متنجسة الى انه لابد من اخراج عين النجاسة كلحم ميتة وخنزير أه قلت فلو تعذر ايضًا ففى القهستانى عن الجواهر لووقع عصفور فيها فعجزوا عن اخراجه فما دام فيها فنجسة فتترك مدة يعلم انه استحال وصار حماة. (ردالمحتار جلدا صفحه۱۹۶)

## چرګه څاه ته ولوېدل، مګر ژوندۍ راوختل:

**پوښتنه**: چرګه څاه ته ولوېدل، مګر هلته مړه نه شول. بلکې ژوندۍ راوختل نو آیا په دې سره څاه مردارېږي او که نه؟

**جواب**: د داسي چرګي حکم دادی چي احتیاطًا باید شل سلواغې اوبه راوکښل شي کما فی الردالمحتار: فینزح ادنی ماوردبه الشرع وذلک عشرون احتیاطًا. (ردالمحتار جلدا صفحه۱۹۷)

## په وینو لړلی حیوان وڅاه ته ورلوېدل:

**پوښتنه**: که چیرې یو حیوان په غشي وویشتل شو، ویني تر بهېدلې چي څاه ته ورلوېدی نو آیا دغه څاه پاک بلل کیږي او که ناپاک، او که نه دی پاک څومره سلواغې به راکاږي او بله پوښتنه داده څو څاڅکي وینه چي څاه ته ولویږي څاه ناپاک بلل کیږي؟

**جواب**: وروره! څاه ناپاک دی د دووسوو څخه نیولې تر دروسوو پوري سلواغې به راکاږي او د دوهمي پوښتني په جواب کي دي باید ووایم چي



بهېدونکې وینه مرداره ده که څه هم چي یو څاڅکی به وي، مګر لا شیان مرداروي (فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه ۱۳۶)

او همدارنګه درالمختار لیکي:

اذا وقعت نجاسة لیست بحیوان ولومخففة او قطرة بول او دم او ذنب فارة الخ فی بئر دون القدر الکثیر الخ ینزح کل مائها الذی کان فیها وقت الوقوع.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار جلداول صفحه ۱۹۴)

## په کوم څاه کي چي پسونه ولوېږي او هلته پسي ورژېږي، ددغه څاه د پاکولو طریقه:

**پوښتنه**: درې میاشتي مخکې زموږ په څاه کي دوه پسونه د لسو ورځو په موده کي یو په بل پسي ولوېدل او هلته مړه شول. خو دا چي دومره څوک نه وه چي د څاه څخه دي دغه مړه پسونه راوکاږي. څاه همداسي مردار پاته ؤ، خو اوس موږ غواړو چي دغه څاه بیرته پاک کړو نو اوس موږ حیران یو چي دغه څاه څه ډول پاک کړو؟

**جواب**: په داسي صورت کي فقهاوو لیکلي دي چي دغه څاه به تر دومره وخته پوري پرېږدئ یعني کار به نه ځیني اخلئ تر څو چي ددغه حیوانانو هډوکي وراسته شي او ختمي وګرځي. ددې کار موده فقهاوو شپږ میاشتي

تاكلي ده، تر دې وروسته ددغه څاه څخه ددرو سوو سلواغو د اوبو په را كښلو سره دغه څاه پاك بلل كيږي.

**(فتاوى دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ۱۳۷)**

## و څاه ته د خنزير لوېدل:

**پوښتنه**: د هندوانو په څاه كې خنزير ولوېدى او هلته مړ شو هغوى لومړى هغه مړ شوى خنزير راوكښى. وروسته يې اوبه ځيني راوكښلې نو آيا اوس د مسلمانانو لپاره ددغه څاه اوبه استعمالول روا دي كه نه؟

**جواب**: هو، كه چيرې د خنزير د راكښلو وروسته هندوانو ددغه څاه څخه د دوو سوو يا د درو سوو سلواغو په اندازه اوبه راكښلي وې نو بس دغه څاه پاك شو، د مسلمانانو لپاره ددغه څاه اوبه څښل او استعمالول صحيح دى لكه درمختار چې ليكي: وقيل يفتى بمأتين الى ثلثمأة وهذا ايسر.

**(الدرالمختار على هامش ردالمحتار**

**فصل فى البئر جلد اول صفحه ۱۹۸)**



# نجاستونه

## او د هغوى څخه د پاكى صورتونه

**پوښتنه**: د ناپاكو شيانو او د نجاست اقسام بيان كړئ؟

**جواب**: نجاست پر دوه ډوله دى: ۱- غليظه ۲- خفيفه

غليظه هر هغه شي ته ويل كيږي چې د انسان د بدن څخه د راوتلو په وجه سره اودس يا غسل واجبوي مثلاً دروند نجاست، تشي بولي، مني، مذي، ودي، ژړي اوبه، بهېدونكي وينه، نو، په ډكه خوله قى، حيض، نفاس. د استحاضې وينه، همدارنگه د كوچني هلك يا نجلى بولي هغه كه خوراك كوي او كه صرف شيدې خوري، همدارنگه شراب، د مردار شوي شي غوښې، د هغه غوړزگي، او د هغه پوست، د خره، غاترې او همدارنگه د نورو ټولو هغو حيواناتو بولي چې غوښې خوړل يې روا نه وي، همدارنگه د غوا، غوايي گاميښې او داسي نورو حيواناتو خوشايي، د بزو او پسو پچې.

مطلب د ټولو حيواناتو مرداري د چرگانو، بطې او هيلى مرداري، همدارنگه د ځيرونكو گردو حيواناتو ټوله مرداري دا ټوله هغه شيان دي چې

په غلیظه نجاست کي داخل دي، همدارنګه د خنزیر ټوله اجزاء غلیظه نجاست دی لکه تسهیل الضروري چي ددغو شیانو مختصر فهرست په دې ډول سره را اخیستی دی:

النجاسة نوعان: الغليظة والخفيفة:

**فالغليظة**: منها كل مايخرج من بدن الانسان مما يوجب خروجه الوضوء او الغسل كالغائط والبول والمنى والمذى والودى والقيح والصديد والقيىء إذا ملا الفم، وكذا دم الحيض والنفاس والاستحاضة، وكذا بول الصغير والصغيرة أكلا الطعام او لا، وكذا الخمر والدم المسفوح ولحم الميتة وشحمها وجلدها وعصبها، وكذا بول مالايؤكل لحمه، وكذا الروث وأخثاء البقرة ونجو الكلب وخرء الدجاج والبط والاوز، وكذا نجو سباع البهائم هذا كله نجاسة غليظة، وكذا الخنزير نجس مغلظ بجميع أجزائه.

**وأما الخفيفة**: فبول مايؤكل لحمه وبول الفرس وخرء طير لايؤكل لحمه. **(التسهيل الضروري جلد اول صفحه ۳۸)**

د هر هغه الوتونکو مرغانو مرداري چي غوښه يې حرامه وي او همدارنګه د هغو حيواناتو بولي چي د غوښو خوړل يې حلال وي لکه بزه، پسه، غوا، آس، او داسي نور دا ټول بيا په خفيفه نجاست کي داخل دي **(مراقی صفحه ۸۶)**



د چرګانو، هيلۍ او بطي څخه ماسېوا د نورو ټولو حلالو مرغانو مرداري پاک دي لکه د کوتري، چوغکي او داسي نورو ټولو حلالو مرغانو مرداري، همدارنګه د چوپرک بولي او مرداري هم پاک دي.

**(کبیری صفحه ۱۴۷ او ردالمحتار جلد اول صفحه ۳۲۸)**

## دغه مسئله په اسانه طريقه زده کړئ:

د انسان بولي او چکر او د ټولو حيواناتو غټه مرداري، او د حرامو حيواناتو بولي، او د انسان او حيواناتو بهېدونې وينه، شراب، د چرګانو او هيليو مرداري غليظه نجاست دی.

**پوښتنه**: نجاست خفيفه څه شي ته ويل کيږي؟

**جواب**: د حلالو حيواناتو بولي او د حرامو مرغانو مرداري خفيفه نجاست دی.

## د غليظه او خفيفه نجاست فرق په کوم شي کي ښکاره کيږي:

**پوښتنه**: د غليظه او خفيفه نجاست فرق په کوم شي کي ښکاره کيږي؟

**جواب**: وروره! ددغو دوو نجاستونو فرق د لمانځه په جواز او نه جواز کي ظاهر او رامنځ ته کيږي، مثلاً که چيري د لمونځ کوونکي پر بدن يا کالو د غليظه نجاست څخه د يوه درهم په اندازه او يا تر دې لږ موښتي وه نو ددغه

سرې لمونځ د کراهیت سره سره روا کیږي ، مګر خفیفه نجاست بیا داسې نه دی یعني خفیفه نجاست چې د لمونځ کوونکي پر کالو لګیدلی وي د هغه سره لمونځ صحیح دی، تر څو پورې چې څلورمې برخې د جامې ته نه وي رسیدلی

نو غلیظه نجاست چې تر یوه درهم زیات شی لمونځ نه ورسره صحیح کیږي او خفیفه نجاست چې بیا د کالو تر څلورمې برخې زیات شی لمونځ نه دی ورسره صحیح لکه تسهیل الضروري چې لیکي:

یظهر فرق بین الغلیظة والخفیفة فی جواز الصلاة معها، فان اصابت ثوب المصلی او بدنه نجاسة غلیظة مقدار الدرهم او مادونه جازت الصلاة معها مع الکراهة، وان اصابت النجاسة الخفیفة ثوب المصلی جازت الصلاة معها مالم تبلغ ربع الثوب، واذا زادت النجاسة الغلیظة علی الدرهم او الخفیفة علی ربع الثوب لم تجز الصلاة معها.

**(التسهیل الضروري جلداول صفحه ۳۸)**

## د درهم د اندازې تشریح:

**پوښتنه**: د درهم هغه اندازه چې عفوه ده یعني د څومره نجاست سره چې لمونځ صحیح کیږي، په دې هکله زموږ اختلاف دی، ځینې وایي چې د موجوده سکې مطابق یوه روپۍ اندازه ده، ځینې بیا وایي چې یوه اټانۍ ده، ځینې بیا بل څه وایي ځینې بل څه ، مطلب ددې صحیح اندازه موږ ته راوښیاست؟



**جواب**: وروره! لومړی خو باید تا ته دا معلومه وي چې نجاست پر دوه ډوله دی: ۱- نجاست غلیظه. ۲- نجاست خفیفه.

د نجاست غلیظه یو درهم معاف دی او د نجاست خفیفه د څلورمې برخې د جامې کم معاف دی.

بله خبره داده چې نجاست غلیظه پر دوه ډوله دی یو هغه دی چې نرم وي لکه د انسان بولې، شراب، وینه او داسې نور او بل هغه قسم دی چې نرم نه وي یعني سخت نجاست وي لکه د انسان یا حیوان دروند نجاست نو باید ووایم چې د یوه درهم په اندازه غلیظه نجاست معاف دی او اندازه ددې په کثیفه یعني سخت نجاست کې چې صورت ولري وزن د مثقال یعني څلورنیمې ماشې دی لکه درمختار چې لیکي:

وعفی الشارع عن قدر درهم ومثقال عشرون قیراطا فی نجس کثیف له جرم. **(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۹۱، ۲۹۳)**

او په نرم او رقیقه نجاست کې په اندازه د ژوروالې د ورغوي دی چې تقریبًا د یوې روپۍ برابر دی او په فتاوی شامي کې راغلي دي چې ملامسکین ددې دغه تشریح فرمایلې ده چې په موټ یعني لپه کې اوبه راواخلئ او وروسته موټ یعني لاس خلاص ونیسئ، نو په دې صورت کې چې په ورغوي کې څومره اندازه اوبه پاتې شي، هغه اندازه د مقعر کف ده او همدا مراد دي، نو دا خو ښکاره خبره ده چې دغه اندازه د یوې روپۍ سره

برابريږي، که مو اطمينان نه کيږي دا اندازه تجربه هم کړئ. قال ملا مسکين وطريق معرفته ان تغرف الماء باليد ثم تبسط فما بقى فهو مقدار الكف الخ. (ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۹۳)

## غليظه نجاست او خفيفه نجاست په خومره اندازه کي معاف دی:

**پوښتنه**: غليظه نجاست په خومره اندازه کي معاف دی؟

**جواب**: غليظه نجاست که خټه او جسم والا وي، لکه مرداري. نو هغه د ثلورنيمي ماشې په اندازه معاف دی، او که نرم نجاست وي لکه شراب. بولي. نو هغه د انګريزي يوې روپۍ په اندازه معاف دی. د معاف کېدلو مطلب دادی چي که دومره اندازه نجاست پر بدن يا کالو باندي لګېدلی وي، او لمونځ وکړي، نو لمونځ يې صحيح کيږي. مګر مکروه کيږي. او که قصداً دومره نجاست لګېدلی ؤ نو لمونځ په هغه سره بيخي روا نه دی

**پوښتنه**: نجاست خفيفه په خومره اندازه کي معاف دی؟

**جواب**: خفيفه نجاست که د جامې تر ثلورمي برخي او يا د اندام تر ثلورمي برخي کم وي نو معاف دی

(تعليم الاسلام د مفتی محمد کفايت الله صاحب رحمه الله)

همدارنګه بحرالرائق د لومړي جلد په ۲۲۸ صفحه کي ليکي چي دومره



قدر نجاست چي معاف دی که چيري د يو چا پر کالو لګېدلی وي او دی لمونځ وکړي، لمونځ يې صحيح دی مګر که (دی يې ووينې پاک يې نه کړي) او لمونځ ورسره وکړي، نو په دې صورت کي بيا لمونځ صحيح دی مګر مکروه دی او دا ډول کار کول ډېره بده خبره ده او که په قصده سره دومره نجاست چي معاف دی پوري وموښل شي او لمونځ وشي نو ددې سره خو د مفتي کفايت الله صاحب په خبره بيخي لمونځ يې نه صحيح کيږي

ستاسي دي فکر وي چي په دې بحث کي د معافوالي څخه مراد دادی چي لمونځ يې صحيح کيږي، ددې څخه دا مطلب نه دی چي دومره نجاست مردار نه دی، بلکي که دومره نجاست د خوراک، يو شي ته ورولويږي ټوله شی مرداريږي، ځکه چي مردار دی.

**مسئله**: نجاست غليظه که د اوبو و يو لوښي ته ورولويږي ددې لوښي ټوله اوبه نجاست غليظه ګرځي او که خفيفه نجاست ورولويږي په دې صورت کي بيا ټوله اوبه نجاست خفيفه ګرځي، په دې کي د لږي مرداري او ډېري مرداري فرق نشته (بهشتي زيور)

## خومره نجاست چي پر کالو يا بدن موښتی وي لمونځ ورسره صحيح کيږي:

**پوښتنه**: آيا د يو چا و کالو ته د مردارو څاڅکو په ورغورځېدلو سره کالي مرداريږي او که نه، يوه ورځ يوه ملا ويل چي غليظه نجاست که تر يوه

درهم کم ؤ پرېولل نه غواړي، آيا ددغه ملا خبره صحيح ده او که غلطه؟

**جواب**: هو وروره! غليظه نجاست چي تر يوه درهم زيات پر کالو يا بدن و موښتلي مرداريږي او خفيفه نجاست چي څلورمه د جامې ولړل شي مرداريږي. نو که چيري په نافهمۍ کي غليظه نجاست تر يوه درهم کم او يا خفيفه نجاست تر څلورمي د جامې کم ولړل شي او لمونځ ورسره وشي نو بيا ددغه لمانځه راګرځېدلو ته ضرورت نشته او که چيري تر دغه اندازې زيات ؤ د لمانځه راګرځول ضروري دي، ددې څخه دا مطلب وا نه خلئ چي نجاست که چيري لږ وي پرېولل يې نه دي په کار، بلکي نجاست که هر څومره لږ وي پرېولل يې ضروري دي **(فتاوى يوسفيه جلد۲ صفحه ۸۳)**

## پر کالو يا بدن د نجاست د پاکولو طريقه:

**پوښتنه**: چي کله نجاست پر کالو او يا بدن ولګيږي د هغه د پاکولو څه طريقه ده؟

**جواب**: وروره نجاست پر دوه ډوله دي يو هغه نجاست دی چي ليدل کيږي لکه ويني، د انسان غټه مرداري او داسي نور ددې د پاکېدلو طريقه داده چي په پاکو اوبو او يا د اوبو څخه ماسېوا په يو بل بهېدونکي پاک شي سره لکه سرکه، د ګل ګلاب اوبه او يا داسي نورو شيانو په پرېوللو سره دي دغه ليدونکی نجاست پرېولي، تر هغو چي د نجاست ذات له منځه ولاړشي.

دوهم ډول هغه نجاست دی چي په سترګو نه ليدل کيږي يعني د پاکو اوبو سره يې فرق نه کيږي لکه بولي او يا مرداري اوبه، ددې د پاکېدلو بيا دا



طريقه ده چي تر هغو دې پرېولي چي دده دا غالب ګمان شي چي اوس نو پاک شو، فقهاوو د اسانۍ لپاره درې واري والی مقرر کړی دی، دغه مسئله تسهيل الضروري په دې الفاظو سره را اخلي:

اذا كانت النجاسة مرئية فطريق تطهير الثوب او البدن ان يزال عينها بالغسل بماء طاهر او بمائع طاهر غير الماء كالخل وماء الورد، وان كانت غير مرئية كالبول والماء النجس فطريق التطهير ان يغسل حتى يغلب على ظن الغاسل انه قد طهر.

**(التسهيل الضروري جلد اول صفحه ۳۹)**

## آيا په شيدو سره يو شي پاکېدای شي او که نه:

**پوښتنه**: آيا په شيدو يا سرکې سره يو شي پاکېدای شي او که نه؟

**جواب**: هر هغه شی چي د اوبو په شان نرم او پاک وي، په هغه شي سره مرداري پاکول صحيح ده او که يې د ګل ګلاب په اوبو سره يا عرق ګاوزبان يا په بل عرق سره يا په سرکه سره پرېولي نوپه دې سره هم شی پاکيږي، مګر هغه شيان چي په هغو کي غوړځګي وجود ولري لکه تېل، شيدې او داسي نور شيان که يو شی په پرېولل شي نو شی نه په پاکيږي.

**(مجمع جلد اول صفحه ۵۸)**

## که چیري لیدونکی نجاست لیري کړي مګر اثر یې لا پاته وي د هغه د پاکېدلو طریقه څه ډول ده:

**پوښتنه**: تاسي مخکي وویل چي یو هغه نجاست دی چي لیدل کیږي. ددې ډول د نجاست مو دا ډول طریقه بیان کړل چي دومره یې پرېولي چي د نجاست ذات له منځه ولاړ شي اوس خبره داده چي هغه ورځ زما کالي په یو مردار شي ولړل شول، درې واري مي پرېولل، مرداري مي ځیني پاکه کړل. مګر پر جامه باندي مي لا د مرداری اثر تر اوسه پوري باقي دی. نو اوس ددې د پاکېدلو څه طریقه ده؟

**جواب**: وروره کله چي د نجاست صورت یعني ذات له منځ ولاړ شي مګر اثر یې لا باقي وي یعني رنګ یا بوی یې لا پاته وي نو دا د پاکوالي لپاره تاواني نه دی یعني پر دې باندي د کالو د مرداروالي حکم نه شي کېدای. وروره ستا کالي نور پاک دي هیڅ شک مه دراچوه لکه تسهیل الضروري چي لیکي اذا زالت عین النجاسة بالغسل لایضر بقاء اثرها الذی یشق ازالته کالریح واللون. (التسهیل الضروري جلد اول صفحه ۳۹)

## د نجاستونو د پاکېدلو نوري لاري:

**پوښتنه**: آیا د نجاستونو د پاکېدلو لپاره بې له پرېوللو نوري لاري هم



شته او که نه؟

**جواب**: هو وروره! ددې لپاره نوري لاري هم شته چي فقهاوو په دې هکله ډېر وضاحت کړی دی چي ځیني یې په لاندي ډول دي:

۱- که چیري موزې ته صورت لرونکی نجاست وررسېدی. نو چي کله وچ شي په دې ډول دې پر مځکه وموږي یا دې په بل شي وګروي چي نجاست یې له منځه ولاړ شي، چي داسي یې وکړل، بس په دغو موزو کي لمونځ صحیح دی

۲- که چیري کالو ته مني وررسېدل نو که لانده وه بې له پرېوللو نه پاکیږي او که پر کالو وچ شول وروسته تر مږلو په دغو کالو کي لمونځ روا دی

۳- که چیري ومځکي ته نجاست وررسېدی ، وروسته مځکه وچه شول او د نجاست اثر له منځه ولاړی، نو لمونځ ددغه نجاست پر ځای روا دی. مګر تیمم په دغه ځای نه دی روا ، خو که یې چیري دغه ځای پرېولی او نجاست یې زائل شو، بیا لمونځ او تیمم دواړه پر جائز دي

٤- اوم پوست په رنګېدلو پاکیږي، وروسته هم لمونځ پر صحیح کیږي او که چیري ددغه پوست څخه یو لوښی جوړ شي او اوبه پکښې واچول شي په هغه هم غسل او هم اودس په روا دی، مګر د خنزیر پوست هیڅکله نه پاکیږي او همدارنګه د انسان د بدن پوست د انسانیت د احترام له وجي یې استعمال ناروا اوحرام دی لکه فقهاء چي لیکي: و اذا دبغ الاهاب فقد طهر وجازت الصلاة علیه، وکذا جاز الوضوء من الظرف الذی صنع منه، ولا یطهر

جلد الخنزير ابدا، وجلد الادمى لايجوز استعمال جلده تكريما له.

**(التسهيل الضروري جلد اول صفحه ۳۹)**

ددغو شیانو د هر یوه تفصیل د خپلو حوالو سره لاندي کتلای شی:

## د موزې د پاکېدلو بله طریقه:

**پوښتنه**: آیا موزه بې له پرېوللو په بل ډول هم پاکېدای شي؟

**جواب**: که چیري موزې ته صورت لرونکی نجاست وررسېدی. نو چي کله وچ شي په دې ډول دې پر مځکه وموږي یا دې په بل شي وګروي چي نجاست یې له منځه ولاړ شي، چي داسي یې وکړل، بس په دغو موزو کي لمونځ صحیح دی.

په دې شرط چي پر مځکه په مږلو یا په ګرولو سره د نجاست جسم او د نجاست اثر له منځه ولاړ شي لکه فقهاء چي لیکي:

اذا اصابت الخفً نجاسة لها جرم فجفت فدلكه بالارض بحيث زالت النجاسة جازت الصلوة فيه.

**(التسهيل الضرورى جلد اول صفحه ۳۹)**

مګر که دغه صورت لرونکې مرداري پر چپلکي یا د څرمني څخه پر جوړو شوو موزو باندي ولګیږي او لنده وي ، نو بې له پرېوللو نه پاکیږي، مګر که یې دومره ډېره وموږي چي مرداري یې ولاړه شي او هیڅ علامه یې پاته نه شي هم پاکیږي **(ردالمحتار جلد اول صفحه ۳۱۹)**



که چیري وموزې یا چپلکي ته داسي نجاست وررسېدی چي جسم او صورت یې نه درلودی لکه بولي او شراب ددې پاکېدل بې له پرېوللو نه شي کېدای یعني په موږلو سره دغه شیان نه پاکیږي ، بلکي پرېولل یې ضروري دي **(مجمع الانهر جلد اول صفحه ۵۸)**

## پر بدن او جامو د نجاست د پاکېدلو طریقه:

**پوښتنه**: که چیري پر بدن یا کالو باندي صورت لرونکی نجاست ولګېدی او وچ شو آیا دا هم د موزو په شان په مښلو او ګرولو پاکېدای شي؟

**جواب**: وروره! بدن او جامه د موزو په ډول نه ده یعني بدن او کالي یوازي په پرېوللو سره پاکېدای شي که نجاست صورت لرونکی وي او که نه. په بله طریقه سره نه پاکیږي، (مګر مني که پر بدن یا کالو ولګیږي او وچ شي په مښلو او ګرولو سره هم پاکېدای شي، په دې شرط چي تر استنجاء وهلو وروسته انزال شوی وي) **(ردالمحتار جلد اول صفحه ۳۱۸)**

## د منيو د پاکېدلو بله طریقه:

**پوښتنه**: آیا مني بې له پرېوللو په بل شي سره هم پاکېدای شي؟

**جواب**: که چیري کالو ته مني وررسېدل نو که لانده وه بې له پرېوللو نه پاکیږي او که پر کالو وچ شول ، وروسته تر مږلو په دغو کالو کي لمونځ روا دی، لکه فقهاء چي لیکي: و إذا أصاب الثوب المنىُّ فإن كان رطبا

لایطهر الثوب إلا بالغسل، وإن جف علی الثوب أجزأه فیه الفرک بشرط أن لایختلط بالبول. (**التسهیل الضروري جلداول صفحه ۳۹**)

## د چاقو، چړې، توري، هنداري او اوسپنې د پاکېدلو بله طریقه:

**پوښتنه**: د چاقو، چړې، توري، هنداري همدارنګه د اوسپنې یا د سپینو او سرو زرو، یا د میسو، المونیم لوښي او همدارنګه نور شیان چې مردار شي آیا بې له پرېوللو په بل ډول هم پاکېدای شي او که نه؟

**جواب**: د اوسپنې پر شیانو چې زنګ نه وي، صاف وي. او د سپینو او سرو زرو، میسو، المونیم، پیتل لوښي او داسي نور شیان... او د سینې څخه جوړ شوي شیان، د فیل غاښونه او د هډوکو څخه جوړ شوي شیان او چیني لوښي دا ټول شیان چې صاف وي او نقش شوي نه وي، نو که په همدې ډول مږلو سره یې د نجاست اثر ولاړ شي، نو پاک ګڼل کیږي.

مګر که یې دا ډول نقشونه درلودل چې نجاست پکښې پاتېدی. نو په هغه صورت کې بیا بې له پرېوللو نه پاکیږي.

(**شرح التنویر جلد اول صفحه ۳۱۹**)

همدارنګه تسهیل الضروري لیکي: اذا أصابت المراة أو السیف النجاسة یجزی مسحهما. (**التسهیل الضروري جلداول صفحه ۳۹**)



**پوښتنه**: د نقش څخه مراد څه شی دی؟

**جواب**: یعني پر دغو شیانو باید داسې نقشونه نه وي د کوم له امله چې ددغو شیانو جسم پورته کښته وي. ولې چې په داسې نقشونو کې د موږلو وروسته هم د نجاست د باقي پاتېدلو امکان شته. مګر هو که صرف د رنګ نقش وي نو دا شیان بیا په موږلو سره پاکیږي او دغه د رنګ نقش تاوان نه ورته رسوي. (**تعلیم الاسلام**)

## د مځکې د پاکېدلو طریقه:

**پوښتنه**: که پر مځکه نجاست مثلاً بولې. شراب یا داسې بل شی توی شي څه ډول پاکیږي؟

**جواب**: که چیرې پر مځکه نجاست توی شي. وروسته مځکه وچه شي او د نجاست اثر له منځه ولاړ شي. نو لمونځ ددغه نجاست پر ځای روا دی. مګر تیمم بیا پر دغه ځای نه دی روا. خو که یې چیرې دغه ځای پرېولی او نجاست یې په دې ډول زائل شو په هغه صورت کې بیا لمونځ او تیمم دواړه روا دی لکه فقهاء چې لیکي

وإن أصابت الارض نجاسة فجفَّت وذهب أثرها جازت الصلاة علی مکانها، لکن لایجوز التیمم من موضعها، ولو غُسلت الارض وزالت النجاسة جاز الامران. (**التسهیل الضروري جلد اول صفحه ۳۹**)

## د کور، مسجد یا بل ځای د پخو خښتو ځخه د جوړ شوي مردار شوي فرش یا مردار شوي دیوال د پاکیدلو طریقه:

**پوښتنه**: که چیري خښتې یا ډبري مرداري شي ددې د پاکولو څه طریقه ده؟

**جواب**: کومې خښتې یا ډبري چې په ګچو، سمینټو یا ختو سره په مځکه کي داسي ښخي شوي وي چې بې له کیندلو او بې له د مځکي د راخرلو څخه هغه د مځکي څخه نه راجلا کیږي نو ددا ډول خښتو حکم هم د مځکي په شان دی چې وروسته تر وچیدلو اود مرداري د داغ او بد بویي تر ورکیدلو وروسته پاکي بلل کیږي. (**شرح التنویر جلد اول صفحه ۳۱۹، ۳۲۰**)

او کومې خښتې چې په ګچو، ختو او سمینټو په مځکه پوري نه وي لګیدلي، هغه په وچیدلو سره نه پاکیږي، بلکي پرېولل یې ضروري دي.

(**شرح التنویر جلد اول صفحه ۳۱۹، ۳۲۰**)

## کوم شیان چې په پرېوللو کي نه نښتیږل کیږي، د هغو شیانو د پاکولو طریقه:

**پوښتنه**: هغه شیان چې د پرېوللو په وخت کي نه نښتیږل کیږي لکه



غالي، یا داسي نور شیان د هغو د پاکیدلو طریقه څه ډول ده؟

**جواب**: داسي شیان چې نښتیږل یې ناممکن یا مشکل وي، د هغوی د پاکیدلو طریقه داده چې یو وار یې پرېولي او بیا یې پرېږدي تر څو چې څاڅکي یې ختم شي، دوهم وار یې بیا پرېولي او بیا یې کښېږدي تر څو چې د اوبو څاڅکي یې ودریږي، او دریم وار یې بیا پرېولي بس اوس نو پاک شو. مګر په پرېوللو کي تر ممکنه حده پوري موږل ضروري دي، تر څو چې د نجاست په ویستلو کي تر خپله وسه کوښښ وشي. (**تعلیم الاسلام**)

## د لړګو یا د لړګو څخه د جوړ شوو شیانو د پاکولو طریقه:

**پوښتنه**: که چیري لرګي مردار شول او یا د لرګو څخه جوړ شوي لوښي مردار شول، اوس موږ غواړو چې پاک یې کړو د داسي شیانو د پاکولو څه طریقه ده؟

**جواب**: که چیري داسي شی مردار شي چې هغه نه نښتیږل کیږي، لکه تخته، بوریا، زیورات، خاوره، چینایي لوښی، بوتل، چپلکي او داسي نور ...... د دوی د پاکولو طریقه داده چې یو وار یې پرېولي بیا یې تر هغه وخته پرېږدي چې څاڅکي څڅېدل یې بند شي، وروسته یې بیا پرېولي او بیا یې تر هغه وخته پوري پرېږدي چې څاڅکي څڅېدل یې بند شي، وروسته یې بیا پرېولي په دغه طریقه سره چې یې درې واره پرېولي، نو بس دغه شی

نور پاک بلل کيږي. (**مجمع جلد اول صفحه ۶۰**)

## نجس شی چي وسوځل شي آيا د هغه ايرې پاکي دي او که نه؟

**پوښتنه**: نجس شی لکه خوشايي، چي وسوځل شي او ايرې شي نو آيا د هغه ايرې پاکي دي او که ناپاکي؟

**جواب**: ناپاکه شی که وسوځل شي او ايرې شي نو د هغه ايرې پاکي دي (**تعليم الاسلام**)

## د هغه غوړو د پاکېدلو طريقه چي موږک يا بل شی پکښي ولويږي:

**پوښتنه**: که په غوړو کي موږک ولويږي او مړ شي. نو د دې د پاکولو څه حکم دی؟

**جواب**: که غوړي يخی وي، نو موږک او د هغه شاوخوا غوړي ليري کړه پاته غوړي پاک دي او که غوړي ويلي وه، نو ټول غوړي ناپاک دي

**پوښتنه**: ناپاکه ويلي غوړي يا روغن څه ډول پاکيږي؟

**جواب**: په ناپاکه غوړو يا روغنو کي د هغو په اندازه اوبه واچوه، جوش کړه، بيا چي کله غوړي يا روغن د اوبو پر سرراشي غوړي ورڅخه راوکاږه،



او درې واره د غسي عمل وکړه، نو په دې ډول عمل سره هغه غوړي او روغن پاکيږي (**تعليم الاسلام**)

## پر مځکه د ولاړو وښو د پاکولو طريقه:

**پوښتنه**: که چيري واښه په مځکه کي ولاړ وه، مرداري پر وپاشل شول نو څه ډول پاکېدای شي؟

**جواب**: پر مځکه ولاړ واښه يا شپيشتي هم په وچېدلو سره او د مرداری د علامو او د بد بويي په تللو سره پاکيږي او که واښه ريبلي وه، بې له پرېولو نه پاکيږي (**شرح التنوير جلد اول صفحه ۳۱۹، ۳۲۰**)

## مردار چاکو او چاړه په اور کي په اچولو سره هم پاکېدای شي:

**پوښتنه**: يو چا ويل چي که چاکو يا چاړه په اور کي واچول شي، په دې سره هم دغه شيان پاکېدای شي آيا دغه خبره صحيح ده؟

**جواب**: هو وروره! ناپاکه چاکو، چاړه او يا د خاورو او ژړو لوښي او دغسي د نورو شيانو لوښي که په اور کي واچول شي، بس په دې سره دغه لوښي پاکيږي. (**منية المصلي صفحه ۶۵**)

## د خاورینو لوښو د پاکېدلو طریقه:

**پوښتنه:** که اوم خاورین لوښي ته مرداري ورولوېدل او ښه يې جذب کړل ، ددې د پاکولو څه طریقه ده؟

**جواب:** که خاورین لوښی مردار شول او مرداري يې جذب کړل ، نو دغه لوښی په صرف پرېوللو سره نه پاکېږي. بلکي د اوبو څخه دې ډک کړي چي د مرداری اثر په اوبو کي راشي، نو دي اوبه توی کړي ، بیا دي لوښی ډک کړي بیا دې چپه کړي ، دغه سلسله دي تر هغه وخته جاري وساتي چي د نجاست او مرداري نه نام او نښان پاته شي او نه يې رنګ او بد بویي پاته شي ، نو وروسته تر دې دغه خاورین لوښی پاک بلل کېږي

**(منیة المصلي صفحه ۶۸)**

## د مردارو خټو څخه د اوبوڅښلو لوښي جوړول:

**پوښتنه:** د مردارو خټو څخه کلال د اوبوڅښلو لپاره لوښي جوړ کړل، یو ملا وویل چي دغه لوښي مردار دي آیا ددغه ملا دغه خبره صحیح ده؟

**جواب:** که د مردارو خټو څخه کلال یعني د خاورینو لوښو پخوونکي لوښي جوړ کړل، نو تر څو چي په اور پاخه شوي نه وي دغه لوښي مردار دي او څه وخت چي په اور پاخه شي پاک بلل کېږي. **(فتاوی هندیه جلد اول صفحه ۲۷، اودرمختار جلد اول صفحه ۳۲۵)**



## په مردار رنګ باندي د جامې د لړل کېدلو څخه وروسته ددې د پاکېدلو طریقه:

**پوښتنه:** په مردار رنګ کي رنګرېز جامه ورنګوله، نو اوس ددې د پاکېدلو طریقه څه ډول ده؟

**جواب:** که یو چاپه مردار رنګ کي جامه ورنګوله نو د پاکولو صورت يې دادی چي تر هغه وخته دي جامه پرېولي چي اوبه يې صافي شي ، تر دې وروسته نو جامه او کالي پاک دي دافرق نه کوي که د جامې څخه رنګ ولاړ شي او که لا پاته وي **(درمختار جلد اول صفحه ۳۳۹، و فتاوی عالمګیري جلد اول صفحه ۲۶)**

## آیا پر هغه مځکه چي په خوشیو لړلې وي لمونځ روا دی او که نه؟

**پوښتنه:** آیا پر هغه مځکه چي په خوشیو لړې وي، لمونځ روا دی او که نه؟

**جواب:** پر هغه مځکه چي خوشایي موښتي وي یعني په مځکه پوري مونښل شوي وي ، مځکه په لړل شوې وي یا خاوري او خوشایي سره ګډ وي نو که بل پاک شی پر دغه مځکه ونه غوړول شي ، لمونځ پر دغه مځکه روا نه دی **(بحرالرائق جلد اول صفحه ۲۶۸، وکبیري صفحه ۱۷۲)**

## په لندو پښو پر مرداره مځکه تېرېدل:

**پوښتنه**: که يوه سړي اودس تازه کړی پښې يې لندې وي پر مرداره مځکه تېر شو، او پر مځکه يې د لندو پښو علامې هم پاتې شوې نو آيا په دې سره د دغه سړي پښې مرداريږي او که نه؟

**جواب**: که يو سړی په لندو پښو پر ناپاکه مځکه روان شو او قدمونه يې پر مځکه معلوم شول، نو په دې کار سره د سړي پښې نه مرداريږي، لېکن که د پښو په اوبو سره مځکه دومره لنده شول چې د مځکې يو څه خاوره په پښو پورې ومونښتل ،نو په دې صورت کې يې بيا پښې ناپاکه او مرداري شوې.

**(منية المصلي صفحه ٦٣)**

## په مرداره بستره کې بيدېدل او هلته خوله کول:

**پوښتنه**: يو سړی په مرداره بستره کې بيده شو ، هلته يې خوله وکړل آيا په دې سره د دغه سړي کالي او بدن مرداريږي که نه؟

**جواب**: که چيري يو سړی پر ناپاکه جامه او يا ناپاکو کالو کې بيده شو او په دې وخت کې يې خوله وکړل او د خولې څخه يې هغه جامه لنده شول، نو د دغه سړي حکم هم د مځکې سړي په شان دی يعني بدن او جامه د دغه سړي پاک بلل کيږي او که دومره خوله دده څخه ولاړه شي چې هغه جامه چې دی پر



بيده دی دومره لنده شي چې د هغې څخه څه مرداري دده پر بدن يا کالو ولګيږي نو بيا يې بدن او کالي مردار دي. **(منية المصلي صفحه ٦٣)**

## په مردارو نکروزو لاسونه سره کول:

**پوښتنه**: که يو چا په مردارو نکروزو خپل لاسونه ولړل، سهار يې لاسونه سره وه، وروسته يې لاسونه درې واري پرېولل. آيا اوس يې لاسونه پاک بلل کيږي او که مردار؟

**جواب**: که يې ناپاکه يعني مرداري نکريزي پر لاسونو او پښو ولګولې او بيا يې درې واره خپل لاسونه او پښې ښه پرېوللې، نو پښې او لاسونه يې پاک بلل کيږي او د نکروزو رنګ ختمول ضروري نه دی.

**(منية المصلي صفحه ٦٢، ردالمحتار جلد اول صفحه ٣٣٩)**

## که چيري د يو چا څخه باد پرې شي او پرتوګ يې لږ په لوند شي آيا په دې سره کالي مرداريږي او که نه:

**پوښتنه**: که چيري د يو چا څخه باد پرې شي يعني د شا د خوا څخه يې هوا راووزي او نژدې جامه يې په لنده شي، نو آيا په دې سره د دغه سړي پرتوګ مردار شو او که نه؟

**جواب**: چي د شا د خوا شخه هوا ووزي او ورنژدي جامه لږ لنده کړي، نو په دې سره دغه جامه نه مرداريږي يعني خبنتګ يې نه مرداريږي.

(ردالمحتار جلد اول صفحه ۳۳۴)

## که د لرګي د تختې يو مخ مردار ؤ آيا پر بل مخ يې لمونځ روا دی او که نه؟

**پوښتنه**: که د لرګي د تختې يو مخ مردار ؤ آيا ددغي تختې پرهغه بل مخ لمونځ صحيح کيږي او که نه؟

**جواب**: که د لرګي د تختې يو مخ مردار وي او بل مخ يې مردارنه وي نو که دومره پنډه تخته وي چي په مابين کي اره کېدای شي نو دغه سړی يې واړوي او پر هغه پاک مخ يې لمونځ وکړي روا دی او که دومره نری وه چي اره کېدای نه شوای، نو په دې صورت کي پر دغه پاک مخ يې لمونځ کول روا نه دی. (غنية المستملي صفحه ۲۰۰)

## د ماهي او غوماشي وينه مرداره نه ده:

**پوښتنه**: آيا د ماهي وينه مرداره ده او که نه؟

**جواب**: د ماهي وينه مرداره نه ده او که پر يو ځای ولګيږي نو پروا نه لري، دغه رنګه د مچ، منګوړ او غوماشي وينه هم مرداره نه ده.

(مجمع الانهر جلد اول صفحه ۶۳)



## داسي مرداري چي رنګ يا بوی ولري په څو واري پرېوللو سره پاکيږي:

**پوښتنه**: داسي مرداري چي رنګ يا بوی ولري لکه وينه يا غټه مرداري په څو واري پرېوللو سره پاکيږي؟

**جواب**: که چيري داسي مرداري چي په سترګو ليدل کيږي پر يو شي باندي ولګيږي لکه غټه مرداري او وينه نو تر هغه وخته دې مينځي چي تر څو يې مرداري ورکه شي او داغونه يې هم ورک شي چي په هر څو واره پرېوللو سره ورکيږي هغومره واره يې بايد پرېولي، نو هر کله چي دغه مرداري ختمه شي نو هغه شی که جامه وي يا بل شی پاک دی او که دغه قسم مرداري پر بدن موښتې وي د هغه هم دغه حکم دی البته که په اول وار سره مرداري ختم شول نو دوه واره نور يې پرېولل ښه کار دی غرض دادی چي درې واره پوره کول يې ښه کار دی. (مراقی الفلاح صفحه ۹۱)

که داسي مرداري وه چي په ډېرو وارو پرېوللو يې داغ يا بوی نه تلی نو بيا هم جامه پاکه ده د صابن په استعمال سره د بد بويي يا داغ ليري کول ضروري نه دي. (مراقی الفلاح صفحه ۹۱)

## د کواړي کورتۍ او جانکټان د شريعت له رويه پاک کېدل کيږي پرېولل يې ضروري نه دي:

**پوښتنه**: زموږ وسيمي ته د اروپايي ليلام شوي مستعمل شوي جراېي، کورتۍ، کوټونه، جانکټان، توسان او داسي نور ډېر شيان راځي، يوه ورځ زموږ د مسجد امام وويل چي تر پرېولو مخکي دغه د کواړي شيان استعمالول روا نه دي يعني ددغو شيانو سره لمونځ نه صحيح کيږي، آيا ددغه امام خبره صحيح ده او که نه؟

**جواب**: ستاسي د مسجد امام چي څه ويلي دي غلط يې ويلي دي، تاسي ته په کار دي چي د هر ملا او هر مولوي څخه د مسئلې پوښتني ونه کړئ، تر څو چي دده عالم والى او پوهوالى درته معلوم نه وي، فقهاوو ليکلي دي چي د کواړي شيان که څه هم چي کفارو اغوستي وي تر څو چي ظاهري نجاست نه وي پر موښتى پرېولل يې واجب نه دي، خو که يو سړى يې د احتياط په وجه پرېولي ښه کار دى (كفايت المفتى جلد٢ صفحه ٣٢٥)

همدارنګه ردالمحتار ليکي:

وفى التتارخانيه، من شک فى انائه او ثوبه او بدنه اصابته النجاسة اولافهو طاهر مالم يستيقن..... وكذا ما تتخذه اهل الشرک او الجهلة من المسلمين كالسمن والخبز والاطعمة والثياب.

(ردالمحتار جلد اول صفحه ١٥١)



## آيا کفارو ته د حرامو غوښو د پخولو لپاره يو مسلمان خپل ديګونه ورکولای شي او که نه؟

**پوښتنه**: که چيري مشرکانو او کافرانو د خنزير غوښي پخولي نو آيا يو مسلمان لپاره دا روا دي چي خپل ديګونه يا نور لوښي ورکړي؟

**جواب**: هو، ورروه! مسلمان کولای شي چي خپل ديګونه او نور شيان مشرکانو او کافرانو ته هم په ډول د عاريتًا او هم په ډول د کرايې ورکولای شي، نو که چيري کفارو په دغو ديګونو کي د خنزير غوښي پخې کړې، نو پسله پرېوللو دغه شيان ټول پاک بلل کيږي، هيڅ شک مه دراچوئ

(كفايت المفتى جلد٢ صفحه ٣٢٦)

همدارنګه فتاوى عالمګيري ليکي:

فاما اذا علم فانه لايجوز ان يشرب وياكل منها قبل الغسل.

(فتاوى عالمگيرى جلد٥ صفحه ٣٤٧)

## آيا د کافر په لاس په پرېولل شوو کالو کي لمونځ روا دى او که نه:

**پوښتنه**: که چيري يو غير مسلم د مسلمان سړي کالي ورپرېولل آيا په دغو کالو کي لمونځ روا دى او که نه؟

**جواب**: هو، وروره! د کفارو په لاس په پرېولل شو کالو کي تر څو چي د مرداروالي يقين يې نه وي لمونځ او هر څه روا دي.

**(کفايت المفتي جلد۲ صفحه ۳۲۶)**

همدارنګه ردالمحتار ليکي:

وفى التتارخانيه، من شک فى انائه او ثوبه او بدنه اصابته النجاسة اولافهو طاهر مالم يستيقن..... وکذا ما تتخذه اهل الشرک او الجهلة من المسلمين کالسمن والخبز والاطعمة والثياب.

**(ردالمحتار جلد اول صفحه ۱۵۱)**

## آيا د جنابت په وخت کي د کالو پرېولل روا دي يعني په دې وخت کي کالي پاکېداى شي او که نه؟

**پوښتنه**: که چيري يو سړى جنب وي يعني د جنابت غسل پر اوښتى وي آيا دغه سړى کولاى شي چي تر غسل کولو مخکي يا خپل کالي او يا د بل چا کالي پرېولي؟

**جواب**: هو، وروره! جنب سړى کولاى شي چي د جنابت په حالت کي يعني تر غسل مخکي کالي پرېولي، د ځينو خلکو دا فکر غلط دى چي د جنب سړي



په لاس هيڅ شى نه پاکيږي. **(کفايت المفتى جلد۲ صفحه ۳۲۷)**

## آيا د دوبي په لاس په پرېولو کالو کي لمونځ روا دى او که نه:

**پوښتنه**: څو ورځي مخکي موږ لاهور ته په سفر تللي وو، ملګرو مو وغوښتل چي خپل خيرن کالي و دوبي ته د پرېوللو لپاره ورکړي، خو يوه ملګري مو ددې کار څخه انکار وکړ، هغه ويل چي کالي بايد پخپله پرېولو، ځکه چي موږ ته نه دي رامعلوم چي دوبي به يې څنګه پرېولي، په حلالو اوبو کي به يې پرېولي او که په مردارو اوبو کي، وروسته ددغه سړي خبري موږ ټولو ته شک راواچاوه، نو اوس موږ ته په دې هکله شرعي فتوى راکړئ چي د آينده لپاره کالي د پرېوللو لپاره ودوبي ته ورکوو او که يې پخپله پرېولو؟

**جواب**: وروره! ستاسي ملګرى سودايي شوى دى، د دوبي په لاس په پرېولو کالو کي لمونځ روا دى، هيڅ شک مه دراچوئ.

**(کفايت المفتى جلد۲ صفحه ۳۲۷)**

همدارنګه ردالمحتار ليکي:

وکذا (اى طاهر مالم يستيقن نجاسة) مايتخذه اهل الشرک والجهلة من المسلمين کالسمن والخبز والاطعمة والثياب.

**(ردالمحتار، قبيل مطلب ابحاث الغسل جلد اول صفحه ۱۵۱)**

## آیا د هغه صابون استعمالول روا دي چي د خنزير وازګه په ګډه شوې وي:

**پوښتنه**: زموږ په سیمه کي ډېر خلک وطني صابون استعمالوي، په دې وجه چي دوی دا عقیده لري چي په خارجي صابونانو کي د خنزير وازګه ګډېږي، نو اوس تاسي موږ ته په دې هکله شرعي فتوی راکړئ چي آیا د اروپايي صابونانو استعمالول د شریعت له نظره روا دي او که نه؟

**جواب**: ددې سوال په جواب کي کفایت المفتی لیکي:

لومړی خو دا خبره یقیني نه ده چي په اروپايي صابونانو کي د خنزير وازګه ګډېږي، دا سمه خبره ده چي د ډېرو غیر مسلمو قومونو په نزد د خنزير غوښه پاکه ده او دوی د همدې غوښو استعمال هم کوي ، مګر دا ښکاره خبره ده چي اروپايي کارخانې د تجارت په غرض صابون جوړوي او تل د خپلو پیداوارو لپاره تبلیغات کوي او د خپلو مصنوعاتو لپاره اشتهارات چاپوي، که تاسي د دوی اشتهارات ووینئ، دوی پکښي لیکلي وي "چي په دغو شیانو کي د نورو مذهبونو خلاف شی نه دی ګډ شوی، دغه شی د هر مذهب خلک استعمالولای شي" همداسي يې نوري ډېرئ خبري لیکلي وي،



دا چي ددې ځخه د دوی مطلب څه دی؟

دا ددې لپاره چي د دوی مصنوعات عام شي او هر وطن، قوم او هري سیمي ته ولاړ شي او د دوی تجارت پراختیا ومومي، دا د غښو تجارتونو هغه مهم اصول دي چي د ټولو قومونو مذهبي جذبات او قومي خیالات په نظر کي نیسي.

مطلب دادی چي نړیواله غټي کارخانې نه غواړي چي د دوی په مصنوعاتو کي دي داسي شیان ګډ شي چي د هغو استعمال مسلمانان حرام بولي، او ددغو شیانو په خبرېدلو سره دي د مسلمانانو مذهبي جوش په شور کي راشي او د دوی تجارت ته دي تاوان ورسیږي، دوی په دې ښه پوهیږي چي د خنزير ټول اجزاء مسلمانان مطلق حرام ګڼي، نو دوی دا کله خوښوي چي زموږ تجارت دي صدمه ووینې.

(کفایت المفتی جلد۲ صفحه ۳۲۸)

صاحب د کفایت المفتي لیکي چي ددې خبرو ځخه زما مطلب دا نه دی چي په اروپايي شیانو کي د داسي شیانو ګډېدل ناممکن دي چي هغه دي د مسلمانانو په نزد حرام وي، بلکي زما مطلب صرف دادی چي په یقیني ډول سره دا معلومه نه ده چي په اروپايي صابونانو کي د خنزير اجزاء ګډ دي، مګر

دا په يقيني توګه معلومه ده چي دغه ډول شيان ګډول او بيا دلته رالېږل چي هغه دي د مسلمانانو په نزد حرام وي، د تجارت د اصولو خلاف کار دی، ته فکر وکړه دوی د تجارت په دغو کُلي او غټو اصولو نه پوهيږي

نو صرف پر دې بناء چي دغه شيان خو د اروپا څخه راځي او د اروپا د ډېرو خلکو په نزد خنزير حلال دی او دا فکر کول چي داسي ده نو په دغو شيانو کي ضرور د خنزير وازګه ګډه ده ، صحيح خبره نه ده، وګورئ دلته په هندوستان کي د هندوانو په نزد ډېر مردار شيان حلال او پاک دي د مثال په توګه د غوا بولي ، دغه شی نه يوازي داچي پاکي دي بلکي د دوی په نزد متبرک هم دي. مګر ددې سره سره مسلمانان د دوی په لاس جوړي شوي ميټايانی او نور ډېر د خوراک شيان استعمالوي او ددغو شيانو استعمال شرعًا روا هم دی، دا ځکه چي هندو دوکاندار په دې پوهيږي چي زما خريدار خو يوازي هندو نه دی، بلکي مسلمان او نور مذهبو والا هم زما ګراکان دي، او دوی ته دا هم معلومه ده چي بې له هندوانو نور خلک د غوا بولي پاکي نه بولي، نو ځکه دوی د خپل تجارت د پرمختګ لپاره خپل تجارتي شيان ددغو شيانو څخه چي د مسلمانانو په نزد مرداروي پاکوي، ددې لپاره چي دده تجارت او دوکانداري د خريدارانو د مذهبي جذباتو سره مخامخ نه شي او تجارت ته يې صدمه ونه رسيږي، تر دغو خبرو وروسته کفايت المفتي ليکي:

**دا يوه قاعده کليه ده** چي د ډېرو جزئياتو حکم پر متفرع کيږي، دا نه يوازي د صابون بلکي د اروپا د ټولو مصنوعاتو طهارت او نجاست تر دغي قاعدې لاندي راځي،



همدارنګه ددغو سيمو د کپړو د کارخانو او همدارنګه د نورو کارخانو حالات چا ته معلوم دي چي دوی پاک شيان استعمالوي او که مردار، مګر دا ټول تر دغي قاعدې لاندي راځي او همدا حکم يې دی چي تر څو ددې مرداروالی په يقيني ډول او يا په غالب ګمان سره معلوم شوی نه وي ، تر هغو د مردار حکم نه شي پر کېدای، څوک چي د فقهي د علم ماهر وي هغوی ته معلومه ده چي د فقهي په کتابونو کي ډېر داسي مثالونه شته چي محض ګمان او شک ته پکښي اعتبار نه دی ورکول شوی .

(کفايت المفتی جلد٢ صفحه ٣٢٩)

لکه ردالمحتار چي ليکي:

وفی التتارخانيه، من شک فی انائه او ثوبه او بدنه اصابته النجاسة اولافهو طاهر مالم يستيقن..... وکذا ما تتخذه اهل الشرک او الجهلة من المسلمين کالسمن والخبز والاطعمة والثياب.

(ردالمحتار جلد اول صفحه ١٥١)

**دوهمه خبره داده**: چي که دا په يقيني توګه معلومه هم وي چي په

اروپايي صابونانو کي د خنزير وازګه يا دده نور اجزاء ګډ دي، نو بيا هم ددغه صابون استعمال روا دی، ځکه چي په صابون کي چي کوم مرداره وازګه يا مردار غوړي ګډيږي هغه تر صابون جوړېدلو وروسته پاک ګڼل کيږي او نور د مردار حکم نه پر کيږي لکه درمختار چي ليکي:

ويطهر زيت النجس بجعله صابونًا به يفتى للبلوى كتنور رش بماء نجس لاباس بالخبز فيه.

**(درمختار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۱۵)**

**ترجمه**: د زيتون د مردارو غوړو څخه که چيري صابون جوړ شي نو صابون پاک بلل کيږي، د عموم بلوی په وجه پر دې فتوی ورکول کيږي لکه په تنور کي چي مرداري اوبه وپاشل شي، نو په دغه تنور کي د ډوډۍ پخول پروا نه لري

همدارنګه فقهاء ليکي چي پر انقلاب عين د پاکۍ حکم کيږي لکه چي فرمايي جعل الدهن النجس فى صابون يفتىٰ بطهارته لانه تغير والتغير يطهر عند محمد ويفتي به للبلوى اه (مجتبى كذا فى ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۱۵)

**ترجمه**: مردار غوړي که چيري په صابونه کي ګډ شي، نو پاکيږي، ځکه چي د غوړو حقيقت بدليږي او د حقيقت بدلون د امام محمد رحمه الله په نزد پاکوالی راولي او د عموم بلوی په وجه پر دې باندي فتوی ده.



همدارنګه غنية المستملى شرح منية المصلى ليکي:

ولو احرقت العذرة اوالروث فصار كل منهما رمادًا او مات الحمار فى المملحة وكذا ان وقع فيها بعد موته وكذا الكلب والخنزير لووقع فيها فصار ملحًا طهر عند محمد رحمه الله واكثر المشائخ اختار واقول محمد رحمه الله وعليه الفتوى لان الشرع رتب وصف النجاسة على تلك الحقيقة وقدزالت بالكلية فان الملح غير العظم واللحم فاذا صارت الحقيقة ملحًا ترتب حكم الملح حتى لواكل الملح جاز ونظيره النطفة نجسة وتصير علقةً وهى نجسة وتصير مضغةً فتطهر وكذا الخمر تصير خلا وعلى قول محمد فرعوا طهارة صابون صنع من دهن نجس وعليه يتفرع مالو وقع انسان او كلب فى قدر الصابون فصار صابونًا يكون طاهرًا لتبدل الحقيقة انتهى مختصرًا. **(غنية المستملى شرح منية المصلى فصل فى الاسارى صفحه ۱۸۹)**

همدارنګه د درمختار د اول جلد په ۲۱۰ صفحه کي داسي راغلي دي:

ويطهر زيت تنجس بجعله صابونا الخ او ددې د پاکېدلو وجه انقلاب عين يعني د شي د حقيقت او ماهيت بدلون دی، په شامي کي تر دغه قول لاندي راغلي دي: وعليه يتفرع مالو وقع انسان او كلب فى قدر الصابون

فصار صابونا يكون طاهرا لتبدل الحقيقة.

**(ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ٢٩١)**

د لوړو عباراتو څخه لاندي څو شيان ثابتيږي:

١- د حقيقت په انقلاب سره د طهارت او نجاست حكم بدليږي.

٢- د حقيقت د انقلاب د طهارت دغه حكم د امام محمد رحمه الله قول دی، پر همدي قول فتوی ده او اكثرو مشائخو همدا قول اختيار كړی دی.

٣- په صابونه كي د مردارو غوړو او وازګو حقيقت بدليږي او انقلاب عين حاصليږي.

نو اوس ستاسي د پوښتني جواب روښانه شو چي صابون د هر شي د مرداري وازګي او مردارو غوړو څخه جوړ شي، خو د صابون د جوړېدلو وروسته پاک ګڼل كيږي، او ددغه صابون استعمال روا دی، ځكه چي د حقيقت د انقلاب په وجه سره هغه وازګه، وازګه نه پاتيږي او نه هغه غوړي، غوړي پاتيږي، بلكي صابون ګرځي، نو د خارجي صابون د اجزاوو په هكله پوښتنه كول نه ده پكار چي دا د څه شي څخه جوړ شوي دي. آيا د پاک شي څخه جوړشوي دي او كه د مردار څخه، مطلب د هر شي څخه چي جوړ شوي وي د حقيقت د انقلاب په وجه سره پاک ګرځي.

**(كفايت المفتى جلد٢ صفحه ٣٣١)**

ځيني خلكو ته شک ورپيدا كيږي چي شايد د فقهي ددغو قاعدو څخه به مراد عامه مرداره وازګه يا عام مردار غوړي وي، د خنزير وازګه او د خنزير



غوړي به ځيني مراد نه وي، ځكه چي خنزير خو نجس العين دی، دا به په انقلاب عين سره نه پاكيږي؟

كفايت المفتي ددي سوال په جواب كي ليكي:

**د انقلاب عين په وجه د پاكېدلو حكم ونجس العين او غير نجس العين دواړو لره يو ډول شامل دی، همدارنګه وينه هم نجس العين ده، مګر د انقلاب عين په وجه پاكيږي، وګوره شراب د نص قرآني له رويه حرام او نجس دي مګر د سُركې د جوړېدلو وروسته په اتفاق سره پاكه او حلاله ګرځي.**

**(كفايت المفتى جلد٢ صفحه ٣٣٣)**

كفايت المفتي د ډېر تحقيق څخه وروسته ليكي:

**اصل خبره داده شريعت چي پر كوم حقيقت د نجاست حكم كړی دی، د انقلاب يا بدلون په وخت كي هغه حقيقت له منځه ځي او وروسته تر انقلاب چي كوم حقيقت منځ ته راغلی دی هغه د شريعت په نزد پاک دی، نو د طهارت دغه حكم هم يو شرعي حكم دی.**

**(كفايت المفتى جلد٢ صفحه ٣٣٣)**

همدارنګه د خنزير د حقيقت تر انقلاب وروسته پاكېدل هم په لاندي

روایاتو سره ثابت دی: ولا ملح کان حمارًا او خنزیرًا ولاقذر وقع فی بئر فصار حماة لانقلاب العین به یفتی.

**(درمختار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۲۶)**

همدارنګه ردالمحتار لیکي:

قوله لانقلاب العین علة للکل وهذا قول محمد رحمة الله علیه وذکر معه فی الذخیرة والمحیط ابا حنیفة رحمة الله علیه (حلیه).

**(ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۲۷)**

قال فی الفتح وکثیر من المشائخ اختاروه وهو المختار لان الشرع رتب وصف النجاسة علی تلک الحقیقة وتنتفی الحقیقة بانتفاء بعض اجزاء مفهومها فکیف بالکل فان الملح غیر العظم واللحم فاذا صار ملحا ترتب حکم الملح ونظیره فی الشرع النطفة نجسة وتصیر علقةً وهی نجسة وتصیر مضغةً فتطهر والعصیر طاهر فیصیر خمرًا فینجس ویصیر خلاً فیطهر فعرفنا ان استحالة العین تستتبع زوال الوصف.



## نن سبا ډېر ځایونه د اودس کولو لپاره داسي ځایونه جوړ شوي دي چې بولي وکړي په هماغه ځای کې سمدستي بې له اودس وچولو استنجاء وهي:

**پوښتنه**: نن سبا د نوي دور په وجه سره د ضرورت په ځایونو یعني بیت الخلاګانو کې اوبه هم وي، نو څوک چې خپل ضرورت رفع کړي یعني بولي یا نوره مرداري وکړي را ولاړیږي نه، او نه اودس وچوي سمدستي په اوبو سره استنجاء وهي، نو تر ډېره وخته پوري د بولو څاڅکي ځیني راتویږي، نو آیا تر بولو وروسته بې له اوداسه وچولو سمدستي په اوبو سره استنجاء وهل صحیح ده او که نه. حال دادی چې ددې خبرې قوي امکان شته چې تر استنجاء وروسته دي د بولو څاڅکي راتوی شوي وي؟

**جواب**: وروره! کوم سړی چې دا ناروغي ولري چې تر بولو کولو وروسته تر ډېره د بولو څاڅکي ځیني راتویږي، نو سمدستي په اوبو سره د استنجاء کولو پر ځای پر دغه سړي دا لازمه ده چې لومړی دي تشناب کاغذ استعمال کړي، چې کله یې د بولو د بندېدو اطمینان راغي، وروسته دي په اوبو سره استنجاء ووهي. **(فتاوی یوسفیه جلد۲ صفحه ۸۳)**

## مرداره مځکه په وچېدلو سره پاکیږي:

**پوښتنه**: په ځینو کورونو، بلکي په اکثرو کورونو کي کوچنیان د سرای په هر ځای کي بولي کوي، که چیري دغه د بولو ځای په سایه کې وچ

شي نو آیا وروسته پر دغه ځای ناسته، ولاړه او لمونځ صحیح دی که نه؟

**جواب**: هو وروره! ناپاکه مځکه په وچېدلو سره پاکیږي، نو بې له توکره هوارولو سره هم لمونځ او هم ناسته ولاړه پر صحیح کیږي، مګر هو که یې په طبیعت کي خوند نه کوئ، نو بیا یو توکر پر هوارول ضروري دی.

(فتاوی یوسفیه جلد۲ صفحه ۸۹)

## که پر کالو شراب توی شي څه ډول پاکیږي:

**پوښتنه**: آیا دا خبره صحیح ده چي کالو یا بل توکره ته که شراب ورسیږي هغه ځای به پرېکوي، که چیري دا خبره غلطه وي، نو بیا یې د پاکېدلو کوم صورت دی؟

**جواب**: دا خبره غلطه ده چي که شراب وکالو یا بل توکره ته ورسیږي، هغه ځای به پرې کوي، بلکي د نورو نجاساتو په ډول دا هم په دري واره پرېولو سره پاکیږي. (فتاوی دارالعلوم دیوبند جلداول صفحه ۱۹۲)

یجوز رفع نجاسة حقیقیة عن محلها بماء ولو مستعملا وبکل مائع طاهر قالع. الخ (تنویر) علی الشامي جلداول صفحه ۳۱۷)

## د خاورین یا ناشکن د لوښو مرداریدل:

**پوښتنه**: که چیري خاورین لوښی یا د ناشکن لوښی مردار شي څه ډول پاکیږي؟



**جواب**: دا ډول شیان په دري واره پرېولو سره پاکیږي لکه درمختار چي لیکي: یجوز رفع نجاسة حقیقیة عن محلها ولو اناء الخ.

(درمختار باب الانجاس)

## د دریاب د حیواناتو بولي پاکي دي:

**پوښتنه**: آیا د دریاب د حیواناتو بولي پاکي دي او که مرداري دي؟

**جواب**: وروره! د دریاب د حیواناتو بولي پاکي دي که چیري اوبو ته ورولویږي په هغو اوبو اودس روا دی، مګر د دغو اوبو څښل روا نه دي لکه د مائی المولد په تشریح کي چي د فقهي د کتابونو لکه درمختار او داسي نورو څخه چي معلومیږي: فلو تفتت فیه نحو ضفدع جاز الوضوء به لاشربه.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار جلداول صفحه ۱۷۱)

او تر دې مخکي راغلي دي:

ومائی مولد ولو کلب الماء وخنزیره کسمک وسرطان وضفدع الخ.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار جلداول صفحه ۱۷۱)

## ویل کیږي چي په انګریزي دوایانو کي شراب هم ګډ شوي وي نو آیا ددغو دوایانو استعمال روا دي او که نه؟

**پوښتنه**: اوریدلي مودي چي په انګریزي دوایانو کي شراب هم ګډ شوي وي نو آیا ددغو دوایانو استعمال روا دی او که نه؟

**جواب**: وروره! د انګریزي دوایانو استعمال په عمومي توګه ناروا نه دی، مګر که په یوه دوا کي دا په یقیني توګه معلومه شي چي شراب په ګډ شوي دي، نو بیا ددغي دوا استعمال ناروا دی لکه ردالمحتار چي لیکي الیقین لایزول بالشک. **(الاشباه والنظائر القاعدة الثالثة صفحه ۷۵)**

مګر په شک او شبه سره شی نه مرداریږي لکه فقهاء چي لیکي الیقین لایزول بالشک **(الاشباه والنظائر صفحه ۷۵)**

## په حرامو سره د تداوي په هکله تحقیق:

د تداوي بالمحرم په هکله د ائمه مبارکانو څخه د جواز او عدم جواز مختلف صورتونه رانقل شوي دي چي په لاندي ډول دي:

(۱) که چیري د مخمصې او اضطرار حالت ؤ، نو که د حرام شي د استعمال څخه بغیر د هلاکت قوي اندېښنه وه، په دې صورت کي د ضرورت په اندازه



په حرامو سره تداوي بالاتفاق جائز ده.

(۲) البته که چیري د هلاکت اندېښنه نه وه، بلکي صرف د ناروغۍ د ختمېدلو لپاره په حرامو سره د علاج کولو ضرورت ؤ، نو په دې صورت کي د آئمهؤ اختلاف دی چي په لاندي ډول دی:

۱- د حضرت امام مالکؒ په نزد په حرامو سره د ناروغۍ علاج کول مطلق جائز دی.

۲- د حضرت امام شافعيؒ په نزد په دغه صورت کي تداوي، بالمحرم مطلق ناجائز ده.

۳- حضرت امام بیهقیؒ په مسکراتو یعني نشه راوستونکو شیانو سره د ناروغۍ علاج ناجائز بللی دی، مګر ددغو شیانو څخه ماسېوا په نورو محرماتو سره یې بیا د ناروغۍ علاج جائز بللی دی.

۴- په احنافو حضراتو کي په ذکر شوي دوهم صورت کي د حضرت امام اعظم ابوحنیفهؒ او حضرت امام محمدؒ په نزد مطلقًا د عدم جواز حکم ورکول شوی دی.

۵- امام طحاویؒ فرمایلي دي چي د شرابو څخه ماسېوا د سختي مجبورۍ په حالت کي په حرامو سره د ناروغۍ علاج کول درست دي.

**(شرح معانی الاثار جلد اول صفحه ۵۴)**

۶- علامه انورشاه کشمیريؒ فرمایلي دي چي په شامي کي راغلي دي چي د ضرورت په وخت کي تداوي بالحرام درست دي.

۷- د امام ابویوسفؒ مسلک دادی چي که د یو ماهر طبیب دا رایه وي

چي د تداوي بالحرام څخه ماسېوا د ناروغۍ ورکېدل نه شي کېدای، نو په دې صورت کي په حرامو سره د ناروغۍ علاج جائز دی.

(توضيح السنن جلد اول صفحه ۱۶۳)

## آيا مني پاک دي او که مردار، څکه چي د امام غزالي رحمه الله په اکسير هدايت نومي کتاب کي پاک ورته ويل شوي دي:

**پوښتنه**: آيا مني پاک دي او که مردار، که چيري مردار وي، نو امام غزالي رحمه الله ولي پاک بللي دي؟

**جواب**: وروره! د احنافو په نزد مني مردار دي لکه ردالمحتار چي ليکلي دي ونجاسة المنى عندنا مغلظة.

(ردالمحتار باب الانجاس جلداول صفحه ۲۸۹)

دا چي حضرت امام غزالي رحمه الله پاک بللي دي دا په دې وجه چي دی مبارک خو شافعی مذهبه دی، او د شافعی مذهبو په نزد مني پاک دي، دا چي نه وايي په مني کي غسل ولي واجب دی، دا څکه چي په قرآن پاک کي الله ﷻ امر کړی دی او هم جناب رسول الله ﷺ په دې هکله داسي فرمايلي دي:

فى المذى الوضوء وفى المنى الغسل رواه احمد.

(آثار السنن جلداول صفحه ۲۵)



## آيا د هندو په لاس پخه شوي ډوډۍ يا دده په کور کي پاخه شوي خواړه خوړل د مسلمان لپاره روا دي او که نه:

**پوښتنه**: آيا د هندو په لاس پاخه شوي خواړه او يا دده په لاس پخه شوي ډوډۍ خوړل د مسلمان لپاره روا دي او که نه؟

**جواب**: هو، د هندو يا بل کافر په لاس پاخه شوي خواړه خوړل روا دي لکه فتاوی عالمگيري چي ليکي:

قال محمد رحمه الله ويكره الاكل والشرب فى اوانى المشركين قبل الغسل ومع هذا لو اكل او شرب فيها قبل الغسل جاز الخ.

(عالمگيري مصري جلد۵ صفحه ۲۵۸)

## آيا د نجاست د څاڅکو په لګېدلو سره شی مرداريږي که نه:

**پوښتنه**: که چيري پر کالو يا بدن باندي غير مرئيه مرداري موښتي وي او تر وچېدلو وروسته يې سړی پرېولي، نو که چيري ددې څاڅکي پر يو بل ځای وموښلي آيا هغه ځای مرداريږي او که نه او آيا په پرېوللو سره هغه ځايونه هم پاکيږي او که نه؟

**جواب**: ښکاره خبره ده چې د نجاست ځاځکي پخپله هم مردار دي. نو د هغه ځای پریولل چې دغه ځاځکي پر ولګیږي ضروري دي او په پریوللو سره هغه ځایونه هم پاکیږي چې مردار ځاځکي پر لوېدلي دي لکه درمختار چې لیکي

ويطهر محل نجاسة مرئية بقلعها الخ ويطهر غيرها اى غير مرئية بغلبة ظن غاسل الخ. (**الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۰۵**)

## که د بدن يو ځای مردار شوی وي نو آيا د پريوللو په وخت کي ددغه ځای موښل هم شرط دی او که صرف اوبه پر اچول کافي دي:

**پوښتنه**: که د يو چا د بدن يو ځای مردار شوی وي. اوس غواړي چې پاک يې کړي. نو آيا ددغه ځای موښل هم شرط دی او که صرف اوبه پر اچول کافي دي؟

**جواب**: وروره! اصل خبره د نجاست په ليري کېدلو کي ده. نو دا که صرف په اوبو اچولو سره لاسته راځي او که په مږلو سره راځي فرق نه کوي لکه درمختار چي ليکي

يجوز رفع نجاسة حقيقية عن محلها بماء ولو مستعملا وبكل مائع



طاهر قالع الخ ويطهر منى اى محله يابس يفرك والافيغسل بلافرق بين منيه ومنيها ولابين ثوب وبدن على الظاهر مختصرا. (**الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۸۴**)

همدارنګه ليدونکی نجاست که په يو وار اوبو توېولو سره له منځ ولاړ شي هم دغه ځای نور پاک بلل کيږي ،ځکه چي په ليدونکي نجاست کي درې والی ضروري نه دی، بلکي د نجاست ليري کېدل شرط دي لکه ردالمحتار چي ليکي: وكذا يطهر محل نجاسة الخ مرئية بقلعها اى بزوال عينها واثرها ولو بمرة او بما فوق ثلاث. (**الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب الانجاس جلداول صفحه ۳۰۲**)

## که چيري د بولو کوچني ځاځکي وکالو ته وروغورځي آيا په دې سره کالي مرداريږي او که نه:

**پوښتنه**: يو سړی چي د شپېتو کالو دی، بولي پوره نه شي ټينګولای، اکثره وخت چي بولي يې ونيسي داسي کوچني کوچني ځاځکي ځيني راتوی شي چي په سترګو نه ليدل کيږي، آيا په دغو کالو کي لمونځ صحيح دی که نه؟

**جواب**: وروره! دومره باريک ځاځکي چي په سترګو سم نه ليدل کيږي که

پر کالو یا بدن وموښلي معاف دي، په دغو سره بدن او کالي نه مرداریږي، نو ددې سره لمونځ صحیح دی لکه ردالمحتار چې لیکي:

وعفی الخ بول انتضح کرؤس ابرو کذا جانبها الاخروان کثر باصابته الماء للضرورة (درمختار) عن الکرمانی ان هذا مالم یرعلی الثوب والا وجب غسله اذا صار بالجمع اکثر من قدر الدرهم.

(ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۹۷)

## کله کله چې سرې بولي کوي ډېر میده څاڅکي پر بدن وموښلي آیا په دغو سره بدن یا کالي مرداریږي او که نه:

**پوښتنه**: کله کله چې سرې بولي کوي، ډېر میده او کوچني څاڅکي یې پر پرتاګه وموښلي، او دغه لوندوالی پر بدن محسوس شي، نو آیا د بدن پرېولل لازم دي او که نه؟

**جواب**: که چیرې دومره بولې پر کالو یا بدن وموښلي چې یو درهم ته رسیږي یا تر دې زیاتې وي، نو یې پرېولل ضروري دي او که دومره وي لکه د ستنې سرونه یعني په سترګو سم نه معلومیږي او یوه درهم ته نه رسیږي نو معاف دي لکه ردالمحتار چې لیکي: وعفی الخ بول انتضح کرؤس ابرو کذا جانبها الاخروان کثر باصابته الماء للضرورة (درمختار) عن الکرمانی ان



هذا مالم یرعلی الثوب والا وجب غسله اذا صار بالجمع اکثر من قدر الدرهم. (ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۹۷)

## د مذي او د ودي فرق څه شی دی:

**پوښتنه**: مذي او ودي مور څه ډول پېژندای شو او بله خبره داده چې مذي او ودي خفیفه نجاست دی او که ثقیله؟

**جواب**: په ردالمحتار کې د مذي تعریف په دې ډول راغلی دی:

ماء رقیق ابیض یخرج عندالشهوة لابها الخ، او د ودي په تعریف کې راغلي دي چې: ماء ثخین ابیض کدر یخرج عقب البول.نهر.

(ردالمحتار الباب الغسل جلد اول صفحه ۱۵۳)

نو ددې څخه معلومه شوه چې مذي یو سپین رنګه نرمې اوبه دي چې د شهوت په وخت کې بې له شهوته راوزي، څکه چې په شهوت سره راوتونکي اوبه خو مني نومیږي او ودي د بولو څخه وروسته راوزي، او دغه دواړه یعني مذي او ودي غلیظه نجاست دی لکه د درمختار په باب الانجاس کې چې راغلي دي: وکذا کل مایخرج موجبًا لوضوء او غسل مغلظ الخ.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار جلد اول صفحه ۲۹۳)

او د غلیظه نجاست د اندازې په هکله فقهاء داسې لیکي:

وقدرالدرهم من النجس المغلظ کالدم والبول الخ جازت الصلوة معه

وان زاد لم تجز. (**هداية جلداول صفحه ٧١**)

و نهى الشارع من قدر درهم و ان كره تحريما فيجب غسله ومادونه تنزيها فيسن وفوقه مبطل فيفرض والعبرة لوقت الصلوة لا الاصابة على الاكثر نهر (درمختار) ففى المحيط يكره ان يصلى ومعه قدر درهم او دونه من النجاسة عالما به لاختلاف الناس فيه قادرا على ازالته وحديث تعاد الصلوة عن قدر درهم من الدم لم يثبت ولوثبت حمل على استحباب الاعادة الخ.

(**ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ١٩١، ١٩٢**)

## د انسان ناوړي پاكي دي:

**پوښتنه**: د انسان د خولې څخه چي كومي ناوړي راځي آيا هغه پاكي دي او كه نه؟

**جواب**: ورور! د انسان د خولې څخه چي كومي ناوړي راځي هغه پاكي دي. كماء فم النائم فانه طاهر مطلقا وبه يفتى بخلاف ماء فم الميت فانه نجس الخ. (**الدرالمختار على هامش ردالمحتار جلد اول صفحه ١٢٨**)

همدارنګه فتاوى عالمګيري ليكي:

لعاب النائم طاهر سواء كان من الفم او منبعثا من الجوف عند ابى



حنيفة رحمه الله و محمد رحمه الله وعليه الفتوى واما لعاب الميت فقد قيل انه نجس هكذا فى السراج الوهاج. (**فتاوى عالمگيري باب فى النجاسة فصل ثانى جلد اول صفحه ٤٣**)

## آيا سپى نجس العين دى او كه نه:

**پوښتنه**: آيا سپى نجس العين دى او كه نه. ځكه چي د ځينو رواياتو څخه دا معلوميږي چي سپى نجس العين دى او بله پوښتنه داده كه چيري پاكي اوبه د سپي د پاك بدن سره ولګيږي آيا هغه مرداريږي او كه نه. ځكه چي د ځينو رواياتو څخه مردارېدل ثابتيږي؟

**جواب**: فتاوى دارالعلوم ديوبند په دې هكله ليكي چي صحيح قول دادى چي سپى نجس العين نه دى او د كومو رواياتو څخه چي د سپي نجس العين والى ثابتيږي او يا د سپي د پاك بدن سره د اوبو په لګيدو سره اوبه مردايږي، دا روايتونه ضعيف دي يعني اعتبار ورلره نشته. د صحيح او مفتى به قول په اعتبار هغه اوبه چي د سپي د پاك بدن سره ولګيږي مرداري نه دي.

(**فتاوى دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ١٩٨**)

همدارنګه درمختار ليكي:

واعلم انه ليس الكلب بنجس العين عند الامام وعليه الفتوى وان رجح بعضهم النجاسة فيباع ويوجر ويضمن ويتخذ جلده مصلى ودلوا

و لو اخرج حيا ولم يصب فمه الماء لايفسد ماء البئر ولا الثوب بانتفاضه الخ .(**الدرمختار على هامش ردالمحتار باب المياه جلد اول صفحه ۱۹۲**)

همدارنګه ردالمحتار ليکي:

قوله وعليه الفتوى وهو الصحيح والاقرب الى الصواب بدائع وهو ظاهر المتون بحرو مقتضى عموم الادلة فتح، قوله ولا الثوب بانتفاضه الخ وما فى الولوالجية وغيرها اذا خرج الكلب من الماء وانتفض فاصاب ثوب انسان افسده لا لواصابه ماء المطر لان المبتل فى الاول جلده وهو نجس وفى الثانى شعره وهو طاهر اه فهو على القول بنجاسة عينه كما فى البحر. (**ردالمحتار باب المياه جلد اول صفحه ۱۹۲**)

## د منيو تر پرېولو وروسته چي پر کالو کوم داغ پاته شي آيا ددې سره لمونځ صحيح دی او که نه؟

**پوښتنه**: يو سړي ته احتلام وربېښ شو. کالي يې په منيو ولړل شول. وروسته يې د کالو هغه ځايونه چي په منيو لړل شوي وه پرېولل. مګر تر دې وروسته لا هم د منيو داغ پر جامه معلومېدی، نو آيا په دغو کالو کي لمونځ روا دی او که نه؟



**جواب**: وروره! تر پرېولو وروسته چي کوم داغ پر جامه پاته شي دا د پاکوالي لپاره کوم تاوان نه لري يعني په دغو کالو کي لمونځ صحيح دی او په صابون سره وپرېولو ته خامخا کوم ضرورت نشته، لکه درمختار چي ليکي:

وكذا يطهر محل نجاسة مرئية بعد جفاف كدم بقلعها اى بزوال عينها واثرها الخ ولايضر بقاء اثر كلون وريح لازم فلا يكلف فى ازالته الى ماء حار او صابون ونحوه. (**الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۰۳**)

## آيا د يهودو او نصاراؤ سره خوراک روا دی او که نه:

**پوښتنه**: آيا د يهودو او نصارئ او همدارنګه د نورو کافرانو سره خوراک روا دی او که نه او آيا د دوی په لوښو کي د دوی په لاس د پاخه شوو خوړو خوراک روا دی او که نه او آيا د دوی پسخورده پاکه ده او که نه؟

**جواب**: هو، وروره! د يهودو او نصارئ او همدارنګه د نورو ټولو کفارو سره خوراک او څښاک ټول روا دي، مګر دا چي دوی د شرابو او خنزير د غوښو استعمال ډېر کوي نو ددې وجي د دوی په لوښو کي د دوی پاخه شوي خواړه خوړل احتياطًا ښه نه دي، او همدارنګه د دوی پسخورده پاکه ده هيڅ شک مه دراچوئ، ځکه چي د مطلق انسان پسخورده پاکه ده که څه هم چي

کافر وي او یا جنب وي لکه درمختار چې لیکي:

فسور آدمی مطلقا ولوجنبا او کافرا الخ طاهر.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار جلد اول صفحه ۲۰۵)

## د شیدو رودونکي کوچني بولي هم د لوی سړي د بولو په شان مرداري دي:

**پوښتنه**: د یوه کال یوه کوچني هلک د خپلي مور پر کالو بولي وکړې. هلته یو عالم ناست ؤ، هغه ورته وویل چې د کوچني په بولو سره کالي نه مرداریږي، ځکه چې دی خو شیدې خوري او شیدې خو یو پاک شی دي. آیا ددغه عالم خبره صحیح ده که نه؟

**جواب**: وروره! ددغه عالم خبره غلطه ده، دې عالم ته دي خدای ﷻ انصاف ورکړي چې داسې غلطي خبرې خلکو ته کوي، دی وایي چې کوچنی شیدې خوري. او شیدې خو پاکي دي. نو ځکه یې بولي مرداري نه دي وګوره دا دده قیاس دی

وروره! ددغه عالم خبره او قیاس بیخي غلط دی ، ځکه چې هیڅوک مردار خواړه نه خوري. ټول خلک پاک خواړه خوري. که داسې وي باید د ټولو خلکو بولي پاکي وګڼل شي، اصل خبره داده چې د انسان بولي مرداري او غلیظه نجاست دي، هغه که د کوچني وي او که د لوی.فرق نه کوي

(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه ۲۰۲)



جناب محمد رسول الله ﷺ فرمايلي دي استنزهوا عن البول.

(نصب الرایه جلد اول صفحه ۱۲۸)

## یو منګی چې تقریباً لس سیره سرکه پکښي کې وه شرمښکی پکښي ولوېده آیا ددغه منګي سرکه پاکه ده او که مرداره:

**پوښتنه**: یو منګی چې تقریباً لس سیره سرکه پکښي کې وه. شرمښکی پکښي ولوېده. نو اوس شرعاً ددغي سرکې خوراک څنګه دی؟

**جواب**: هغه ډول شرمښکی چې بهېدونکې وینه نه وي پکښي ددې په مرګ سره نه اوبه او نه سرکه مرداریږي. مګر که د طب او ډاکټری له رویه یې خوراک مضر ګڼل کېدی. نو بیا یې خوراک روا نه دی. ځکه چې د داسي شي خوړل چې صحت ته تاوان رسوي. شرعاً هم ناروا دی

او که چیري دومره غټه شرمښکی پکښي ولوېدل چې بهېدونکې وینه یې درلودل. نو د هغي په مرګ سره سرکه مرداره شول. او که چیرې دا شک درته پیدا ؤ چې بهېدونکې وینه به ولري او که نه. باید ونه خوړل شي. په شامي کې راغلي دي وکالحية البرية الوزغة لوكبيرة لهادم سائل.

(ردالمحتار باب المیاه جلد اول صفحه ۱۷۱)

## که یو سړی پر سپي لاس تیر کړ، آیا بې له لاس پرېولـلو ډوډۍ په دغه لاس خوړل روا دي که نه؟

**پوښتنه**: که چیري یو سړی په ډېره مینه سره پر سپي لاس راتیر کړي، نو آیا دغه سړي لره بې له لاس پرېولو ډوډۍ خوړل روا دي او که نه او آیا دا خبره صحیح ده چي په کوم کور کي سپی وي هلته د رحمت ملائکي نه ورځي؟

**جواب**: سپی نجس العین نه دی، نو که لوند وي او که وچ لاس نه په مرداریږي، البته د هغو فقهاوو په نزد چي دوی د سپي د نجس العین کېدلو قائل دي که چیري سپی لوند ؤ، په هغه صورت په لاس وروړلو سره لاس مرداریږي او که چیري وچ ؤ بیا خو د دوی په نزد هم لاس نه مرداریږي. پاته چي د ډوډۍ د خوړلو مسئله شوه. نو د ډوډۍ د خوړلو لپاره خو د لاس پرېولل وسپي ته د وروړلو څخه ماسېوا هم په کار دي او وسپي ته د لاس د وروړلو څخه وروسته خو بیخي عقلاً لا هم ضروري دي.

همدارنګه تاسي پوښتنه کړې ده چي آیا دا خبره صحیح ده چي په کوم کور کي سپی وي هلته د رحمت ملائکي نه ورځي، باید ووایم چي هو، دا خبره صحیح ده ځکه چي دا خبره جناب رسول الله ﷺ فرمایلې ده: **لاتدخل الملا ئکة بیتا فیه کلب ولاتصاویر**. **(مشکوة المصابیح جلد۲ صفحه ۳۸۵)**



## آیا د سپي د پوست څخه د ډول جوړول روا دی او که نه؟

**پوښتنه**: ځیني خلک د سپي د پوست څخه ډول جوړ کړي آیا دا کار روا دی او که نه؟

**جواب**: هو، د سپي پوست د دباغت د ورکولو څخه وروسته ډول جوړول ځیني روا دی، او کوم فقهاء چي د سپي د نجس العین کېدلو قائل دي هغه یې روا نه بولي، لېکن صحیح قول دادی چي سپی د خنزیر په شان نجس العین نه دی لکه درمختار چي لیکي: **واعلم انه لیس الکلب بنجس العین عند الامام وعلیه الفتوی الخ فیباع ویو جرو یضمن ویتخذ جلده مصلی ودلوا ولو اخرج حیا ولم یصب فمه الماء لایفسد ماء البئر ولا الثوب بانتفاضه الخ ولاخلاف فی نجاسة لحمه وطهارة شعره**. **(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب المیاه جلد اول صفحه ۱۹۲)**

## یوسړي تر غسل کولو وروسته په منیو لړلی پرتوګ واغوستی آیا په دې سره بدن مرداریږي که نه؟

**پوښتنه**: یو سړي ته احتلام ورپېښ شو، پرتوګ یې په منیو ولړل شو ځ شو، وروسته دغه سړی حمام ته ولاړی هلته یې غسل وکړ او بیرته یې

هماغه په منیو لړلی پرتوګ واغوست، کور ته راغی بیا یې کالي بدل کړل، نو آیا ددغه سړي بدن پاک بلل کیږي او که ناپاک؟

**جواب**: وروره! که یې چیرې تر بدن وچولو وروسته پرتوګ اغوستی وي، خو هیڅ پروا نه لري، مګر که یې بدن لوند ؤ مردار پرتوګ دي نه اغوندي او که چیرې د بدن د ناپاکوالي احتمال ورته پیدا ؤ نو ځان ته دي شک نه وراچوي، بدن یې نه دی مردار، مګر د آینده لپاره دي احتیاط کوي.

**(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه ۲۰۴)**

همدارنګه درمختار لیکي: ولولف فی مبتل بنحو بول ان ظهرنداوته اواثره تنجس والا لا (**الدرالمختار علی هامش ردالمحتار فصل فی الاستنجاء جلد اول صفحه ۳۲۱**)

## آیا د سپي پوست تر دباغت وروسته پاک دی او که نه یعني لمونځ پر صحیح کیږي او که نه؟

**پوښتنه**: یوه سړي د سپي وپوست ته دباغت ورکړی دی، بیا یې جای نماز ځیني جوړ کړی دی او س لمونځ پر کوي او چي لمونځ پر وکړي پر همدې پوست ناست وي قرآن شریف وایي، آیا دغه کار روا دی او که نه؟

**جواب**: د سپي د پوست په هکله درمختار داسي لیکي: واعلم ان الکلب لیس بنجس العین عند الامام وعلیه الفتوی وان رجح بعضهم



النجاسة کما بسطه ابن الشحنة فیباع ویوجر ویضمن ویتخذ جلده مصلی ودلوًا الخ.

په شامي کي راغلي دي: قوله وعلیه الفتوی وهو الصحیح والاقرب الی الصواب بدائع وهو ظاهر المتون بحر ومقتضی عموم الادلة فتح.

د درمختار، شامي، بدائع، بحرالرائق او فتح القدیر څخه ددې کار جواز معلومیږي، نو که یو چا داسي کار کړی وي، د اعتراض وړ نه دی. مګر احتیاطًا داسي کار نه کول ښه خبره ده. فتاوی دارالعلوم دیوبند لیکي که یو چا داسي کار کړی وي، د اعتراض وړ نه دی، مګر احتیاطًا داسي کار نه کول ښه خبره ده، خو په جواز کي یې کلام نه دی په کار.

**(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه ۲۰۴)**

## د اچارو په لوښي کي موږک ولوېدی او هلته مړ شو آیا اوس پر دغه اچارو باندي د پاک حکم کیږي او که د مردار:

**پوښتنه**: په یوه لوښي کي تر خولې پوري اچار اچول شوی ؤ، خو له بده مرغه چي یو موږک پکښي ولوېدی او مړ شو، په دې وخت کي د ناستو کسانو تر منځ اختلاف پیدا شو، ځینو ویل چي دغه اچار بالکل مردار دی، په هیڅ رقم سره کار نه شي ځیني اخیستل کېدای، ځینو بیا ویل چي یا د سر

اچار ځيني وغورځوئ نور پاک دی، اوس په دې هکله يو شرعي جواب راکړئ چې د کومو کسانو خبره صحيح ده؟

**جواب**: وروره! د هغو کسانو خبره صحيح ده چې دغه اچار مردار بولي، مطلب دادی چې دغه اچار ټوله مردار دی، د سر د اچار په غورځولو سره نور اچار نه پاکيږي ويحكم بنجاستها مغلظة من وقت الوقوع ان علم الخ.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار جلد اول صفحه ۲۰۱)

## آيا مشركان پاک دي او که مردار، ځکه چې الله ﷻ ومشركانو ته نجس ويلي دي، نو که چيري مردار وي د دوی په لاس د پاخه شوي خوړو خوراک څنګه دی؟

**پوښتنه**: بنايسته ګل وايي چې د کافرانو په لاس پاخه شوي خواړه خوړل روا نه دي ځکه چې دوی نجس دي، ولې چې الله ﷻ په قرآن شريف کې مشرکانو ته نجس ويلي دي انما المشركون نجس؟

**جواب**: وروره! کافران د عقيدې له رويه نجس دي لکه الله ﷻ چې فرمايلي دي انما المشركون نجس قال الشامي فالمرادبقوله تعالى انما المشركون نجس النجاسة فى اعتقادهم.(ردالمحتار فصل فى البئر جلد اول صفحه ۲۰۵)



ددې څخه معلومه شول چې د مشرکانو نجاست د عقيدې په اساس دی، نه د ظاهر په اساس، نو که چيري د کافر او مشرک پر لاس په ظاهره نجاست نه معلوميږي، نو دده په لاس پاخه شوي خواړه ټول پاک او خوړل يې بالکل د شريعت له رويه درست دي لکه ردالمحتار چې ليکي:

فى التاتارخانية من شک فى انائه الخ فهو طاهر وكذا (اى طاهر) ما يتخذه اهل الشرک او الجهلة من المسلمين كالسمن والخبز والاطعمة والثياب (ردالمحتار قبيل ابحاث الغسل جلد اول صفحه ۱۴۰)

جناب رسول الله ﷺ د کفارو په لاس پاخه شوي خوړو ته تناول فرمايلی دی

(فتاوی دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ۲۰۵)

## که چيري د يو چا پر خپلو جامو باندې شک وي چې آيا په منيو يا بولو به لړل شوي وي او که نه نو په دې وخت کې څه کول په کار دي:

**پوښتنه**: که چيري د يو چا دا شک وي چې پر فلانۍ جامه به مني يا بولي توی شوي وي او که نه. مګر دا يې يقين وي چې که توی شوي هم وي. تر يوه درهم لږ توی شوي دي. نو آيا پر دغه مشکوکه جامه د پاک حکم کيږي او که د مردار؟

**جواب**: وروره! په شک سره کالي نه مرداريږي لکه درمختار چې ليکي ولو

شک فی نجاسة ماء او ثوب الخ لم یعتبر. (**الدرالمختار علی هامش ردالمحتار جلد اول صفحه ۱۴۰**)

او که چیري د درهم برابر نجاست نه وي، نو لمونځ ورسره صحیح کیږي، البته که تر درهم زیات وي، نو بیا یې پرېوتل ضروري دي، په درمختار کې په دې هکله داسي راغلي دي:

وعفی الشارع عن قدرالدرهم الخ. (**الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۹۱**)

## آیا د کوتري مرداري نجسه ده او که نه او بله خبره داده چي د مسجد کوتري خرڅول او د هغو په پیسو د مسجد لپاره بل شی رانیول روا دي او که نه:

**پوښتنه**: آیا د کوتري مرداري نجسه ده او که نه د ایوه پوښتنه ده او بله پوښتنه داده چي حاجي نظرګل چي زموږ د مسجد مشر ګڼل کیږي، یو ورځ راولاړ شو. د مسجد ټوله کوتري یې ونیولې ویل دا خرڅوم، او په پیسو یې د مسجدلپاره یو فرش را نیسم، ځکه چي ټوله مسجد یې چټل کړی دی. ځینو خلکو ورنه وویل چي دا کار نه دی روا. ځکه چي د مسجد هیڅ شی خرڅول جائز نه دی. حاجي نظرګل چي د خلکو دا خبري واورېدې، نو یې



کوتري بېرته ایله کړې او خرڅي یې نه کړې، نو اوس تاسي وواياست، آیا د شریعت حکم هم همدا دی لکه دا خلک چي وایي؟

**جواب**: ورورہ! د کوتري مرداري نجسه نه ده لکه فتاوی عالمګیري چي لیکي: وذرق مایوکل لحمه من الطیر طاهر عندنا مثل الحمام والعصافیر کذا فی السراج الوهاج.

(**فتاوی عالمګیري باب النجاسات جلد اول صفحه ۴۵**)

د دوهمي پوښتني جواب مو دادی چي د مسجد کوتري نیول او خرڅول او پیسې یې په مسجد کي مصرفول روا دي، حاجي نظرګل که داسي کړي وای یعني د مسجد کوتري یې خرڅي کړي وای او پیسې یې په مسجد کي مصرف کړي وای هیڅ خبره نه وه (مګر په هر کار کي مشوره ښه ده. پر خپل سر په دې بهانه چي زه مشر یم هر کار کول که هغه ګټور وي او که نه ښه نه دی).

(**فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه ۲۰۵**)

## آیا د بهشتي زیور دا خبره صحیح ده چي وایي د سپي ناوړي مرداري دي او نور بدن یې پاک دی؟

**پوښتنه**: په بهشتي زیور کي راغلي دي چي د سپي ناوړي مرداري دي، مګر نور ټول (ظاهري) بدن یې پاک دی آیا دا خبره صحیح ده او که نه؟

**جواب**: هو، د سپي په هکله دا قول صحيح دی دا ځکه چي سپی د خنزير په ډول نجس العين نه دی. نو ددې وجې د هغه ناوړي مرداري دي، مګر نور ټول ظاهري بدن يې پاک دی. يعني که بدن يې په پاکو اوبو لوند شي او سړي لاس وروړي يا کالي په لانده شي نو په دې سره شی نه مرداريږي مطلب دا دی چي د بهشتي زيور مسئله صحيح او مفتی به ده لکه په درمختار کي چي راغلي دي:

واعلم انه ليس الكلب بنجس العين عند الامام وعليه الفتوى الى ان قال ولاخلاف فى نجاسة لحمه وطهارة شعره وفى الشامى قوله ولاخلاف فى نجاسة لحمه ولذا اتفقوا على نجاسة سوره المتولد من لحمه الخ. (**ردالمحتار قبيل فصل البئر جلد اول صفحه ۱۹۲**)

## د ګرمۍ په وخت کي که چيري د جنابت په حالت کي د انسان پر بدن خوله راشي آيا په دې سره يې کالي مرداريږي او که نه؟

**پوښتنه**: د ګرمۍ په وخت کي زما بدن ډېري خولې کوي، نو کله کله چي ماخوستن کوروالی وکړم او جنابت راته پيښ شي، نو سهار چي راکښېنم ټول بدن مي په خولو لوند خيشت وي حيران يم چي آيا په دغو خولو سره مي کالي مرداريږي که نه، ځکه چي خولې خو د جنابت په حالت کي راغلي دي؟



**جواب** وروره! د جنب سړي خوله مرداره نه ده، يعني په دغو خولو سره کالي نه مرداريږي، هيڅ شک مه دراچوه لکه درمختار چي ليکي:

وحكم عرق كسور (درمختار) فسور آدمى مطلقا ولوجنبا او كافرا الخ طاهر. (**الدرالمختار على هامش ردالمحتار مطلب فى السور جلد اول صفحه ۲۰۵**)

## که چيري د المونيم لوښی مردار شي څه ډول پاکيږي؟

**پوښتنه**: که چيري د المونيم لوښی مردار شي د پاکېدلو يې کوم صورت دی، يعني په پاکولو او درې واري پرېولو سره پاکېدای شي او که نه؟

**جواب**: هو، وروره! دغه ډول ټول لوښي په پاکولو او پرېولو سره پاکيږي لکه طحطاوي چي ليکي: وكذا يطهر محل نجاسة مرئية بقلعها ولايضر بقاء اثر لاوم وغيرها بغلبة ظن غاسل لومكلفا طهارة محلها مختصرا (الدرالمختار) الاوانى ثلثة انواع خزف وخشب وحديد ونحوها وتطهيرها على اربعة اوجه حرق ونحت ومسح وغسل فان كان الاناء من خزف او حجروكان جديد او دخلت النجاسة فى اجزائه يحرق وان كان عتيقا يغسل وان كان من خشب جديد ينحت ومن قديم يغسل وان

کان من حدید او صفر اورصاص اوزجاج وکان صقیلا یمسح وان کان خشنا یغسل. (**الطحاوی علی الدرالمختار باب الانجاس جلد اول صفحه ۱۶۳**)

## آیا خاورین لوښی چې مردار شي، په پرېولو سره پاکېدای شي او که نه؟

**پوښتنه**: که چیري یو خاورین لوښی مردار شي آیا په پرېولو سره پاکېدای شي او که نه؟

**جواب**: هو، ورورهٔ په پرېولو سره پاکېدای شي. درې ځله یې پرېوله. بس نور شک مه دراچوه لکه درمختار چې لیکي

ولایضرّ بقاء اثرکلون وریح تشریح لازم فلا یکلف فی ازالته الی ماء حار اوصابون ونحوه. (**الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۰۴**)



## یو انګریز د خنزیر غوښې وخوړلې، وروسته یې یو قلم په خوله کې وواهه نو آیا اوس دغه قلم پاک ګڼل کېږي که نه؟

**پوښتنه**: یو انګریز د خنزیر غوښې وخوړلې، وروسته یې یو قلم په خوله کې وواهه او بیرته یې راوکښی پر مېز یې کښېښاوه. یو مسلمان چې ددغه انګریز سره په خبرو اخته ؤ په نافهمۍ کې یې دغه قلم راپورته کړ او ده هم په خوله کې وواهه. وروسته چې یې فکر شو، نو ډېر یې طبیعت خراب شو او ویل یې چې اوس به خوله څنګه پاکوم. اوس تاسې په دې هکله دغه مسلمان ته یو شرعي لاره وروښیاست چې دی خپله خوله څنګه پاکه کړي؟

**جواب**: ورورهٔ دغه سړی دې هیڅ فکر نه خرابوي. کوم قلم چې ده په نافهمۍ کې په خوله کې ایښی دی څه پروا نه لري. خوله یې نه ده مرداره، ځکه چې د انسان پسخورده او ناوړي مرداري نه دي. بلکې د انسان هم پسخورده او هم یې ناوړي پاکي دي که څه هم چې کافر او یا جنب به وي فرق نه کوي لکه فقهاوو چې لیکلي دي: وحکم عرق کسور (درمختار) فسور آدمی مطلقا ولوجنبا او کافرا الخ طاهر. (**الدرالمختار علی هامش ردالمحتار مطلب فی السور جلد اول صفحه ۲۰۵**)

ولعاب الانسان طاهر لتولده من لحم طاهر اذاحرمته لکرامته لا

لنجاسته وقوله تعالى انما المشركون نجس المراد انهم ذونجاسة معنوية وهو الشرك الخ اما لوتلوث فمه بنجاسة الخ.

**(غنية المستملى فصل فى الاسار صفحه ۱۶۴)**

## آیا د انسان د وریښتانو بیخونه پاک دي او که ناپاک؟

**پوښتنه**: که چیري انسان د بدن د یوې برخي وریښتان وکاږي نو آیا د هغو سرونه پاک دي او که ناپاک؟

**جواب**: وروره! د انسان د بدن د هري برخي وریښتان تر کښلو مخکي ټول پاک دي، مگر چي وکښل شي او پر سرونو یې غوړځگي وي، نو مردار دي لکه ردالمحتار چي لیکي: وشعر الانسان غير المنتوف الخ طاهر (درمختار) قوله غير المنتوف اما المنتوف فنجس المراد رؤسه التى فيها الدسومة. **(ردالمحتار باب المياه جلد اول صفحه ۱۹۱)**

## د مردارو شوو ويلي غوړو او مردارو شوو شیدو او مردارو شوو عسلو د پاکولو طریقه:

**پوښتنه**: که په ویلي شوو غوړو کي چي خلک تېل ورته وایي او همدارنگه په شیدو او عسلو کي که موږک ولوېدی او مړ شو، نو آیا اوس د شریعت په



رڼا کي ددغو شیانو د پاکېدلو لپاره یو داسي طریقه شته چي دغه شیان پاک شي او که نه؟

**جواب**: په درمختار کي راغلي دي:

ويطهر لبن وعسل ودهن يغلى ثلثا. **(الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب تطهير الانجاس مطلب فى تطهير الدهن والعسل جلد اول صفحه ۳۰۸)**

ددې خبري حاصل دادی چي شیدې، عسل او ویلي غوړي تر درې واري جوش ورکولو وروسته پاک بلل کیږي یعني هر وار دي دومره جوش ورکړل شي چي اوبه یې وسوځل شي.

مگر فتاوی شامي لیکلي دي چي په ویلي شوو غوړو کي چي په دې سیمه کي د تېلو په نامه یادیږي وجوشولو ته یې ضرورت نشته، بلکي اوبه دي پکښي واچوي او ښه ډېر دي وښوروي، بیا دي یو گړی کښېږدي چي غوړي د اوبو پر سر راشي، نو غوړي دي څیني را ایسته کړي، درې واري دي دا کار وکړي، بس نور دغه غوړي پاک گڼل کیږي.

**(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه ۲۰۹)**

قال فى الدرر ولوتنجس العسل فتطهيره ان يصب فيه ماء بقدره فيغلى حتى يعود الى مكانه والدهن يصب عليه الماء فيغلى فيعلو الدهن الماء يرفع بشئ هكذا ثلاث مرات اه فقد صرح فى مجمع الزوائد

وشرح القدوری انه یصب علیه مثله ماء ویحرک فتامل.

(**ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۰۹**)

ددغو پورتني شيانو په هکله پوره تفصيل په لاندي ډول دی:

## د عسلو په بوتل کي موږک ولوېدی او هلته مړ شو ددې د پاکېدلو څه طريقه ده؟

**پوښتنه**: د عسلو په غټ بوتل کي موږک ولوېدی او هلته مړ شو مګر چي راوموکښی رژېدلی او شوږېدلی نه ؤ. نو اوس ددې د پاکولو طريقه څه ډول ده؟

**جواب**: د فقهی په کتابونو کي د عسلو د پاکېدلو په هکله راغلي دي چي د عسلو په اندازه اوبه دي پکښي واچول شي يعني څومره چي عسل وي، هغومره اوبه دي پکښي واچول شي او پر اور دي کښېښوول شي يعني جوش دي ورکړل شي، تر څو چي اوبه يې ختمي شي. درې واري دي دا کار وکړي، تر دې وروسته دغه عسل پاک ګڼل کيږي لکه درمختار چي ليکي

ويطهر لبن وعسل ودبس ودهن يغلی ثلاثا الخ. (**الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۰۹**)



## غوړي مردار شول ددې د پاکولو طريقه څه شی ده؟

**پوښتنه**: په غوړو کي موږک ولوېدی او مړ شو يا سپي خوله پکښي ووهل او مردار شول اوس ددې د پاکولو طريقه څه ډول ده؟

**جواب**: که چيري غوړي يخی يعني منجمد وه. نو کوم ځای ته چي د سپي د خولي لوندوالی رسېدلی وي يا موږک پکښي مړ شوی وي هغه اندازه غوړي راجلا کړئ او ويې غورځوئ. نور غوړي پاک دي لکه ردالمحتار چي ليکي وبعض تقور (درمختار)ای تقوير نحوسمن جامد من جوانب النجاسة. (**ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۹۱**)

همدارنګه فتاوی عالمګيري ليکي

الفارة لو ماتت فی السمن ان کان جامد قورماحوله ورمی به والباقی طاهر يوکل وان کان مائعا لم يوکل وينتفع به من غير جهة الاکل مثل الاستصباح و دبغ الجلد وهکذا فی الخلاصة.

(**عالمګيري باب فی النجاسة فصل اول جلد اول صفحه ۴۲**)

دا خو د منجمدو او يخی غوړو د پاکولو طريقه وه. او که غوړي ويلي وه د هغو د پاکولو طريقه فقهاوو داسي بيان کړې ده چي د غوړو په اندازه اوبه دي پکښي واچول شي او جوش دي ورکړل شي ترڅو چي اوبه وسوځل شي. دا

کار دي درې واري وکړي، بس نور نو غوړي پاک ګڼل کیږي لکه درمختار چي لیکي: ویطهر لبن وعسل ودبس ودهن یغلی ثلاثا. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۰۸)

## د مردارو شوو شیدو، یا مردارو شوو اوړو یا نورو مردارو شوو خوراکي شیانو د پاکېدلو طریقه:

**پوښتنه**: که چیري اوړه اخښل شوي وه، سپی راغی خوله یې پکښې ووهل او مردار یې کړل، یا شیدې مرداري شوي وې یا داسي نور خوراکي شیان مردار شول ددغو شیانو د پاکېدلو یوه غټه قاعده راوښوئ؟

**جواب**: په دې هکله عمومي قاعده داده که چیري وچ شي ؤ لکه وچ اوړه یا داسي نور او یا که لوند شی ؤ مګر منجمد ؤ لکه یخی غوړي، اخښل شوي اوړه یا داسي نور... ددې قسم شیانو د پاکېدلو طریقه داده کوم ځای ته چي نجاست ور رسېدلی وي مثلاً په وچو اوړو یا یخی غوړو کي سپي خوله ووهل یا موږک پکښې ولوېدی او مړ شو، نو ددغه نجاست د شاوخوا څخه دي یو څه اندازه هغه شی را ایسته کړئ هغه دي وغورځوي نور شی پاک دی مثلاً په یخی غوړو کي موږک ولوېدی او مړ شو، نو د موږک سره نژدې شاوخوا غوړي دي راټول کړي او ودې غورځوي، نور غوړي پاک دي همدا حکم د ټولو



وچو او منجمدو شیانو دی لکه فقهاء چي لیکي:

وبعض تقور (درمختار)ای تقویر نحوسمن جامد من جوانب النجاسة.

(ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۹۱)

همدارنګه فتاوی عالمګیري لیکي:

الفارة لو ماتت فی السمن ان کان جامد قورماحوله ورمی به والباقی طاهر یوکل وان مائعا لم یوکل وینتفع به من غیر جهة الاکل مثل الاستصباح و دبغ الجلد وهکذا فی الخلاصة.

(عالمګیري باب فی النجاسة فصل اول جلد اول صفحه ۴۲)

او کوم شیان چي نرم دي لکه شیدې، ویلي غوړي یا داسي نور د هغوی د پاکېدلو دا طریقه فقهاوو بیان کړې ده چي ددغه شي په اندازه اوبه دي پکښې واچول شي او جوش دي ورکړل شي تر څو چي اوبه یې وسوځل شي دغه عمل دي درې واري وکړي، بس نور نو دغه شی پاک ګڼل کیږي مثلاً یو تیم ویلي غوړي مردار شول، نو د پاکولو طریقه یې داده چي دغه غوړي دي په یو غټ شي کي واچول شي او د غوړو په اندازه دي اوبه ورسره واچول شي او جوش دي ورکړل شي تر څو چي اوبه یې وچي شي، دا کار دي درې واري وکړي، بس نور نو دغه غوړي پاک ګڼل کیږي لکه درمختار چي لیکي: ویطهر لبن وعسل ودبس ودهن یغلی ثلاثا. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۰۸)

## يو هندو پينه دوز موچني يا بوټونه ګنډل، مګر دا نه ده معلومه چي پاكي اوبه يې پكښي استعمال كړي دي او كه مرداري:

**پوښتنه** : دلته يو هندو پينه دوز دی، ټول خلک وده ته خپلي موچني، بوټونه او چوټې د ګنډلو لپاره وركوي، دا خو هر چا تـه معلومـه ده چي پينه دوزان د ګنډلو پر وخت د اوبو استعمال هم كوي، مګر دا نـه ده معلومـه چي دغه هندو پينه دوز پاكي اوبه استعمالوي او كه مرداري، نو آيا پر دغو چوټو د پاكو حكم كيږي او كه د مردارو؟

**جواب** : دغه ټولي چوټې، موچني او بوټونه چي هندو پينه دوز ګنډلي دي پاكي ګڼل كيږي، ځكه چي د شک پر بناء د ناپاكوالي حكم نه شي كېدای لكه فقهاوو چي ليكلي دي:

اليقين لايزول بالشک. (**الاشباه والنظائر صفحه ۷۵**)

همدارنګه په دې هكله درمختار ليكي:

فلوعلم نتنه بنجاسة لم يجز ولوشک فالاصل الطهارة. (**الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب المياه جلد اول صفحه ۱۷۱**)



## كه چيري كارګه يا چرګې په شيدو يا اوبو كې مشوكه ووهل آيا په دې سره دغه اوبه يا شيدې ناپاكي بلل كيږي او كه نه؟

**پوښتنه** : كه چيري كارګه يا چرګې د شيدو په پياله كې يا د اوبو په لوښي كې مشوكه ووهله آيا دغه شيدې او دغه اوبه ناپاكي شوې او كه نه؟

**جواب** : وروره! د دغو شيانو پسخورده پاكه ده، نو په دې وجه سره چي كارګه يا چرګه د شيدو يا اوبو په لوښي كي مشوكه ووهي په دې سره نه اوبه او نه هم شيدې مرداريږي لكه درمختار چي ليكي:

وسورهرة ودجاجة مخلاة الخ وسباع طير لم يعلم ربها طهارة منقارها وسواكن بيوت طاهر للضرورة مكروه تنزيها فی الاصح ان وجد غيره والا لم يكره اصلا. (**الدرالمختار على هامش ردالمحتار مطلب فی السور جلد اول صفحه ۲۰۶**)

## د شيدو د لوښلو په وخت كې د حيوان بولي په لوښي كې لوېدل:

**پوښتنه** : كه يو څوک بزه يا غوا لوشي، خو په دې وخت كې دغه حيوانان بولي وكړي او يو څه بولي د شيدو په لوښي كې هم ولوېږي آيا په دې

سره شیدې مرداریږي او که نه؟

**جواب**: هو، هغه شیدې چې بولي پکښې ولویږي مرداري شوې.

**(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه ۲۱۰)**

## که خنزیر په څاه کې ولویږي او بیرته ژوندی راوکښل شي آیا ددغه څاه اوبه پاکي ګڼل کیږي او که نه؟

**پوښتنه**: یو خنزیر په څاه کې ولوېدی، مګر بیرته ژوندی راوکښل شو اوس پوښتنه داده چې آیا ددغه څاه اوبه پاکي دي او که ناپاکي؟

**جواب**: وروره! ددغه څاه اوبه ناپاکي شوې ځکه چې خنزیر نجس العین دی. خلا جلد خنزیر فلایطهر (درمختار) لانه نجس العین بمعنی ان ذاته بجمیع اجزائه نجسة حیا ومیتا. **(ردالمحتار باب المیاه جلد اول صفحه ۱۸۸)**

نو په دې صورت کې به درې سوه سلواغې راکاږي چې د دوو سوو سلواغو راکښل واجب او ضروري دي او د پاته سلو سلواغو راکښل مستحب دي، تر دې وروسته هم د څاه اوبه او هم سلواغه او رسی ټول پاک ګڼل کیږي لکه فقهاء چې لیکي: جزم به فی الکنز والملتقی وهومروی عن محمد رحمة الله علیه



وعلیه الفتوی، خلاصه وتاتارخانیه عن النصاب وهو المختار معراج عن العنابیة وجعله فی العنایة روایة عن الامام وهو المختار والایسر کما فی الاختیار وافاد فی النهر ان المأتین واجبتان والمأة الثالثة مندوبة الخ.

**(فتاوی شامی جلد اول صفحه ۱۹۸)**

اذا وقعت نجاسة الخ فی بئر دون القدر الکثیر الخ فینزح کل مائها الخ وان تعذر فیقدر مافیها الخ وقیل یفتی بمائتین الی ثلثمائة وهذا ایسر وذاک احوط. **(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار فصل فی البئر جلد اول صفحه ۱۹۴)**

## د موږک بچی که په یو شي کې ولویږي آیا هغه شی مرداریږي او که نه؟

**پوښتنه**: که چیرې د موږک بچي په عسلو، شربتو، شیدو یا غوړو کې پیدا شي، نو ددې د طهارت څه حکم دی او په ریزه ریزه کېدلو سره د نجاست حکم بدلیږي که څنګه؟

**جواب**: د موږک د بچو په هکله د درمختار په باب الانجاس کې راغلي دي وسیجئ اخر الکتاب ان خرء ها لایفسد ما لم یظهر اثره. **(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۹۴)**

يعني د موږک مرداري شی نه نجس کوي تر څو چي اثر يې پکښې ښکاره نه شي يعني چي دغه د موږک مرداري دومره زياته نه وي چي د شي رنګ، خوند يا بوی وربدل کړي او په آخر د کتاب مسائل شتی کي يې ليکلي دي:

ولا يفسد خرء الفارة الدهن والماء ولاحنطة للضرورة الا اذا ظهر طعمه او لونه فی الدهن ونحوه لفحشه وامکان التحرز حينئذ. خانيه.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار مسائل شتی جلد ۵ صفحه ۶۴۰)

نو کوم شيان چي تاسي په سوال کي ليکلي دي که چيري دغو شيانو ته د موږک مرداري دومره ډېره نه وي ورلوېدلې چي ددغو شيانو رنګ يا خوند يې وربدل کړی وي، پاک دي او که چيري کثير فاحش يعني ډېر ورلوېدلی وي چي رنګ يا خوند يې وربدل کړی وي په هغه صورت کي بيا دغه شيان مردار ګڼل کيږي همدا رنګه رژېدل او نه رژېدل ټول په دې باره کي سره برابر دي

(فتاوی دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ۲۱۱)

## آيا په مردارو خټو سره جوړي شوي خښتي په وچېدلو سره پاکېدای شي؟

**پوښتنه**: کومي خښتي چي د مردارو خټو څخه تياري شوي وي، آيا دغه خښتي بې له پخېدلو صرف په وچېدلو سره پاکېدای شي او که نه، په



حديث شريف کي چي کوم حکم د مځکي د پاکېدلو په هکله په دې الفاظو سره راغلی دی چي **ذکات الارض يبسها** آيا دغه حکم صرف د مځکي لپاره دی او که د هغو ټولو شيانو لپاره هم دی چي د مځکي د جنسه څخه وي لکه خښتي اودا سي نور؟

**جواب**: کومي خښتي چي د مرداري خټي څخه تياري کړل شوي وي، بيا هغو ته نجاست ولګيږي، نو ددغو خښتو حکم دادی که چيري په مځکه کي مفروش يعني په مځکه يا دېواله کي کار شوي وي. نو په وچېدلو سره پاکيږي يعني ددې ډول خښتو د پاکېدلو حکم د مځکي په شان دی. او که چيري همداسي اېښوول شوي وي يعني د يوه ځايه څخه بل ځای ته نقليږي. نو دغه ډول خښتي بيا د مځکي په حکم کي نه دي يعني په وچېدلو سره نه پاکيږي کما فی الدرالمختار وحکم آجر ونحوه کلبن مفروش الخ کذلک ای کارض فيطهر بجفاف الخ قوله مفروش ای علی الارض مثله البلاط اما لوکان موضوعين ينقلان ويحولان فانهما لايطهر ان بالجفاف لانهما ليسا بارض. (طحطاوی علی الدرالمختار باب الانجاس جلداول صفحه۱۵۸)

## سپي د ښوروا په کټوه کې خوله ووهل اوس ددې د پاکېدلو طريقه څه شی ده؟

**پوښتنه**: سپي د ښوروا کټوې ته سر ورننه ايستی په ښوروا کې يې خوله ووهله او يو څه يې وهم څښل، نو اوس ددغې ښوروا د پاکېدلو طريقه راوښياست؟

**جواب**: دداسې شي د پاکېدلو طريقه فقهاوو داسې ښوولې ده:

څومره چې ښوروا ده هغومره نوري اوبه په کټوه کې واچوه او جوش ورکړه، تر هغو جوش ورکړه چې هغه اوبه چې تا اوس ورواچولې ټولې ختمې يعني وچې شي، دغه کار درې واري وکړه، تر دې وروسته ښوروا پاکه ګڼل کيږي لکه ردالمحتار چې ليکي: ويطهر لبن وعسل ودبس ودهن يغلى ثلاثا (درمختار) قال فى الدر ولو تنجس العسل تتطهيره ان يصيب فيه ماء بقدر فيغلى حتى يعود الى مكانه الخ هكذا ثلاث مرات.(ردالمحتار باب الانجاس جلداول صفحه ۳۰۹)

## آيا غليظه نجاست په لږ پرېولو سره خفيفه جوړيږي او كه نه؟

**پوښتنه**: غليظه نجاست كه لږ پرېوله شي، نو ايا اوس به هم د غليظه



حكم پر كيږي او كه په دې صورت كې ددې څخه خفيفه جوړيږي؟

**جواب**: غليظه نجاست چې تر څو پورې بيخي ختم شوی نه وي، تر هغه وخته پورې غليظه دی.

**(فتاوی دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ۲۱۲)**

همدارنګه درمختار ليکي:

وكذا يطهر نجاسة مرئية بقلعها الخ. **(الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۰۳)**

## د اودس وچولو لپاره چې لوټه يا ډبره يو وار استعمال شي، ددې ډبرې دوهم ځل استعمالول روا نه دي؟

**پوښتنه**: كه يو سړی د اودس وچولو لپاره يو لوټه يا ډبره استعمال كړي، بيا چې دغه لوټه يا ډبره په لمر كې وچه شي. بيا دوهم وار په اودس وچولو كې ددې ډبرې يا لوټې څخه كار اخيستل روا دي او كه نه؟

**جواب**: نه، وروره! د داسې ډبرې يا لوټې استعمالول چې يو وار مخکې استعمال شوې وي روا نه دی لکه ردالمحتار چې ليکي: وتطهرارض بخلاف نحو بساط بيبسها اى جفافها ولوبريح الخ (درمختار) اى حصير وثوب

وبدن مما ليس ارضا ولامتصلا بها اتصال قرار.

**(ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۸۶)**

وروره! ددې مسئلې سره سره يو بله قاعده هم زده کړه هغه داده که چيري يو کار د صحت د خرابۍ باعث جوړيږي، نو شرعاً د هغه شي استعمال روا نه دي، ځکه چي پر هر مسلمان د خپل ځان ساتنه او حفاظت د شريعت له نظره لازم او ضروري ده.

## آيا د سپي لانده يا وچ وريښتان پـاک دي او کـه مـردار؟

**پوښتنه**: آيا د سپي وريښتان پاک دي او که ناپاک يعني که د سپي وريښتان په يو شي کي ولويږي، نو آيا هغه شي مرداريږي او که نه؟

**جواب**: وروره! د سپي وريښتان پاک دي، ځکه چي سپى د خنزير په ډول نجس العين نه دى درمختار ليکي چي د غوښو په مردار والي کي يې شک نشته، مګر وريښتان يې پاک دي

ولاخلاف فى نجاسة لحمه وطهارة شعره الخ. **(الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب المياه جلد اول صفحه ۱۹۲)**



## ايا بنګي چي د خاه ځخه اوبه راوکاږي په دې سره خاه مرداريږي که نه او آيا د بنګي يعني خرکار او يا مشرک په لوښي کي اوبه ځښل يا خواړه خوړل روا دي که نه؟

**پوښتنه**: که چيري بنګی د خاه څخه اوبه راوکاږي او يا يو څوک د يو هندو په لاس پاخه شوي شيان وخوري او يا د بنګي يا هندو په لوښو کي خوراک وکړي آيا دا کار د مسلمان لپاره روا دی او که نه؟

**جواب**: هو وروره! تر څو چي ددغو لوښو مردار کېدل يقيني شوي نه وي، تر هغه وخته دا ټول پاک ګڼل کيږي، په شک سره پر يو پاک شي د ناپاک حکم نه شي کېدای، د فقهي په کتابونو کي دغه مسئله ييخي په کثرت سره راغلې ده. وقد مر انهم لم يعتبروا احتمال النجاسة الخ.

**(ردالمحتار فصل فى البئر جلد اول صفحه ۱۹۷)**

ويکره الاکل والشرب فى اوانى المشرکين قبل الغسل ومع هذا لواکل او شرب فيها قبل الغسل جاز.

**(فتاوى عالمگيرى کتاب الکراهية جلد۵ صفحه ۳۵۸)**

## د خنزير د بدن سره چي جامه وموښلي آيا دغه جامه مرداره شوه که نه؟

**پوښتنه**: په عوامو خلکو کي دا خبره مشهوره ده چي که د يو چا د کالو د يوې ځوړي سره مثلاً د قميص د لمني سره خنزير وموښلي. يا مثلاً يو سړی خنزير ته لاس وروړي، نو په دې سره ټوله کالي مردار شول او د لاس په وروړلو سره ټول بدن مردار شو، آيا دا خبره صحيح ده، آيا رښتيا هم ټوله کالي مردار شول يعني ټوله کالي به پرېولي او که به صرف هغه ځای پرېولي چي د خنزير سره موښلېدلی وي. او آيا همدارنګه د لاس په وروړلو سره د انسان ټول بدن مرداريږي او که به صرف لاس پرېولي؟

**جواب**: وروره! دا خبره بيخي غلطه ده، دا يو غلط مشهور دی، اصل خبره داده که چيري د خنزير بدن وچ وي او د انسان د کالو او يا بدن سره وموښلي نو په دې سره نه د انسان بدن مرداريږي او نه کالي، يعني په دې صورت کي د کالو د پرېولو او د لمبېدلو هيڅ ضرورت نشته، مګر که چيري د خنزير بدن لوند وي او د يو شي سره وموښلي، نو په دې صورت کي صرف د هغه ځای پرېولل کافي دي چي د خنزير د بدن لوندوالی ورته رسېدلی وي، هغه که کالي وي او که د بدن يوه برخه وي.

(فتاوی دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ۲۱۷)

همدارنګه غنية المستملی شرح منية المصلی ليکي: **اما النجاسة الغليظة**



الخ كالعذرة الخ ولحم الخنزير وسائر اجزائه هذه الاشياء نجاستها معلومة فى الدين بالضرورة لاخلاف فيها الاشعر الخنزير لما ابيح الانتفاع للخرز ضرورة قال محمد رحمة الله عليه لووقع فى الماء لاينجسه.

(غنية المستملی صفحه ۱۴۴)

## د شيدو خوړونکي کوچني ماشوم بولي هم د لوی سړي د بولو په شان مرداري او غليظه نجاست دی؟

**پوښتنه**: ښکاره خبره ده چي د ډېر کوچني ماشوم مور ته ډېر تکليف دی چي د خپل کوچني د بولو څخه ځان وساتي، که چيري د کوچني مور د لمانځه لپاره نور کالي اغوندي بيا هم د کوچني د بولو څخه د همدې کالو ساتل هم ورته مشکل دي، ځکه چي د لمانځه د کالو په دوران کي لا هم د کوچني د اخيستلو ضرورت ورته پېښېدای شي، مور اورېدلي دي چي د ډېر کوچني بولي مرداري نه دي آيا دغه خبره صحيح ده که نه؟

**جواب**: وروره! د کوچني ماشوم بولي هم د لوی سړي د بولو په شان مرداري او غليظه نجاست دی، دا فرق نه کوي که هر څومره ډېر کوچنی هم وي خو د بولو څخه يې ځان ساتل ضروري دي او که چيري پر بدن يا کالو باندي تر يوه درهم زياتي بولي ولګيږي، نو پرېولل يې ضروري دي لکه فقهاء چي

ليکي قدر الدرهم ومادونه من النجس المغلظ کالدم والبول والخمر الخ جازت الصلوة معه وان زاد لم تجز (هدايه) قوله والبول ولو من صغير لم ياکل ملتقى الابحر.

(حاشيه هدايه باب الانجاس جلد اول صفحه ۷۱)

## يو سړی د خپلي کوروالا سره يو ځای شو کوروالی يې وکړ، وروسته يې خپل خاص اندام په يو ټوکره وچ کړ او پاک کالي يې واغوستل، تر دې وروسته يې بدن خوله وکړل:

**پوښتنه**: يو سړی د خپلي کوروالا سره يو ځای شو کوروالی يې وکړ. وروسته يې خپل اندام په يو ټوکره وچ کړ او پاک کالي يې واغوستل. تر دې وروسته يې بدن خوله وکړل او دا خوله د کالو سره ولګېدل. نو آيا په دې سره يې کالي مردار شول که نه؟

**جواب**: فتاوی دارالعلوم ديوبند ليکي چي په دې صورت کي کالي نه مرداريږي. همدارنګه ردالمحتار ليکي:

نام فعرق او مشى على نجاسة ان ظهر عينها تنجس والا لا (درمختار) قوله ان ظهر عينها المراد بالعين مايشمل الاثر لانه دليل على



وجودها الخ. (ردالمحتار باب الاستنجاء جلد اول صفحه ۳۲۰)

## که چيري کالو ته نجاست ورسېدی يا خاورين لوښي مردار شول، وروسته وچ شول او د نجاست اثر بيخي له منځه ولاړ؟

**پوښتنه**: که چيري کالو ته نجاست ورسېدی يا خاورين لوښي مردار شول. وروسته وچ شول او د نجاست اثر بيخي له منځه ولاړ نو دا کالي يا دا لوښي بې له پرېولو پاک ګڼل کيږي که ناپاک؟

**جواب**: وروره! په صرف وچېدلو سره دغه شيان نه پاکيږي يعني نه کالي په صرف وچېدلو سره پاکيږي او نه خاورين لوښي. بلکي دواړه شيان پسله پرېولو پاکيږي لکه هدايه چي ليکي

والنجاسة ضربان مرئية وغير مرئية فما كان منها مرئيا فطهارتها بزوال عينها لان النجاسة حلت المحل باعتبار العين فتزول بزواله الخ ومالیس بمرئى فطهارته ان يغسل حتى يغلب على ظن الغاسل انه قد طهر. (هدايه باب تطهير الانجاس جلد اول صفحه ۷۴)

## پر کومو کالو چې شراب یا د خنزیر وینه وموښلي د هغه د پاکولو لاره:

**پوښتنه**: که چیرې پر کالو باندې شراب یا د خنزیر وینه یا د خنزیر غوښه ولویږي، نو ددې د پاکولو څه طریقه ده؟

**جواب**: په درې ځلي پرېولو سره دا ټول شیان پاکیږي یعنې لکه بولې یا مرداري چې څه ډول پاکیږي دا شیان هم داسې پاکیږي، درمختار لیکي:

وكذا يطهر محل نجاسة مرئية بعد جفاف كدم بقلعها اى بزوال عينها واثرها ولوبمرة او بما فوق ثلاث فى الاصح الخ ويطهر محل غير ها اى غير مرئية بغلبة ظن غاسل لومكلفا والافمستعمل طهارة محلها بلا عدد به يفتى وقدر ذلك لموسوس بغسل وعصر ثلاثا او سبعا فيما ينعصر الخ. (**الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۰۲، ۳۰۶**)

## د هغو انګریزي دوایانو حکم چې شراب یا الکحل په ګډ شوي وي:

**پوښتنه**: په ځینو انګریزي دوایانو کې شراب یا الکحل ګډ شوي وي، مګر دومره نه وي چې سړی دې نشه کړي. او په ځینو دوایانو کې بیا الکحل



ددې وجې ګډ شوي وي چې د هغو داروګانو چې په دوایانو کې استعمال شوې دي حفاظت او ساتنه وکړي او بله خبره داده که چیرې د شرابو څخه سرکه جوړه شي نو آیا خوراک یې روا دی که نه؟

**جواب**: په کومه دوا کې چې شراب ګډ شوي وي، د هغې استعمالول حرام دي، که څه هم چې په دې خبره کې فقهاء سره مختلف دي مګر ډېر فقهاء ددې شي د حراموالي قائل دي لکه درمختار چې لیکي: اختلف فى التداوي بالمحرم وظاهر المذهب المنع. (**الدرالمختار عى هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۹۴**)

او د دوایانو د حفاظت په غرض سره دغه حرام شیان ګډول د دوی پاکوالی او حلالوالی منځ ته نه راوړي، همدارنګه د کوم شي چې ډېره اندازه استعمال یې حرام وي لږ اندازه یې هم حرام ده لکه دا مبارک حدیث چې دی: ما اسكر كثيره فقليله حرام. (**مشكوة شريف باب بيان الخمر صفحه ۳۱۷**)

یعني د کوم شي چې ډېر استعمال یې نشه راولي لږ یې هم حرام دی. نو یو څاڅکی شراب که څه هم چې نشه به نه راولي بیا هم حرام دي او په کومه دوا کې، چې صرف یو څاڅکی شراب ګډ شوي وي، بیا هم دغه دوا حرامه او نجسه ګرځي لکه درمختار چې لیکي: وبه يعلم ان ما يستقطر من وردى الخمر وهو المسمى بالعرقى فى ولاية الروم نجس حرام كسائر اصناف الخمر (**الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب الانجاس صفحه ۳۰۰**)

نو کوم فقهاء چي په حرام شي سره تداوي حرامه بولي هغوی لیکي چي په حرام او نجس شي باندي د علاج کولو لپاره په دې شرط اجازت ورکول کېدای شي چي مسلمان ډاکتر ورته ووايي چي ستا د ناروغۍ د علاج لپاره د شرابو استعمال ضروري دی، بې له شرابو بله دوا ستا د ناروغۍ د علاج لپاره ګټوره نه ده. احتیاطًا صرف د غیر مسلم ډاکتر قول دغه فقهاء د دې لپاره کافي نه بولي، دا ځکه چي دوی وايي چي په غیر مسلم ډاکتر پوره اعتماد نه شي کېدای. شايي چي بله دوا به هم د دغه مريض د علاج لپاره موجوده وي مګر دا چي ډېر غیر مسلم قومونه د شرابو استعمال بې له څه مشکله روا بولي نو ځکه کېدای شي چي غير مسلم ډاکتر به وناروغه ته بې له کومه ضرورته په شرابو سره علاج وفرمايي لکه ردالمحتار چي ليکي:

**يجوز للعليل شرب البول والدم والميتة للتداوى اذا اخبره طبيب مسلم ان شفائه فيه ولم يجد من المباح مايقوم مقامه وهل يجوز شرب القليل من الخمر للتداوى فيه وجهان انتهى مختصرًا. (ردالمحتار كتاب الحظر والاباحة فصل فى البيع جلد٦ صفحه ٣٨٩)**

د تداوي بالمحرم په هکله د ائمه مبارکانو څخه د جواز او عدم جواز مختلف صورتونه رانقل شوي دي چي توضيح السنن نومي کتاب په لاندي ډول را اخيستي دي

(۱) که چيري د مخمصې او اضطرار حالت ؤ، نو که د حرام شي د استعمال څخه بغير د هلاکت قوي انديښنه وه. په دې صورت کي د ضرورت په اندازه



په حرامو سره تداوي بالاتفاق جائز ده.

(۲) البته که چيري د هلاکت انديښنه نه وه، بلکي صرف د ناروغۍ د ختمېدلو لپاره په حرامو سره د علاج کولو ضرورت ؤ، نو په دې صورت کي د آئمه ؤ اختلاف دی چي په لاندي ډول دی:

۱- د حضرت امام مالک رحمه الله په نزد په حرامو سره د ناروغۍ علاج کول مطلق جائز دی

۲- د حضرت امام شافعي رحمه الله په نزد په دغه صورت کي تداوي بالمحرم مطلق ناجائز ده.

۳- حضرت امام بيهقي رحمه الله په مسکراتو يعني نشه راوستونکو شيانو سره د ناروغۍ علاج ناجائز بللی دی، مګر د دغو شيانو څخه ماسېوا په نورو محرماتو سره يې بيا د ناروغۍ علاج جائز بللی دی.

۴- په احنافو حضراتو کي په ذکر شوي دوهم صورت کي د حضرت امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله او حضرت امام محمد رحمه الله په نزد مطلقًا د عدم جواز حکم ورکول شوی دی

۵- امام طحاوی رحمه الله فرمايلي دي چي د شرابو څخه ماسېوا د سختي مجبورۍ په حالت کي په حرامو سره د ناروغۍ علاج کول درست دي

**(شرح معانی الاثار جلد اول صفحه ۵۴)**

۶- علامه انورشاه کشميري رحمه الله فرمايلي دي چي په شامي کي راغلي دي چي د ضرورت په وخت کي تداوي بالحرام درست دي

۷- د امام ابويوسف رحمه الله مسلک دادی چي که د يو ماهر طبيب دا رايه وي

چي د تداوي بالحرام څخه ماسېوا د ناروغۍ ورکېدل نه شي کېداى، نو په دې صورت کي په حرامو سره د ناروغۍ علاج جائز دى.

**(توضيح السنن جلد اول صفحه ١٦٣)**

ستاسي د هغي پوښتني په جواب کي چي که د شرابو څخه سرکه جوړه شي څه حکم يې دى په دې هکله بايد ووايم چي د شرابو څخه که چيري سرکه جوړه شي. نو په دې صورت کي خو د شرابو هيئت او حقيقت له منځه ځي او انقلاب عين رامنځته کيږي، نو ددې وجې يې استعمال روا دى او شراب په دوا کي په ګډولو سره انقلاب حقيقت نه شي کېداى په شامي کي راغلي دي.

**فصار ملحاً الخ فان ذلک کله انقلاب حقيقة الى حقيقة اخرى لامجرد انقلاب وصف الخ.**

**(ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ٢١٠)**

فقهاء ليکي چي پر انقلاب عين د پاکۍ حکم کيږي لکه چي فرمايي

**جعل الدهن النجس فى صابون يفتى بطهارته لانه تغير والتغير يطهر عند محمد ويفتى به للبلوى اه (مجتبى كذا فى ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ٣١٥)**

**توجمه**: مردار غوړي که چيري په صابونه کي ګډ شي، نو پاکيږي. ځکه چي د غوړو حقيقت بدليږي او د حقيقت بدلون د امام محمد رحمه الله په نزد پاکوالى راولي او د عموم بلوى په وجه پر دې باندي فتوى ده



همدارنګه غنية المستملى شرح منية المصلى ليکي:

ولو احرقت العذرة اوالروث فصار كل منهما رماداً او مات الحمار فى المملحة وكذا ان وقع فيها بعد موته وكذا الكلب والخنزير لووقع فيها فصار ملحاً طهر عند محمد رحمه الله واكثر المشائخ اختار واقول محمد رحمه الله وعليه الفتوى لان الشرع رتب وصف النجاسة على تلك الحقيقة وقدزالت بالكلية فان الملح غير العظم واللحم فاذا صارت الحقيقة ملحاً ترتب حكم الملح حتى لواكل الملح جاز ونظيره النطفة نجسة وتصير علقةً وهى نجسة وتصير مضغةً فتطهر وكذا الخمر تصير خلا وعلى قول محمد فرعوا طهارة صابون صنع من دهن نجس وعليه يتفرع مالو وقع انسان او كلب فى قدر الصابون فصار صابونًا يكون طاهرًا لتبدل الحقيقة انتهى مختصراً. **(غنية المستملى شرح منية المصلى فصل فى الاسارى صفحه ١٨٩)**

همدارنګه د درمختار د اول جلد په ٢١٠ صفحه کي داسي راغلي دي:

**ويطهر زيت تنجس بجعله صابونا الخ** او ددې د پاکېدلو وجه انقلاب عين يعني د شي د حقيقت او ماهيت بدلون دى، په شامي کي تر دغه قول لاندي راغلي دي: **وعليه يتفرع مالو وقع انسان او كلب فى قدر الصابون**

فصار صابونا يكون طاهرا لتبدل الحقيقة. (ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۹۱)

د لورو عبارانو څخه لاندي دغه شيان ثابتيږي

۱ - د حقيقت په انقلاب سره د طهارت او نجاست حكم بدليږي.

۲ - د حقيقت د انقلاب د طهارت دغه حكم د امام محمد رحمه الله قول دی. پر همدې قول فتوی ده او اكثرو مشائخو همدا قول اختيار كړی دی

## غير مسلم قومونه كه چيري په يو لوښي كي د خنزير غوښي خوري آيا دغه لوښي په پرېولو سره پاكېدای شي او كه نه؟

**پوښتنه** : په كوم لوښي كي چي غير مسلم خلك د خنزير غوښي خوري. آيا دغه لوښی په پرېولو سره پاكېدای شي او كه نه؟

**جواب** : هو. وروره! داسي لوښی په پرېولو سره بالكل پاكېدای شي لكه فقها، چي ليكي: والنجاسة ضربان مرئية وغير مرئية فما كان منها مرئيا فطهارتها بزوال عينها لان النجاسة حلت المحل باعتبار العين فتزول بزواله الخ ومالیس بمرئى فطهارته ان يغسل حتى يغلب على ظن الغاسل انه قد طهر. (هدايه باب تطهير الانجاس جلد اول صفحه ۷۴)



## دوبي چي د خلكو كالي پرېولي كه چيري ددغو كالو څاڅكي د دوبي پر كالو ولوېږي آيا دوبي په دغو كالو كي لمونځ كولای شي:

**پوښتنه** : دوبيان چي د خلكو كالي پرېولي، په دې كي هر ډول كالي موجود وي يعني دا هم كېدای شي چي ټوله دې پاک وي او دا هم كېدای شي چي ټوله دي مردار وي، نو دوبي چي كله كالي پر تختـه وهي. د هغو كالو څاڅكي دده وكالو ته راغورځي، اوس پوښتنه داده چي آيا دوبي په خپلو دغو كالو كي لمونځ كولای شي او كه نه؟

**جواب** : د مسئلې جواب دادی چي د عموم بلوی په وجه سره د دوبيانو پر بدن او كالو باندي چي كوم څاڅكي د اثواب مغسوله پر تختو باندي د وهلو په وجه لوېږي هغه معاف دي لكه په شامي كي چي راغلي دي وفى الفتح وما ترشش على الغاسل من غسالة الميت مما لايمكنه الامتناع عنه مادام فى علاجه لاينجسه لعموم البلوى الخ. (ردالمحتار باب الانجاس مطلب العرقى الذى يستقطرالخ جلد اول صفحه ۳۰۰)

او د دوبيانو د كالو د طهارت بله وجه دا هم كېدای شي هغه داده چي د اثواب مغسوله د پاكوالي او ناپاكوالي په هكله خو شک موجود دی او دا يقيني نه دي چي مردار دي وي ، چي داسي ده نو بيا خو دا د فقهي غټه قاعده

ده چي اليقين لايزول بالشک. (**الاشباه والنظائر صفحه ۷۵**)
يعني په شک سره د نجاست حکم نه شي کېداى.

## د سيبو په مربا کي که سپي خوله ووهله ددې د پاکېدلو طريقه څه شى ده:

**پوښتنه**: د سيبو يا بل شي په مربا کي که سپي خوله ووهله يعني مردار شول. نو ددې د پاکېدلو طريقه څه شى ده؟

**جواب**: ددې سوال جواب مخته تېر شوى دى، ځکه چي لږ مخکي موږ په دې هکله يوه عامه قاعده بيان کړل. بيا به هم ستاسي لپاره يو وار بيا ددې راز پوښتني جواب وليکو:

په دې هکله عمومي قاعده داده که چيري وچ شي ؤ لکه وچ اوړه يا داسي نور او يا که لوند شى ؤ مگر منجمد ؤ لکه يخى غوړي ، اخښل شوي اوړه يا داسي نور.... ددې قسم شيانو د پاکېدلو طريقه داده کوم ځاى ته چي نجاست ور رسېدلى وي مثلاً په وچو اوړو يا يخى غوړو کي سپي خوله ووهل يا موږک پکښي ولوېدى او مړ شو، نو ددغه نجاست د شاوخوا څخه دي يو څه اندازه هغه شى را ايسته کړئ هغه دي وغورځوي نور شى پاک دى مثلاً په يخى غوړو کي موږک



ولوېدى او مړ شو، نو د موږک سره نژدې شاوخوا غوړي دي راټول کړي او ودې غورځوي، نور غوړي پاک دي همدا حکم د ټولو وچو او منجمدو شيانو دى لکه فقهاء چي ليکي:

وبعض تقور (درمختار)اى تقوير نحوسمن جامد من جوانب النجاسة. (**ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۹۱**)

همدارنگه فتاوى عالمگيري ليکي:

الفارة لو ماتت فى السمن ان كان جامدا قورماحوله ورمى به والباقى طاهر يوكل وان كان مائعا لم يوكل وينتفع به من غير جهة الاكل مثل الاستصباح و دبغ الجلد وهكذا فى الخلاصة.

(**عالمگيري باب فى النجاسة فصل اول جلد اول صفحه ۴۲**)

او کوم شيان چي نرم دي لکه شيدې، ويلي غوړي يا داسي نور د هغوى د پاکېدلو دا طريقه فقهاوو بيان کړې ده چي ددغه شي په اندازه اوبه دي پکښي واچول شي او جوش دي ورکړل شي تر څو چي اوبه يې وسوځل شي دغه عمل دي درې واري وکړي، بس نور نو دغه شى پاک گڼل کيږي مثلاً يو ټيم ويلي غوړي مردار شول، نو د پاکولو طريقه يې داده چي

دغه غوړي دي په يو غټ شي کي واچول شي او د غوړو په اندازه دي اوبه ورسره واچول شي او جوش دي ورکړل شي تر څو چي اوبه يې وچي شي، دا کار دي درې واري وکړي، بس نور نو دغه غوړي پاک ګڼل کيږي لکه درمختار چي ليکي:

ويطهر لبن وعسل ودبس ودهن يغلى ثلاثا.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۰۸)

## آيا هغه غټ حوض چي ګاميښي پکښي کښېنول کيږي پاک دی او که نه:

**پوښتنه**: زمونږ په سيمه کي يو غټ حوض دی. په دې کي خلک ګاميښي کښېنوي. مطلب د صفايي انتظام يې نه شي کېدای، نو آيا د دغه حوض په اوبو سره غسل او اودس روا دی او که نه؟

**جواب**: وروره! غټ حوض د جاري اوبو په حکم کي دی دا چي غټ حوض کوم يو دی اندازه يې څومره ده، په دې هکله صاحب د هدايي دا راز ليکي:

والغدير العظيم الذى لايتحرک احد طرفيه بتحريک الطرف الاخر.

(هدايه صلوة صفحه ۴۱)

**ترجمه**: غټ حوض هغه حوض ته ويل کيږي چي د يوه طرف په ښورولو



سره يې بل طرف حرکت نه کوي

د غټ حوض په هکله تحقيق مخ ته ددې کتاب په ۵۳۵ صفحه کي تېر شوی دی که غواړئ په دې هکله تحقيق وګورئ نو هغې صفحې ته رجوع وکړئ، خو د اسانۍ لپاره بايد ووايم چي هغه حوض د روانو اوبو په حکم کي راځي چي لس په لس کي شرعي ګزه وي يا په بل عبارت پنځه په پنځه کي انګرېزي ګزه وي چي په بل عبارت سره څلور مېټره او اووه پنځوس سانتي او دوې ملی کيږي

د لس په لس کي مطلب دا دی چي لس شرعي ګزه به يې اوږدوالی او لس شرعي ګزه به يې بر وي، يا په بل عبارت پنځه انګرېزي ګزه به يې اوږدوالی او پنځه انګرېزي ګزه به يې بر وي او ژور والی يې بايد د صاحب د هدايي په قول دومره وي چي په لپه د کولو سره مځکه نه ښکاره کيږي. صاحب د هدايې همدا قول صحيح او معتبر بللی دی

## که چيري پر بدن يو ځای زخم وي، مګر بهيږي نه، آيا په دې سره اودس مات دی که نه، او آيا په دغه زخم سره که کالي ولړل شي مرداريږي که نه؟

**پوښتنه**: که چيري د يو چا پر بدن يو زخم وي، د زخم پر سر لوندوالی موجود وي، مګر بهيږي نه، نو آيا په دې سره اودس مات دی او که نه او همدغه لوندوالی که پر کالو ولګيږي، آيا په دې سره کالي مرداريږي که نه؟

**جواب**: د زخم هغه لوندوالی چي بهېدونکی نه وي د اوداسه ماتوونکی نه دی یعني په دې سره اودس نه ماتیږي لکه فقهاء چي لیکي:

وینقضه خروج کل خارج نجس منه ای من المتوضئ الحی معتادا اولا، من السبیلین اولا الی ما یطهر الـخ. **(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار نواقض الوضوء جلداول صفحه ۱۲۴)**

او بله خبره دا زده کړئ د کوم شي په وتلو سره چي اودس نه ماتیږي هغه مردار هم نه دی لکه فقهاوو چي لیکلي دي: مالیس بحدث لیس بنجس.

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار جلد اول صفحه ۱۳۰)**

یعني په هغه شي چي اودس نه ماتیږي هغه مردار هم نه دی، نو که دومره وینه یا نو د زخم، څخه راووتل چي ونه بهېدل، دا مرداره نه ده. نو که په دې سره کالي ولړل شول پرېولل یې واجب نه دي، ځکه چي دا د فقهي یوه مسلمه قاعده ده چي په کوم شي سره اودس نه ماتیږي هغه مردار هم نه دی لکه درمختار چي لیکي:

وکل ما لیس بحدث اصلا کقیئ قلیل ودم لوترک لم یسل لیس بنجس عند الثانی وهو الصحیح رفقًا باصحاب القروح. **(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار نواقض الوضوء جلد اول صفحه ۱۳۰)**

**پوښتنه**: په څومره وینو یا په څومره قي سره کالي مرداریږي؟



**جواب**: لومړی باید دا خبره زده کړئ چي د کم شي په وتلو سره چي اودس ماتیږي هغه مردار دی، او د کوم شي په وتلو سره چي اودس نه ماتیږي هغه شي مردار نه دی لکه فقهاوو چي ویلي دي: **مالیس بحدث لیس بنجس.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار جلد اول صفحه ۱۳)**

یعني په هغه شي چي اودس نه ماتیږي، هغه مردار هم نه دی، نو که دومره وینه د زخم څخه راووتل چي ونه بهېدله، یا دومره قی یې وواهه چي په ډکه خوله نه ؤ، نو باید ووایم چي نه دغه اندازه وینه مرداره ده او نه دغه اندازه قی مردار دی، نو که په دې سره کالي ولړل شول، پرېولل یې واجب نه دي.

او که د زخم څخه دومره وینه راووتل چي وبهېدله او یا یې په ډکه خوله قی وواهه نو باید ووایم چي هم دغه وینه او هم دغه قی مردار دی او پرېولل یې واجب دي، نو که یې د ډکي خولې قي وهلو څخه وروسته ددې لپاره چي خوله پرېولي پر لوټه خوله کښېښودل، نو دغه لوښی مرداریږي یعني باید په دغه صورت کي په لپه سره اوبه راواخلي او خوله په پرېولي.

**(ردالمحتارجلد اول صفحه ۱۴۵)**

دلته سوال پیدا کیږي چي که د یو سړي د زخم څخه لږ لږ وینه راوتله او ده پاکوله دې ته یې نه پرېښودل چي وبهیږي آیا په دې سره اودس مات دی او که نه؟

ددې جواب ورکول کیږي چي که د زخم څخه لږ لږ وینه راوتله او سمدلاسه ده پاکوله، دې ته یې نه پرېښودل چي وبهیږي، نو دغه سړی دي په خپل زړه

کي دا فکر وکړي چي که مي دغه وينه پاکه کړې نه وای بهېدله، نو اودس يې مات دی او که دده په فکر سره دا وينه دومره نه وه چي بهېدلې دي وای، نو بيا يې نه اودس ماتيږي، او نه يې هغه ټوکر مرداريږي چي ده وينه په پاکه کړې ده. د کوچني د شيدو د قي وهلو هم همدا حکم دی . که په ډکه خوله ؤ مردار دی او که نه ؤ مردار نه دی يعني کالي نه په مرداريږي .

(ردالمحتار جلد اول صفحه ۱۴۲)

د حضرت امام محمد رحمه الله څخه روايت دی، دی مبارک وايي که چيري دغه نجاست چي ماتوونکی نه دی په اوبو کي ولويږي، نو اوبه مرداريږي او که پر کالو ولګيږي کالي نه په مرداريږي

(فتاوی دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ۲۰۳)

**که چيري پر بدن زخم ؤ، مګر بهېدی نـه، خـو کالي دومره په ولړل شـول چـي د يـوه درهـم و اندازې ته ورسېدل آيا په دې صورت کـي کـالي مرداريږي او که نه؟**

**پوښتنه**: تاسي مخکي وويل که چيري پر بدن يو ځای زخم ؤ، او د زخم په سر کي لوندوالی موجود ؤ، مګر دغه لوندوالی بهېدی نه، نو پـه دې سره نه اودس ماتيږي او نه کالي په مرداريږي اوس زموږ پوښتنه داده که چيري په



دغه لوندوالي سره کالي پوره يو درهم يا تر دې لا هم زيات ولړل شول، آيا دا هم معاف دي او که ددې جلا حکم دی

**جواب**: څه وخت چي دا معلومه شول چي د مردار والي لپاره سيلان شرط دی يعني د وينې يا نو رابهېدل شرط دی، نو په کوم صورت کي چي سيلان نه وي رامنځته شوی، په هغه صورت کي په دغو وينو يا نو راوتلو سره نه اودس مات دی او نه کالي په مرداريږي ، ځکه چي مخکي مو وويل چي دا د فقهي يو مسلمه قاعده ده کوم شی چي ناقض وضوء نه وي هغه مردار هم نه دی ماليس بحدث ليس بنجس.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار جلد اول صفحه ۱۳۰)

يعني په هغه شي چي اودس نه ماتيږي، هغه شی مردار هم نه دی

بنـه نو څه وخت چي دا معلومـه شول چي دغـه شی نجس نـه دی، نو بيا که مقدار د درهم وي او که تر دې هم زيات وي . فرق نه کوي يعني کالي نـه پـه مرداريږي.

او د حضرت امام محمد رحمه الله څخه روايت دی، دی مبارک وايي که چيري دغه نجاست چي ماتوونکی نه دی په اوبو کي ولويږي، نو اوبه مرداريږي او که پر کالو ولګيږي کالي نه په مرداريږي، درمختار د جوهرې څخه رانقل کړي دي چي په بهېدونکي شيانو کي د امام محمد رحمه الله پر قول فتوی ده او پر کالو او بدن باندي د حضرت امام ابويوسف رحمه الله پر قول فتوی ده يعني پـه هغه نجاست سره چي ناقض وضوء نه وي، بدن او کالي نه مرداريږي، مګر خوراکي

شيان او هم مايعات شيان لكه اوبه او داسي نور شيان په مرداريږي، نو پر دې بناء كه چيري په هغو اوبو كي چي غير ناقض وضوء نجاست ورلوېدلى وي كالي ولوېږي كالي مرداريږي او يا هغه كالي چي غير ناقض وضوء نجاست ورسره لګېدلى وي و پاكو اوبو ته ورولوېږي، اوبه په مرداريږي، مطلب دادى چي په غير ناقض وضوء نجاست سره كالي او بدن نه مرداريږي، مګر خوراكي او مايعات شيان په مرداريږي لكه ردالمحتار چي ليكي:

خلافالمحمد وفى الجوهرة يفتى بقول محمد لومائعا (درمختار) اى كالماء ونحوه اماالثياب والابدان فيفتى بقول ابى يوسف.

**(ردالمحتار نواقض الوضوء جلداول صفحه ۱۳۰)**

## كه چيري دغه سيلان يعني بهېدل په كښېكښلو رامنځته شو، څه حكم يې دى:

**پوښتنه**: آيا په سيلان يعني بهېدلو كي كښېكښل او خپله راوتل فرق لري او كه نه، يعني كه چيري زخم كښېكښل شي او وينه يا نو څيني راوبهيږي او كالي په ولړل شي آيا په دې سره يې اودس مات دى او كالي يې په مردار دي او كه پخپله راوتل د مردار والي لپاره شرط دى؟

**جواب**: ستاسي ددغي پوښتني په جواب كي بايد ووايم چي د اوداسه د ماتېدلو لپاره سيلان شرط دى، هغه كه په هره طريقه سره رامنځته شي، فرق نه كړي، هغه كه په كښېكښلو سره رامنځته شي او كه بې له كښېكښلو رامنځته



شي داوداسه ناقض دى لكه درمختار چي ليكي: **والمخرج بعصر والخارج بنفسه سواء فى حكم النقض على المختار كما فى البزازية الخ.**

**(الدرالمختار على هامش ردالمحتار نواقض الوضوء جلد اول صفحه ۱۲۷)**

## كومو اوبو ته مستعملي ويل كيږي:

**پوښتنه**: اوبه په څه شي سره مستعملي ګرځي يعني كومو اوبو ته مستعملي اوبه ويل كيږي؟

**جواب**: په درې ډوله سره اوبه مستعملي ګرځي:

**لومړى قسم**: هغه وخت اوبه مستعملي ګرځي چي بې اودسه سړى اودس په تازه كړي، يا جنب سړى غسل په وكړي

**دوهم قسم**: هغه وخت اوبه مستعملي ګرځي چي سړى اودس لري، مګر دوهم اودس پر ډول د ثواب تازه كړي يا غير جنب سړى پر ډول د ثواب غسل په وكړي.

**دريم قسم**: هغه وخت اوبه مستعملي ګرځي چي فرض په ساقط شي. مثلاً بې اودسه سړى يوازي مخ، يا يوازي لاسونه يا يوازي پښې پرېولي. يا جنب سړى د خپل بدن يوه برخه په پرېولي، په دې هكله فتح القدير داسي

ليكي: تتبع الروايات فى الملاقات يفيد ان صيرورة الماء مستعملاً باحد امور ثلثة رفع الحدث تقربا او غير تقرب، والتقرب سواء كان معه رفع حدث اولا، وسقوط الفرض عن العضو اهـ ولا تلازم بين سقوط الفرض او ارتفاع الحدث، فسقوطه عن اليد مثلاً يقتضى ان لاتجب اعادة غسلها مع بقية الاعادة، ويكون ارتفاع الحدث موقوفا على غسل الباقى وسقوط الفرض هو الاصل فى الاستعمال، والمفيد لاعتبار الاسقاط مؤثرا فيه صريح التعليل المنقول من لفظ ابي حنيفة رحمه الله تعالى فى كتاب الحسن وهو ما قدمنا من قوله لانه سقط فرضه عنه.

**(فتح القدير كفايه والا جلد اول صفحه ٧٩)**

كه چيري يو سړي اودس درلودی، خو دا چي دا سنت كار دی چي دمخه تر ډوډۍ يا وروسته تر ډوډۍ لاس پرېولي، نو دده هم لاس پرېولی. په دې صورت كي دغه اوبه چي دده د لاس څخه توی شوي دي مستعملي وګرځېدې. دا ځكه چي ده ته ثواب حاصل شو. يعني له جهته د حاصلېدلو د سنت طريقې

همدارنګه كه بې اودسه سړي مخكي تر خوراک كولو يا وروسته تر خوراک كولو لاسونه پرېولل. په دې صورت كي هم دغه اوبه مستعملي ګرځي، مګر كه يو سړي اودس درلود او د يخوالي يا خيرنوالي له وجي يې لاسونه پرېولل په دې صورت كي دغه ددد د لاس څخه توی شوي اوبه مستعملي نه ګرځي په دې هكله البحر الرائق داسي ليكي: **ولو غسل يده** للطعام اومنه صارالماء مستعملاً لانه اقام به قربة لانه سنة، ولو غسل يده من الوسخ لايصير مستعملاً لعدم ازالة الحدث واقامة القربة كذا فى محيط وهذا التعليل يفيد انه كان متوضأ ولابد منه كما لايخفى، وقوله فيما قبله لانه اقام قربة يفيد انه قصد اقامة السنة، فلو لم يقصدها لايصير مستعملاً. **(البحرالرائق جلد اول صفحه ٩١)**.



## د مستعملو اوبو حكم:

**پوښتنه**: د مستعملو اوبو څه حكم دی ايا مرداري دي كه پاكي يعني اودس په روا دی او كه نه؟

**جواب**: مستعملي اوبه پخپل ځان كي پاكي دي يعني شی نه په مرداريږي مګر بل شی هم نه پاكوي او نه هم اودس او جنابت په روا دی.

هغه جنب سړی چي پر بدن يې ظاهري نجاست نه وي، په اوبو غسل وكړي. نو دده د بدن څخه توی شوي اوبه مستعملي ګرځي، يا بې اودسه سړی اودس په تازه كړي، خو په دې شرط چي پر بدن يې ظاهري نجاست نه وي. په دې صورت كي هم دده د اودس د اندامونو څخه توی شوي اوبه مستعملي ګرځي.

د ظاهري نجاست خبره موځكه وكړل چي كه ظاهري نجاست يې د بدن پر يو اندام موښتی وي، په دې صورت كي خو دده د دغه اندامه څخه توی شوي اوبه مستعملي نه. بلكي مرداري ګرځي. نو كومي اوبه چي مستعملي شوې د هغوی حكم دادی چي دوی پخپل ځان كي پاكي دي په دې معنی چي بل شی

نه په مرداريږي، مګر غير طهوري دي يعني بل شی نه په پاکي کيږي او نه اودس او غسل په دغو اوبو روادی، په ډيرو کتابونو کي راغلي دي چي پر دغه قول فتوی ده، همدارنګه امام نووی رحمه الله فرمايلي دي چي صحيح مذهب د حضرت امام شافعي رحمه الله او حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله هم دادی چي مستعملي اوبه طاهر غير مطهر دي.

**(البحرالرائق جلد اول صفحه ۹۴)**

همدارنګه کبيري شرح د منية المصلي ليکي

اما الماء المستعمل الخ عند محمد رحمه الله طاهر غير طهور ای غير مطهر وبه اخذ اكثر المشايخ رحمهم الله تعالى وعليه الفتوى، حتى لو حمله انسان وصلى معه جازت صلوته فاذا اصاب الثوب جازت صلوته فيه ولو توضأ به لم يجز صلوته. **(کبيري صفحه ۱۵۱)**

فتاوی عالمګيري پر دې خبره چي مستعملي اوبه طاهري غير مطهري دي د احنافو حضراتو د اتفاق خبره کوي او داسي ليکي

اتفق اصحابنا رحمهم الله ان الماء المستعمل ليس بطهور حتى لايجوز التوضأ به، قال محمد رحمه الله هو طاهر وهو رواية عن ابى حنيفة رحمه الله وعليه الفتوى. **(عالمګيري جلد اول صفحه ۲۲)**



## که ډولچه، ګلاس يا بل کوچنی لوښی نه وي د بيلر يا ابدان څخه به بې اودسه يا جنب سړی څه ډول اوبه راکاږي:

**پوښتنه**: که چيري ډولچه، ګلاس يا بل کوچنی لوښی نه وي چي د غټ لوښي يعني ابدان، ټانکۍ يا بيلر څخه اوبه راوکاږي اودس يا غسل په وکړي، نو څه به کوي، که چيري لاس په چخ کړي په دې سره خو به د غټ لوښي اوبه مرداري يا مستعملي نه ګرځي؟

**جواب**: که يو سړی بې اودسه يا جنب ؤ، د دوی لاس د ظاهري نجاست څخه پاک ؤ، نو که چيري کوچنی لوښی لکه ډولچه، ګلاس يا دا ډول بل لوښی نه ؤ چي ابدان يا بيلر ته يې ورکښته کړي اوبه ځيني راوکاږي، نو د ضرورت په وجه روا دي چي لاس په ننه باسي اوبه ځيني راوکاږي او خپل اودس په تازه کړي يا غسل په وکړي په دې سره اوبه مستعملي نه ګرځي

**(المبسوط د امام سرخسي رحمه الله جلد اول صفحه ۵۲)**

## که چيري کوچنی لوښی يعني ډولچه يا ګلاس وغټ لوښي يعني ابدان ته ورولوېدی، نو بې اودسه يا جنب سړی به يې څه ډول راکاږي:

**پوښتنه**: که چيري کوچنی لوښی وغټ لوښي يعني ابدان ته ورولوېدی

نو بې اودسه يا جنب سړی به يې څه ډول راکاږي يعني که لاس په ننه باسي په دې سره خو به د ابدان اوبه مستعملې نه ګرځي؟

**جواب**: که چيرې کوچنی لوښی لکه ډولچه، ګلاس، کټوری يا يو بل شی و ابدان ته ورولوېدی، نو که چيرې د بې اودسه سړي يا جنب سړي لاس د ظاهري نجاست څخه پاک يعني په يو مردار شي نه ؤ لړلی، نو په دې صورت کې دغه بې اودسه يا جنب سړی کولای شي چې لاس و ابدان ته ورننه باسي او هغه لوښی راوباسي که څه هم چې تر څنګلو يې ورننه باسي، په دې سره اوبه مستعملې نه ګرځي. (فتاوی عالمګيري جلد اول صفحه ۲۲)

## د لوی حوض اوبه چې لس په لس کې وي يا جاري اوبه وي، په نجاست ورلوېدلو سره تر هغه وخته نه مرداريږي چې د نجاست اثر پکښې ښکاره نه شي:

**پوښتنه**: لس په لس کې حوض چې پنځه په پنځه کې انګريزي ګزه کيږي چې د جاري اوبو په حکم کې دی، يا خپله جاري وياله په څومره نجاست ورلوېدلو سره مرداريږي؟

**جواب**: هغه حوض چې د جاري اوبو په حکم کې وي او يا خپله جاري اوبه د نجاست په ورلوېدلو سره هغه وخت مرداريږي چې د نجاست رنګ يا بوی يا



خوند په اوبو کې ښکاره شي، نو که چيرې په جاري اوبو کې يا هغه غټ حوض کې چې د جاري اوبو په حکم کې دی، د نجاست هيڅ اثر ښکاره نه شي، تر هغو دغه اوبه طاهري مطهري ګڼل کيږي يعني هم اودس او هم غسل او هم بل شی پرېولل په روا دي لکه صاحب هدايه چې ليکي: والماء الجاری اذا وقعت فيه نجاسة جاز الوضوء به اذا لم يرلها اثر اه والاثر هوالطعم او الرائحة اواللون.

همدارنګه فتاوی عالمګيري ليکي: ان الغدير العظيم کالجاری لايتنجس الا بالتغير. (فتاوی عالمګيري جلد اول صفحه ۱۶)

## په غير جاري اوبو کې چې تر لس په لس کم وي که نجاست ورولوېږي ټولې اوبه مرداريږي که څه هم چې د نجاست هيڅ اثر پکښې ښکاره نه شي:

**پوښتنه**: که چيرې په غير جاري اوبو کې چې تر لس په لس کم وي نجاست ولوېږي. خو اثر يې پکښې ښکاره نه شي. نو آيا په دې صورت کې د دغه کوچني حوض اوبه مرداري ګڼل کيږي که نه؟

**جواب**: غير بهېدونکې اوبه چې تر لس په لس لږ وي د لږ نجاست په ورلوېدلو سره ټولې اوبه مرداريږي که څه هم چې د نجاست هيڅ اثر پکښې ښکاره نه شي لکه درمختار چې ليکي: وبتغير احد اوصافه من لون اوطعم

اوريح ينجس الكثير واما القليل ينجس وان لم يتغير.

**(الدرالمختار على هامش ردالمحتار جلد اول صفحه ۱۷)**

همدارنګه امداد الفتاح او البحرالرائق ليکي:

القسم الرابع من المياه ماء نجس وهو الذى حلت يعني وقعت فيه نجاسة وعلم وقوعها يقينا او بغلبة الظن وكان الماء راكدًا اى غير جاريا وكان ما دون عشر فى عشر فينجس وان لم يظهر اثرها فيه. امداد الفتاح، اى لايتوضأ بماء ساكن وقعت فيه نجاسة مطلقا سواء تغير احد اوصافه اولا ولم يبلغ الماء عشرة اذرع فى عشرة.

**(البحرالرائق جلد اول صفحه ۷۴)**

**مسئله**: که چيري په جاري اوبو کي نجاست ولويږي او په دغو جاري اوبو کي د نجاست خوند، رنګ يا بوی ښکاره شي، نو د ويالې دغه اوبه چي د نجاست اثر پکښي ښکاره شوی دی مرداري ګڼل کيږي. خو چي دغه اوبه وبهيږي، د ويالې نوري اوبه پاکي دي يعني صرف دغه اوبه مرداري دي چي نجاست اثر پکښي ښکاره شوی دی لکه عالمګيري چي ليکي: الماء الجارى بعد ماتغير احد اوصافه وحكم بنجاسته لايحكم بطهارته مالم يزل ذلك التغير بان يرد عليه ماء طاهر حتى يزيل ذلك التغير، كذا فى المحيط.

(عالمګيري جلد اول صفحه ۱۸)



## کوچنيان يا سحرايان چي له پاک ځاه څخه اوبه راوکاږي په دې سره ځاه نه مرداريږي:

**پوښتنه**: موږ اورېدلي دي چي سحرايان يا کوچنيان که د پاک ځاه څخه اوبه راوکاږي، نو په دې صورت کي دغه ځاه مردار بلل کيږي، ځکه چي کوچنيان او سحرايان و نظافت ته خاصه پاملرنه نه کوي آيا دغه خبره تر کومه ځايه صحيح ده؟

**جواب**: وروره! هيڅ شک مه دراچوئ هغه ځاه چي کوچنيان او يا سحرايان يعني د سحرا خلک اوبه ځيني راوکاږي په دې سره ځاه نه مرداريږي، تر څو چي ددغه ځاه مرداريدل درته يقيني شوي نه وي، ځکه چي په شک سره پر يو شي د مرداروالي حکم نه کيږي لکه فقهاء چي ليکي:

اليقين لايزول بالشک. **(الاشباه والنظائر ۷۵)**

همدارنګه فتح القدير ليکي:

(فروع) يتوضأ من الحوض الذى يخاف فيه قذر ولا يتيقن ولايجب ان يسال اذالحاجة اليه عند عدم الدليل، والاصل دليل يطلق الاستعمال، وقال عمرؓ حين سال عمرو بن العاصؓ صاحب الحوض اترده السباع يا صاحب الحوض، لاتخبرنا، ذكره فى الموطأ، وكذا اذا وجده متغير اللون والريح ما لم يعلم انه من نجاسته لان التغير قد يكون بطاهر

وقد ينتن الماء للمكث، وكذا البئر التى يدلى فيها الدلاء والجرار الدنسة مالم يعلم يقينًا النجاسة.

(فتح القدير كفايه والا جلد اول صفحه ۷۲)

## ایا د ښځي د شرمګاه څخه لوندوالی راوتل نجس دی که نه؟

**پوښتنه**: د همبستری او کوروالي پر وخت چي کوم رطوبت د ښځي د مخصوص اندام څخه راوځي ایا دغه لوندوالی مردار دی که نه، که چیري مرداروي. نو ایا غلیظه دی که خفیفه، همدارنګه که دغه نجاست کالو ته ورسیږي. ایا په دي سره کالي مرداریږي که نه؟

**جواب**: کوم رطوبت او لوندوالی چي د ښځي د مخصوص اندام څخه د همبستری او کوروالي پر وخت راوزي غلیظه نجاست دی، نو پر کومي جامي یا کالو چي ولګیږي پریولل یې ضروري دي لکه ردالمحتار چې لیکي:

وفى المجتبى اولج فنزع فانزل لم يطهر الا بغسله لتلوثه بالنجس انتهى اى برطوبة الفرج فيكون مفرعا على قولهما بنجاستها (درمختار) قوله برطوبة الفرج اى الداخل بدليل قوله اولج واما رطوبة الفرج الخارج فطاهرة اتفاقًا اه وفى منهاج الامام النووى رطوبة الفرج ليست بنجسة فى الاصح قال ابن حجر فى شرحه وهى ماء ابيض متردد بين



المذى والعرق يخرج من باطن الفرج الذى لايجب غسله بخلاف مايخرج مما يجب غسله فانه طاهر قطعا ومن وراء باطن الفرج فانه نجس قطعا لكل خارج من الباطن كالماء الخارج مع الولد او قبيله.

(ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۸۸)

## پر نجس بدن چي خوله راشي، هغه پاکه ګڼل کیږي:

**پوښتنه**: پر نجس بدن چي د وچېدلو څخه وروسته خوله راشي. نو ایا دا پاکه ګڼل کیږي که مرداره؟

**جواب**: فقهاوو لیکلي دي چي دا مرداره نه. بلکي پاکه ګڼل کیږي لکه درمختار چي لیکي وحكم عرق كسور (درمختار) اى العرق من كل حيوان حكمه كسوره لتولد كل منهما من اللحم.

(ردالمحتار فصل فى البئر جلد اول صفحه ۲۱۰)

فسور آدمى مطلقا ولوجنبا او كافر او امرأة الخ طاهر.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار مطلب فى السور جلد اول صفحه ۲۰۵)

## د محتلم او جنب سړي لاسونه پاک دي ،که یو لوښي ته لاس ور وړي هغه نه مردایږي:

**پوښتنه**: جنب سړی یا هغه سړی چي احتلام ورته پېښ شوی وي که چیري تر غسل کولو مخکي یو لوښي ته لاس ور وړي ایا هغه پاک دی او مردار او ایا ددغه ډول کسانو خپله لاسونه پاک ګڼل کیږي او که نه؟

**جواب**: وروره! د جنب سړي او هغه سړي چي احتلام ورته پېښ شوی وي لاسونه پاک ګڼل کیږي، مګر که يې چیري پر لاسونو مرداري موښتې وه لکه مني او داسي نور...... نو په هغه صورت کي بیا ناپاک دي لکه ردالمحتار چي لیکي **لان الجنابة لاتحل العین. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ابحاث الغسل جلد اول صفحه ۱۶۱)**

عن ابی هریرة قال لقینی رسول الله ﷺ وانا جنب فاخذ بیدی فمشیت معه حتی قعد فانسللت فاتیت الرحل فاغتسلت ثم جئت وهو قاعد فقال این کنت یا اباهریرة فقلت له فقال سبحان الله ان المومن لا یَنجسُ هذا لفظ البخاری ولمسلم الخ.

**(مشکوة باب مخالطة الجنب وما یباح له جلد اول صفحه ۴۹)**

فیه جواز مصافحة الجنب ومخالطته وهو قول عامة الفقهاء واتفقوا علی طهارة عرق الجنب والحائض. **(مرقاة حاشیه مشکوة صفحه ۴۹)**



## په باران کي چي د خلکو د بوټونو او چوټو خاوره د مسجد پر فرش باندي وبهيږي د هغه څه حکم دی؟

**پوښتنه**: یوه ورځ د جمعي د لمانځه پروخت چي د جامع مسجد جماعت ودریدی باران شروع شو، خو دا چي خلکو د مسجد پر فرش باندي خپلي چپلکي او بوټونه ایښي وه، نو ځکه د چپلکو او بوټونو اوبه د مسجد پر فرش باندي وبهېدلې او چي کله باران ودرېدی، نو په دې وخت کي خلکو خپل بوټونه او چوټې راواخیستې او د مسجد څخه ووتل. په دغه ورځ بیا تر مابنامه پوري نور باران ونه شو، که چیري تر دې وروسته نور باران شوی وای، خو ښکاره خبره وه چي فرش پاکېدی، مګر داسي ونه شول. په داسي حالت کي چي د مسجد فرش لوند ؤ خلکو د ماځیګر او مابنام لمونځونه پر وکړل، همدارنګه خلکو اودسونه تازه کړل په لندو پښو پر دغه د مسجد پر فرش او د مسجد پر بوریا یې پښې کښېښوولې آیا په دې سره د مسجد کمبلي او بوریاوي پاکي ګڼل کیږي او که مرداري؟

**جواب**: وروره! فتاوی دارالعلوم دیوبند ستاسي ددې سوال په جواب کي لیکي چي په دې صورت کي هم د مسجد بوریاوي او کمبلي او هم د مسجد فرش پاک ګڼل کیږي لکه فقهاء چي لیکي: **الیقین لایزول بالشک.**

**(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه ۲۲۲)**

## د ناپاکي پنډي جامې د پاکولو طریقه:

**پوښتنه**: پر ناپاکي پنډي جامې که چیري بولي یا نور غیر مرئیه نجاست لوېدلی وي، نو د پرېولو په وخت کي که چیري د جامې نښتېښل تکلیف نه وه. نوایا په درې واري پرېولو او نښتېښلو سره جامه پاکیږي او که نه؟

**جواب**: هو وروره! په دې صورت کي په درې واره پرېولو او نښتېښلو سره دغه جامه پاکه ګڼل کیږي لکه فتاوی عالمګیري چي لیکي وان كانت غير مرئية يغسلها ثلاث مرات كذا في المحيط ويشترط العصر في كل مرة فيما ينعصر ويبالغ في المرة الثالثة الخ.

(عالمګیري الباب السابع في النجاسات جلد اول صفحه ۴۰)

## آیا غیر بهېدونکي وینه اوبه او بدن مرداروي او که نه؟

**پوښتنه**: غیر بهېدونکي وینه که چیري اوبو ته ولوېږي او یا پر کالو ولګیږي نو آیا په دې سره اوبه یا کالي مرداریږي که نه؟

**جواب**: په دې هکله فتاوی دارالعلوم دیوبند داسي لیکي

صحیح او مفتی به قول دادی چي غیر بهېدونکي وینه اوبه،



بدن او کالي نه مرداروي لکه په درمختار کي چي راغلي دي:

وكل ماليس بحدث كقئ قليل ودم لوترك لم يسل ليس بنجس عند الشامي وهو الصحيح كذا في الهداية والكافي وفي شرح الوقاية انه ظاهر الرواية. (ردالمحتار نواقض الوضوء بعد مطلب في حكم كَيِّ الحمصة جلد اول صفحه ۱۳۰)

نو ددې څخه معلومه شوه چي په درمختار کي چي مخکي د جوهري څخه د امام محمد رحمه الله پر قول په مایعاتو کي فتوی رانقل شوې ده هغه ظاهرالروایت نه دی.

(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه ۲۲۴)

## د سپي، پیشي او داسي نورو مردارو حیواناتو د پوستونو حکم:

**پوښتنه**: آیا د پیشي، سپي، شرمښ او داسي نورو حیواناتو پوستونه چي غوښې یې نه خوړل کیږي. وروسته تر دباغت پاک بلل کیږي که نه یعني ددغو شیانو پوستونه په خپل استعمال کي راوستل روا دي که نه. په دې معنی چي سرې جای نماز، سلواغه یا داسي بل شی ځیني جوړولای شي که نه. همدارنګه ددغو حیواناتو د پوستونو خرڅول یا رانیول وروسته تر دباغت روا دي که نه؟

**جواب:** هو د هغو حیواناتو پوستونه چې غوښې خوړل یې حرام وي وروسته تر دباغت پاک بلل کیږي جای نماز، سلواغه او داسي نور هر شی جوړول ځیني روا دي، مګر یو د انسان پوست او بل د خنزیر پوست تر استعمال لاندې نه شي راوستل کېدای. د انسان پوست د هغه د کرامت او عزت له وجې یې تر استعمال لاندې راوستل ناروا دي هغه که د مسلمان پوست وي او که د غیر مسلمان فرق نه کوي ځکه چې الله مطلق انسان ته عزت ورکړی دی لکه چې فرمایي: وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِیٓ اٰدَمَ. **(القرآن)**

او بل د خنزیر پوست نه شي استعمالولای. هغه بیا د نجس العین والي له وجې لکه فقهاء چې فرمایي:

وکل اهاب دبغ وهو یحتملها طهر فیصلی به ویتوضا منه الخ خلا جلد خنزیر فلایطهر وآدمی فلا یدبغ لکرامته. **(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب المیاه جلد اول صفحه ۱۸۷)**

او ستاسي ددې پوښتنې په جواب کې چې آیا د هغو حیواناتو د پوستونو خرڅول او رانیول چې غوښې یې نه خوړل کیږي وروسته تر دباغت روا دي که نه؟ باید ووایم چې وروسته تر دباغت ددغو حیواناتو د پوستونو بیع او شراء ټول جائز دي. هم د مسلمان او هم د غیر مسلمان څخه. درمختار په دې هکله داسي لیکي واعلم انه لیس الکلب بنجس العین عند الامام وعلیه الفتوی الخ فیباع ویو جرو یضمن ویتخذ جلده مصلی ودلوا ولو اخرج



حیا ولم یصب فمه الماء لایفسد ماء البئر ولا الثوب بانتفاضه الخ ولاخلاف فی نجاسة لحمه وطهارة شعره. **(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب المیاه جلد اول صفحه ۱۹۲)**

همدارنګه درمختار د سپي د پوست په هکله لیکي:

واعلم ان الکلب لیس بنجس العین عند الامام وعلیه الفتوی وان رجح بعضهم النجاسة کما بسطه ابن الشحنة فیباع ویوجر ویضمن ویتخذ جلده مصلی ودلوًا الخ.

په شامي کي راغلي دي: قوله وعلیه الفتوی وهو الصحیح والاقرب الی الصواب بدائع وهو ظاهر المتون بحر ومقتضی عموم الادلة فتح.

د درمختار. شامي. بدائع. بحرالرائق او فتح القدیر څخه ددې کار جواز معلومیږي. نو که یو چا جای نماز، سلواغه او داسي نور هر شی ځیني جوړ کړي روا دي د اعتراض وړ نه دی. مګر احتیاطًا داسي کار نه کول بېله خبره ده، فتاوی دارالعلوم دیوبند لیکي که یو چا داسي کار کړی وي. د اعتراض وړ نه دی. مګر احتیاطًا داسي کار نه کول بېله خبره ده، خو په جوازکي یې کلام نه دی په کار

**(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه ۲۰۴)**

## آیا د غیر ماکول اللحم حیواناتو غوښې وروسته تر حلالولو پاکي بلل کیږي که نه؟

**پوښتنه**: موږ اوریدلي دي چي که سپی، خر یا بل داسي حیوان چي غوښي خوړل یې روا نه وي حلال کړل شي، نو په دې صورت کي ددغو حیواناتو غوښي پاکي ګڼل کیږي. آیا دا خبره د شریعت له نظره صحیح ده که نه؟

**جواب**: داسي حیوانات چي غوښي خوړل یې روا نه وي که چیري حلال یعني ذبح کړل شي، نو ددغو حیواناتو د پوستونو استعمال او هم ددغو حیواناتو د پوستونو بیع او شراء ټول جائز دي او ددغو غیرماکول اللحم حیواناتو غوښي تر ذبح کولو وروسته پاکي بلل کیږي، په دې معنی چي که ددغو حیواناتو غوښي ستا په جیب کي وي لمونځ ورسره صحیح دی. لیکن ددغو حیواناتو غوښي خوړل ناروا دي. بلکي د غوښو د پاکوالي په هکله یې لا هم د فقهاوو تر منځ اختلاف موجود دی. ځیني فقهاوو ددغو حیواناتو د غوښو ونجس والي ته ترجیح ورکړې ده لکه درمختار چي لیکي:

وما ای اهاب طهر به بدباغ طهر بذکاة علی المذهب لایطهر لحمه علی قول الاکثران کان غیر ماکول هذا أصح مایفتی به وان قال فی الفیض الفتوی علی طهارته.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب المیاه جلد اول صفحه ۱۸۹)



واعلم انه لیس الکلب بنجس العین عند الامام وعلیه الفتوی الخ فیباع ویو جرو یضمن ویتخذ جلده مصلی ودلوا ولو اخرج حیا ولم یصب فمه الماء لایفسد ماء البئر ولا الثوب بانتفاضه الخ ولاخلاف فی نجاسة لحمه وطهارة شعره. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب المیاه جلد اول صفحه ۱۹۲)

په دې مسئله داسي سر خلاص کړئ:

د مثال په توګه یو سړی راولاړ شي خر یا سپی ذبح یعني حلال کړي. نو ددغه سپي یا خره غوښي خوړل حرام او ناروا دي که څه هم چي پاکي ګڼل کیږي یعني که ستا سره په جیب کي درسره وي او ته لمونځ ورسره وکړې نو لمونځ دي صحیح کیږي، هغه هم د بعضو فقهاوو له رویه مګر ډېر فقهاء دا لا هم نه مني لکه درمختار چي لیکي

وما ای اهاب طهر به بدباغ طهر بذکاة علی المذهب لایطهر لحمه علی قول الاکثران کان غیر ماکول هذا أصح مایفتی به وان قال فی الفیض الفتوی علی طهارته. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب المیاه جلد اول صفحه ۱۸۹)

دا داسي مثال لري لکه خاوري چي خوړل یې ناروا او حرام دي. مګر پاکي خو دي یعني که ستا سره په جیب کي درسره وي لمونځ ورسره صحیح کیږي

## د غیر ماکول اللحم حیواناتو د پوستونو استعمال وروسته تر ذبح کولو بې له دباغته هم روا دي:

**پوښتنه**: موږ اوریدلي دي که چیري سپی، شرمښ خر یا داسي بل حیوان چې غوښې خوړل یې روا نه وي حلال کړل شي او پوست یې وکښل شي. نو ددغه پوست بې له دباغته هم استعمال روا دی آیا دا خبره تر کومه ځایه صحیح ده؟

**جواب**: ددې پوښتني په جواب کې فتاوی دارالعلوم دیوبند د خپل لومړي جلد په ۲۲۲ صفحه کې لیکي:

هو. په ذبح کولو سره ددغو حیواناتو پوستونه بې له دباغته هم پاک بلل کیږي. یعني بې له دباغته یې په استعمال کې راوستل روا دي لکه ردالمحتار چې لیکي. **فجاز ان تعتبر الذکاة مطهرة لجلدة للاحتیاج الیه للصلاة فیه وعلیه ولدفع الحروالبرد وستر العورة بلبسه دون لحمه لعدم حل اکله.**

**(ردالمحتار باب المیاه جلد اول صفحه ۱۸۹)**



## غیر ماکول اللحم حیوان که چیري ښکار کړل شي، په دې صورت کې یې بې له دباغته پوست استعمالول روا نه دي:

**پوښتنه**: که چیري یو سړی سپی، شرمښ، لیوه یا بل دا ډول حیوان چې غوښې یې نه خوړل کیږي په غشي یا د ټوپک په مرمۍ ښکار کړي آیا په دې صورت کې ددغه حیوان پوست بې له دباغته استعمالول روا دي که نه؟

**جواب**: په ذبح کولو سره ددغو حیواناتو پوستونه بې له دباغته هم پاک بلل کیږي یعني بې له دباغته یې په استعمال کې راوستل روا دي. مګر د ټوپک په مرمۍ یا په غشي ویشتلو سره نه ددغه حیوان غوښې او نه یې پوست پاکیږي، ځکه چې په دې کې د ذبح یعني حلالولو قید شته. نو که چیري بې له خنزیره یو بل دا ډول حیوان په غشي وویشتل شي یا د ټوپک په مرمۍ وویشتل شي، نو بې له دباغته ددغه غیر ماکول اللحم حیوان پوست نه شي پاکېدای او که چیري ددغه حیوان غوښې ستا په جېب کې وي لمونځ نه ورسره صحیح کیږي. او د غیر ماکول اللحم حیوان غوښې خوړل خو نه په ذبح کولو او نه په بل ډول سره رواکیږي. بلکې د پاکوالي څخه یې مطلب دادی چې که ستا په جیب کې وي، ته لمونځ ورسره کولای شې

نو که چیري غیر ماکول اللحم حیوان ذبح کړل شي غوښې یې په دې معنی پاکي دي یعني که ته لمونځ ورسره وکړې لمونځ دې صحیح کیږي. مګر که په

غشي وويشتل شي او يا په ټوپک وويشتل شي، نو غوښي يې مرداري دي يعني که ستا په جېب کي وي لمونځ نه ورسره صحيح کيږي او د دغه حيوان د غوښو خوړل خو په دواړو صورتونو کي حرام او ناروا دي، فقهاء ليکي:

وهل يشترط لطهارة جلده كون ذكاته شرعية الخ قيل نعم وقيل لا والاول اظهر. (**الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب المياه جلد اول صفحه ۱۸۹**)

مگر د خنزير پوست په هيڅ صورت نه شي پاکېدای ځکه چي خنزير نجس العين دی او نه د انسان پوست په استعمال کي راوستل کېدای شي هغه که د مسلمان پوست وي او که د کافر، ځکه چي لوی خدای ﷻ ومطلق انسان ته کرامت او عزت ورکړی دی، لکه درمختار چي ليکي: وكل اهاب دبغ وهو يحتملها طهر فيصلى به ويتوضا منه الخ خلا جلد خنزير فلايطهر وآدمي فلا يدبغ لكرامته. (**الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب المياه جلد اول صفحه ۱۸۷**)

ردالمحتار د خنزير د پوست په هکله ليکي

خلا جلد خنزير فلايطهر (درمختار) لانه نجس العين بمعنى ان ذاته بجميع اجزائه نجسة حيا وميتا.

(**ردالمحتار باب المياه جلد اول صفحه ۱۸۸**)



## که چيري پر سپي باندي بسم الله وويل شي او حلال کړل شي نو آيا په دې سره ددغه سپي پوست پاکيږي که نه؟

**پوښتنه**: که چيري پر سپي باندي بسم الله وويل شي او حلال کړل شي او د هغه پر پوست باندي لمونځ وکړل شي، نو آيا دا کار روا دی که نه؟

**جواب**: په دې هکله فتاوی دارالعلوم ديوبند ليکي:

د سپي په نجس العين کېدلو او نه کېدلو کي اختلاف دی، نو کوم فقهاء چي د خنزير په شان ورته نجس العين وايي، د هغوی په نزد په بسم الله سره ذبح يعني په حلالولو سره هم د هغه پوست وغيره نه پاکيږي، مگر کوم فقهاء چي د سپي د نجس العين کېدلو قائل نه دي، د هغوی په نزد د ذبحی يعني حلالولو څخه وروسته د هغه پوست پاک بلل کيږي، د زمري، شرمښ او نورو په ډول او پر همدې قول فتوی ده. فقط

(**فتاوی دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ۲۲۶**)

همدارنگه درمختار ليکي چي پر دې خبره فتوی ده چي سپی نجس العين نه دی لکه چي فرمايي: واعلم ان الكلب ليس بنجس العين عند الامام

وعليه الفتوى وان رجح بعضهم النجاسة كما بسطه ابن الشحنة فيباع ويوجر ويضمن ويتخذ جلده مصلى ودلواً الخ.

په شامي کي راغلي دي قوله وعليه الفتوى وهو الصحيح والاقرب الى الصواب بدائع وهو ظاهر المتون بحر ومقتضى عموم الادلة فتح.

## آيا ناپاک فرش په پرېولو سره پاکېداى شي؟

**پوښتنه**: زموږ فرش مردار شو اوس غواړو چي پاک يې کړو. نو آيا په درې واري اوبو بهولو سره دغه مردار فرش پاکېداى شي که نه؟

**جواب**: هو په درې واري پرېولو سره پاکيږي لکه درمختار چي ليکي

وكذا يطهر محل نجاسة الخ مرئية بعد جفاف كدم بقلعها اى بزوال عينها واثرها ولو بمرة الخ ويطهر محل غيرها اى غير مرئية بغلبة ظن غاسل طهارة محلها بلاعدد به يفتي وقدر ذلک لموسوس بغسل وعصر ثلاثا فيما ينعصر الخ وبتثليث جفاف اى انقطاع تقاطر فى غيره اى غير منعصر. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۰۲)

## آيا بدن بې له مښولو هم پاکېداى شي؟

**پوښتنه**: آيا د بدن د پاکېدلو لپاره مونښل شرط دى که نه؟



**جواب**: اصل خبره د بدن د پاکېدلو لپاره د نجاست لېرې کېدل دي. دا که په مونښلو سره رامنځ ته شي او که بې له مښولو فرق نه کوي، درمختار ليکي

وكذا يطهر محل نجاسة مرئية اما عينها فلا تقبل الطهارة مرئية بقلعها اى بزوال عينها واثرها ولوبمرة اوبما فوق ثلاث فى الاصح الخ.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۰۲)

## يو سړي بولي وکړې، وروسته يې بې له لاس پرېولوخپل لاس د اوبو ولوښي ته ورننه ايستى.

**پوښتنه**: يوه سړي په لوټه، ډېره يا تشناب کاغذ سره اودس وچ کړ. خو لاس ته يې هيڅ نجاست نه دى رسېدلى. دغه سړى راغى، د اوبو ولوښي ته يې لاس ورغوټه کړى. او اوبه يې څيني راواخيستې. اوس پوښتنه داده چي آيا د دغه لوښي اوبه مرداري شوې که نه؟

**جواب**: دا چي تاسي وايا ست د دغه سړي لاس ته هيڅ نجاست نه دى رسېدلى. نو په دې صورت کي د لوښي اوبه نه مرداريږي.

(فتاوى دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ۲۲۸)

## آيا د خنزير يا ګاميښي په تريخي کي دواګاني ګډول روادي که نه؟

**پوښتنه**: زموږ په سيمه کي يوه ناروغي پيدا شوې ده، ډاکټران او طبيبان وايي چي موږ ددې ناروغۍ د علاج لپاره دواياني جوړي کړي دي، خو ددې لپاره په کار دي چي د خنزير يا ګاميښي د تريخي په اوبو کي ګډي کړل شي، نو اوس زموږ د سيمي خلکو ته دا شک ورلوېدلی دی چي تريخی خو حرام دی. د دوايانو ګډېدل د تريخي په اوبو کي څنګه رواکېدای شي. تاسي په دې هکله يو شرعي فتوی راکړئ؟

**جواب**: په دې هکله فتاوی دارالعلوم ديوبند د خپل لومړي جلد په ۲۲۸ صفحه کي داسي ليکي

په هغه صورت کي چي په دغه نجسه دوا کي د ناروغۍ د علاج ګمان غالب وي او بله پاکه دوا هم ددغې ناروغۍ د علاج لپاره نه وي موجوده، نو ځيني فقهاوو د داسي دوايانو د استعمال اجازت ورکړی دی لکه درمختار چي ليکي: اختلف فى التداوى بالمحرم. ففى النهاية عن الذخيرة يجوز ان علم فيه شفاء ولم يعلم دواء اخر الخ. (ردالمحتار باب المياه مطلب فى التداوى بالمحرم جلد اول صفحه ۱۹۴)



## کوم غنم چي حيوانات بولي پر کوي آيا هغه پاک بلل کيږي که ناپاک؟

**پوښتنه**: درين جاګندم وغيره اجناس بذريعه نرګاوان ازکاه الګ مى کشيدند همان وقت نرګاوان در وى بول وبراز ميکنند آن غله بچه طريق پاک خواهد شد؟

**جواب**: آن غله بعد تقسيم وتصرفات وغيره پاک است.

کما لو بال حمرخصها لتغليظ بولها اتفاقا على نحو حنطة تدوسها فقسم او غسل بعضه او ذهب بهبة او اكل اوبيع كما مرحيث يطهر الباقى وكذا الذاهب لاحتمال وقوع النجس فى كل طرف كمسئلة الثوب (درمختار) قوله خصها الخ ليعلم الحكم فى غيرها بالدلالة ابن كمال. (ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۰۲)

## موږ اورېدلي دي چي د غير ماکول اللحم حيواناتو څخه بې له د غوښو د خوړلو نور هر ډول فائده اخيستل روا دي آيا دا خبره صحيح ده؟

**پوښتنه**: آيا دا خبره صحيح ده چي غير ماکول اللحم حيوانات لکه خر، سپی، شرمښ، زمری يا داسي نور که چيري ذبح يعني حلال کړل شي او

بهېدونکي وينه يې ولاړه شي، نو غوښه او پوست يې پاک ګڼل کيږي، يعني يې له خوړلو نور کار ځيني اخيستل کېداى شي؟

**جواب**: هو ورورهٔ که چيرې غير ماکول اللحم حيوانات د شرعي طريقې مطابق ذبح يعني حلال کړل شي، نو د پوست او داسي نورو شيانو استعمالول يې روا دي، او غوښې يې هم پاکي ګڼل کيږي، مګر خوړل يې روا نه دي (لکه خاوري چي پاکي دي. مګر خوړل يې روا نه دي).

**(فتاوى دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ۲۲۹)**

همدارنګه فقهاء ليکي

وكل اهاب دبغ دباغة حقيقة بالا دوية او حكمية كالتتريب والتشميس والالقاء فى الريح فقد طهر وجازت الصلوة فيه والوضؤ منه الا جلد الادمى والخنزير الخ وماطهر جلده بالدباغ طهر جلده بالذكاة وكذلك جميع اجزائه يطهر بالذكاة الا الدم وهو الصحيح كذا فى محيط السرخسى. **(عالمگيري الباب الثالث فى المياه فصل ثانى جلد اول صفحه ۲۳)**

وصح بيع الكلب الخ والسباع (درمختار) قوله والسباع وكذا يجوز بيع لحمها بعد التزكية لاطعام كلب او سنور بخلاف لحم خنزير لانه لايجوز اطعامه محيط لكن على اصح التصحيحين من ان الذكاة الشرعية



لا تطهر الا الجلد واللحم لايصح بيع اللحم شر نبلاليه.

**(ردالمحتار كتاب البيوع باب المتفرقات)**

## پر ناپاکه مځکه د اوبو لوېدل او څاځکي يې کالو ته را غورځېدل:

**پوښتنه**: زموږ د سيمي ډېر خلک په خپلو کورونو کي چرګان ساتي، نو دا چي چرګان د کور په هر ځاى کي مرداري کوي او د سراى ټوله مځکه په مرداري لړلې وي او ددې سيمي مځکه ډېره نمناکه هم ده چنداني نه وچيږي، لمر دومره تېز نه دى چي وچه يې کړي، نو موږ چي کله اودسونه تازه کوو چي پر مځکه اوبه ولوېږي، څاځکي يې زموږ کالو او بدن ته راوغورځي آيا په دې سره زموږ کالي او بدن مرداريږي که نه؟

**جواب**: فتاوى دارالعلوم ديوبند په دې هکله ليکي چي تر خپله وسه پوري کوښښ په کار دى چي د مرداري مځکي څخه څاځکي راونه غورځي او په کومه خبره کي چي عموم بلوى وي په هغې کي د شارع له طرفه د تخفيف حکم هم کيږي. فقط **(فتاوى دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ۲۳۰)**

ردالمحتار په دې هکله داسي ليکي

وعفى الخ بول انتضح كرؤس ابروان كثر باصابة الماء للضرورة الخ وطين شارع وبخارنجس وغبار سرقين ومحل كلاب وانتضاح غسالة

لاتطهر مواقع قطرها فى الاناء عفو درمختار وفى الفتح وماترشش على الغاسل من غسالة الميت مما لايمكنه الامتناع عنه مادام فى علاجه لاينجسه لعموم البلوى.

(ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ٣٠٠)

نو دا چې په ذکر شوې مسئله کې عموم بلوی ده، نو معاف به وي، خو تر خپله وسه پورې کوښښ په کار دی چې دا ډول اودس تازه نه کړل شي چې څاڅکي يې کالو يا بدن ته ورغورځي

(فتاوی دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ٢٣١)

## آيا د فيل بدن او پسخورده پاکه ده که نه؟

**پوښتنه**: موږ اورېدلي دي چې د فيل ظاهري بدن پاک دی. مگر پسخورده يې مرداره ده آيا دا خبره صحيح ده که نه؟

**جواب**: هو، دا خبره صحيح ده، د صحيح مذهب موافق فيل نجس العين نه دی، نو سربېرن پوست يې پاک دی لکه په درمختار کې چې راغلي دي

وافاد كلامه طهارة جلد كلب وفيل وهو المعتمد. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب المياه مطلب فى احكام الدباغة جلد اول صفحه ١٨٩)

مگر پسخورده د فيل نجس مغلظ ده كما فى الدرالمختار وسور خنزير



وكلب وسباع البهائم الخ نجس مغلظ ومنها الفيل كذا فى الشامي.

## ورېښمينه جامه چې په نښتېړلو خرابېږي څه ډول به يې سرې پاکوي؟

**پوښتنه**: ورېښمينه جامه که چيرې په نښتېړلو سره خرابېدل. نو څه ډول به يې سرې پاکوي؟

**جواب**: په دې هکله فتاوی دارالعلوم ديوبند ليکي که چيرې د زيات نرم والي په وجه (يوه جامه) ډېره ونه نښتېړل شي. د جواز گنجايش شته

(فتاوی دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ٢٣٢)

كما فى الدرالمختار ولولم يبالغ لرقته هل يطهر؟ الاظهر نعم الخ للضرورة نهر. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ٣٠٦)

## ناپاکه مځکه چې تر وچېدلو وروسته بيرته لنده شي، نو پاکه به وي که نه؟

**پوښتنه**: دا خو ښکاره خبره ده چې د مځکې پاکوالی. د مځکې وچېدل دي. نو که چيرې ناپاکه مځکه تر وچېدلو وروسته بيا لنده شي. نو آيا د دغه ځای نجاست بيا دوباره راگرځي که نه؟

**جواب**: نه وروره! یو وار چي مځکه وچه شي نوره پاکه ګڼل کیږي. نو که بیرته لنده شي نجاست والی یې دوباره نه راګرځي

**(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه ۲۳۲)**

همدارنګه ردالمحتار لیکي

وتطهر ارض بخلاف نحو بساط بیبسها ای جفافها ولو بریح وذهاب اثرها کلون وریح لاجل صلاة علیها لالتیمم بها لان المشروط لها الطهارة وله الطهورية الخ ثم هل یعود نجسا ببله بعد فرکه؟ المعتمد لا وکذا کل ماحکم بطهارته بغیر مائع (درمختار) ای کالدلک فی الخف والجفاف فی الارض والدباغة الحکمية فی الجلد الخ.

**(ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۸۹، ۲۹۶)**

## څوټي چي کله په بولو سره مرداري شي او بیا وچي شي، نو آیا دغه څوټي په دې صورت کي پاکي ګڼل کیږي که نه او بیا که لندې شي څه حکم یې دی؟

**پوښتنه**: که چیري څوټي په بولو مرداري شي او وچي شي نو آیا دغه څوټي پاکي بلل کیږي که نه او که بیا بیرته لندې شي څه حکم یې دی؟



**جواب**: وروره! د صورت لرونکي نجاست څخه څوټي په موښلو سره پاکیږي او د غیر صورت لرونکي نجاست لکه بولي او داسي نور په پرېوللو سره پاکیږي. نو صورت لرونکی نجاست تر موښلو او ګرولو وروسته په بیا لندېدلو سره نجاست دوباره نه راګرځي په درمختار کي راغلي دي:

**ثم هل یعود نجسا ببله بعد فرکه المعتمدلا الخ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۸۵)**

## پاکه غوښه په دم مسفوح لړل کېدل:

**پوښتنه**: که چیري پاکه غوښه په دم مسفوح ولړل شي څه ډول پاکېدای شي؟

**جواب**: په درې واري پرېولو سره پاکېدای شي. په شامي کي د ظهیریې څخه رانقل شوي دي: ولوصبت الخمر فی قدر فیها لحم ان کان قبل الغلیان یطهر اللحم بالغسل ثلاثا الخ.

**(ردالمحتار باب الانجاس مطلب فی تطهیر الدهن والعسل تحت قوله ولحم طبخ الخ جلد اول صفحه ۳۰۹)**

## د غسل کوونکي څاڅکي په نږدې حوض کي لوېدل:

**پوښتنه**: که چیري یو څوک د مسجد د حوض سره نږدې غسل کوي او

د غسل ځاځکي په حوض کي لويږي، نو په دې صورت کي د حوض اوبه پاکي بلل کيږي که ناپاکي؟

**جواب**: په دې صورت کي د حوض اوبه ناپاکي نه بلل کيږي، بلکې پاکي ګڼل کيږي، هيڅ شک مه دراچوئ لکه درمختار چې ليکي:

وبماء استعمل لاجل قربة الخ اذا انفصل عن عضو وان لم يستقر الخ وهو طاهر ولو من جنب وهو الظاهر. (**الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب المياه جلد اول صفحه ۱۸۵**)

## پخې خښتې څه ډول پاکېداى شي؟

**پوښتنه**: پخې خښتې چې مرداري شي څنګه پاکيږي؟

**جواب**: د پخو خښتو د پاکېدلو طريقه داده چې ښه دې پرېولل شي چې داسي وشول، نور شک مه دراچوئ، خښتې پاکي شوې او تر پرېوللو وروسته که دغو خښتو څخه ځاه تيار کړل شي د ځاه اوبه پاکي دي درمختار ليکي وحكم آجر ونحوه كلبن مفروش وخص الخ كذلك اى كارض فيطهر بجفاف الخ فالمنفصل يغسل لاغير. (**الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۸۷**)



## د يو سړي پر مخ خوله راغله، نو يې په ناپاکه دسمال وچه کړل؟

**پوښتنه**: د يو سړي پر مخ خوله راغله، دغه سړي راولاړ شو په يوه ناپاکه دسمال يې خپل مخ وچ کړ، ددې په وجه دغه ناپاکه دسمال په خولو لوند شو، نو آيا په دې صورت کي د دغه سړي مخ پاک دى که ناپاک؟

**جواب**: لف ثوب رطب نجس فى ثوب طاهر يابس فظهرت رطوبته على ثوب طاهر لكن لايسيل لوعصر لاينتجس.

اذالف الثوب المبلول النجس فى ثوب طاهر يابس فظهرت نداوته الخ لكن لايصير رطبا بحيث يسيل منه شئ بالعصر الخ والاصح انه لايصير نجسا. (**غنية المستملى صفحه ۱۷۱**)

ددې څخه معلومه شول چې که دسمال دومره لوند شي، چې په نښتېړلو سره اوبه ځيني راتوى شي، نو د دغه سړي مخ ناپاکه شو او که په نښتېړلو کي اوبه نه ځيني راتويدې، نو بيا ناپاک نه ورته ويل کيږي

(**فتاوى دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ۲۳۵**)

## پر يو داسي لرګي چې اوبه جذبوي شراب توى شول، ددې د پاکولو طريقه:

**پوښتنه**: زمونږ د دوکان تخت د داسي لرګي څخه جوړ شوى دى چې

اوبه ډېر ژر جذبوي. نو که چیري پر داسي لرګي شراب توی شي او جذب شي. نو آیا دغه تخت په پرېولو سره پاکېدای شي او که نه. ځکه چي موږ خو ځله پرېولی، مګر بدبويي يې لا پاته ده؟

**جواب**: هو دغه تخت په پرېوللو سره پاکيږي او وروسته تر پرېولو چي کومه بدبويي لا پاته وي. هغه لره هيڅ اعتبار نشته. تخت پاک دی

**(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه ۲۳۵)**

ردالمحتار په دې هکله داسي ليکي

ان المتنجس اما ان لایتشرّب فیه اجزاء النجاسة اصلا کالاوانی المتخذة من الحجر والنحاس والخزف العتیق او یتشرب فیه قلیلا کالبدن والخف والنعل او یتشرب کثیراً ففی الاول طهارته بزوال عین النجاسة المرئیة او بالعدد علی مامر وفی الثانی کذلک لان الماء یستخرج ذلک القلیل فیحکم بطهارته واما فی الثالث فان کان مما یمکن عصره کالثیاب فطهارته بالغسل والعصر الی زوال المرئیة وفی غیرها بتثلیثهما وانکان مما لا ینعصر کالحصیر المتخذة من البردی ونحوه ان علم انه لم یتشرب فیه بل اصاب ظاهره یطهر بازالة العین او بالغسل ثلاثا بلاعصر. وان علم تشربه کالخزف الجدید الخ عند ابی یوسف ینقع فی الماء ثلاثا ویجفف کل مرة الخ والثانی اوسع وبه یفتی . درر.

**(ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۰۷)**



## په باران کي د داسي بام اوبه د سړي پر کالو راتویدل چي چرګانو مرداري پر کړې وي:

**پوښتنه**: موږ په خپل کور کي چرګان ساتو، نو کله کله دغه چرګان د خونو بامونو ته وخيږي، ښکاره خبره چي هلته پر بامونو مرداري هم کوي زموږ پوښتنه داده که چيري باران شي او ددغو بامونو څخه چي چرګانو مرداري پر کړې ده اوبه راتوی شي او زموږ پر کالو ومونښلي آيا په دې سره زموږ کالي مرداريږي که نه؟

**جواب**: په دې صورت کي ستاسي کالي او نور شيان نه مرداريږي. هيڅ شک مه دراچوئ **(فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه ۲۳۷)**

همدارنګه ردالمحتار ليکي:

وعلى هذا ماء المطر اذا جرى فى الميزاب وعلى السطح عذرات فالماء طاهر الخ قال فى الحلية ينبغى ان لايعتبر فى مسئلة السطح سوى تغير احد الاوصاف. **(ردالمحتار باب المياه بعد مطلب الاصح انه لايشترط فى الجريان المدد جلد اول صفحه ۱۷۴)**

## د خاه سلواغه په غسل خانه کي اينوول:

**پوښتنه**: زموږ په سيمه کي دا رواج دی چي د خاه سلواغه په غسل

خانه کي ایږدي آیا دغه سلواغه پاکه ګڼل کیږي که نه؟

**جواب**: په شبهې سره پر یو شي د مردار والي حکم نه کیږي، یعني تر څو چي دا په یقیني توګه نه وي معلومه شوې چي دغه ځای چي سلواغه پکښي اینښوول شوې ده مردار دی، تر هغو پر سلواغه د مردار حکم نه کیږي، مګر احتیاط کول لازم دی او په دې صورت کي د سلواغې پر ښخ باندي اوبه وبهوئ (**فتاوی دارالعلوم دیوبند جلد اول صفحه ۲۳۷**)

همدارنګه درمختار لیکي:

وبال حمر خصها لتغليظ بولها على نحو حنطة تدوسها فقسم او غسل بعضه او ذهب بهبة او اكل اوبيع حيث يطهر الباقى وكذا والذاهب لاحتمال وقوع النجس فى كل طرف. (**الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۳۲۰**)

## نظافت او پاکوالی د ایمان د علامو څخه یوه علامه ده:

دا ښه کار نه دی چي سلواغه غسل خانې ته وړل کیږي، راوړل کیږي یو شی که مردار نه وي، خو د مکروبونو څخه ساتل یې هم د شریعت له رویه لازم او ضروري دي، دا ښکاره خبره ده چي د څاهانو څخه د څښلو کار هم اخیستل کیږي، نو که چیري د څاګانو سرونه ایله پرې ښوول شي او بند نه کړل شي او



یا یې د سلواغو سره بې احتیاطي وشي، ددې څخه د ناروغی د پیداکېدلو امکان شته، نو ددې لپاره چي د ناروغۍ مخه ونیول شي خلکو ته په کار دي چي د اوبو، بدن، کالو، کور، کوڅې او بالاخر د ټولې سیمې د نظافت ډېر خیال وساتل شي، ځکه چي جناب رسول الله ﷺ د نظافت پر راوستلو ډېر زور اچولی دی او نظافت یې د ایمان د علامو څخه یوه علامه ګڼلې ده.

که له ځان سره او یا له کور او چاپېریال سره بې پرواهي وشي او سړی ناجوړه شي او یا سیمه او چاپېریال دده له رویه ککړ شي او نور خلک ناروغه کړي، نو د شریعت د مقدس دین له رویه دغه سړی مجرم او د سزا مستحق ګرځي او د چاپېریال د ککړتیا مسئولیت د شریعت له رویه ددغه سړي پر غاړه دی چي د اسلام له نظره دا ډېر غټ مسئولیت دی، مطلب دادی چي د اسلام پاک او مقدس دین پر ټولو خلکو د خپل بدن، جامو، کور، سیمي او چاپېریال ښه ساتنه لازمه کړې ده، او که څوک په دې هکله بې پرواهي وکړي مجرم ګڼل کیږي، خو دا چي شریعت د پاکوالي او ناپاکوالي په مسئله کي د تخفیف حکم کړی دی، ددې وجه داده چي خلک په مشقت او تکلیف کي راګیر نه شي، ځکه چي دین د اسانوالي نوم دی، د سختۍ او افراط نوم نه دی، الله ﷻ په خپل لوی کتاب قرآن کي فرمایي:

يُرِيدُ اللّٰهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَايُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ. (**سورة البقرة الاية ۱۸۵**)

**ترجمه**: ستاسي لپاره الله ﷻ د اسانتیا اراده لري او ستاسي لپاره د سختۍ اراده نه لري

همدارنګه الله ﷻ په سورة النساء کي فرمايي:

**يُرِيدُ اللهُ أَن يُخَفِّفَ عَنكُمْ وَخُلِقَ الانسانُ ضَعِيفًا.**

**(سورة النساء الاية ۲۸)**

**ترجمه**: الله ﷻ ددې اراده لري چې سپک کړي (بار) له تاسي څخه او (ځکه چي) انسان ضعيف پيدا کړل شوی دی.

همدارنګه الله ﷻ په سورة المائده کي فرمايي:

**مَايُرِيدُ اللهُ لِيَجعَلَ عَلَيكُم مِّنْ حَرَجٍ. (سورة المائدة الاية ۶)**

**ترجمه**: الله ﷻ پر تاسي باندي د تکليف (تنګوالي او سختی) د مقررولو اراده نه لري

همدارنګه الله ﷻ په سورة طه کي فرمايي:

**مَآ أَنزَلنَا عَلَيكَ القُرآنَ لِتَشقَى الاَّ تَذكِرَةً لِّمَن يَّخشَى.**

**(سورة طه الاية ۱)**

**ترجمه**: موږ قرآن ددې لپاره پر تا نه دی نازل کړی چي تاسي په مشقت (او تکليف) کي ولوېږئ مګر (نازل کړی مو دی موږ دغه قرآن) تذکره او پند لپاره د هغه چا چي (د الله ﷻ څخه) ببريږي

همدارنګه الله ﷻ په سورة المائده کي فرمايي:

**وَمَاجَعَلَ عَلَيكُم فِى الدِّينِ مِن حَرَجٍ. (سورة الحج آيت ۷۸)**

**ترجمه**: او نه يې دی ګرځولی پر تاسي باندي په دين کي هيڅ حرج (مشقت



او تکليف)

همدارنګه الاشباه والنظائر ليکي:

**وفى الحديث احب الدين الى الله تعالى الحنفية السمحه، قال العلماء يتخرج على هذه القاعدة جميع رخص الشرع وتخفيفاته.**

**(الاشباه والنظائر صفحه ۹۵-۹۶)**

## د سپي ناوړي غليظه نجاست دي:

**پوښتنه**: د سپي ناوړي که چيري جامې ته ورسيږي ايا ددغي جامي سره لمونځ روا دی که پرېولل خامخا غواړي؟

**جواب**: د سپي ناوړي غليظه نجاست دی. نو که چيري تر يوه درهم زيات وکالو ته ورسيږي. نو د لمانځه لپاره ددغه مردار شوي ځای پرېولل فرض دي **والاصح انه ان كان فمه مفتوحا لم يجز لان لعابه يسيل فى فمه فينجس لو اكثر من قدرالدرهم. (ردالمحتار باب المياه جلد اول صفحه ۱۹۲)**

**وعفى الشارع عن قدر درهم وان كره تحريما فيجب غسله ومادونه تنزيها فيسن وفوقه مبطل فيفرض. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۹۲)**

## د ناپاکي جامې د پرېوللو په وخت کې د اوبو څاڅکي پر پاکه جامه لوېدل:

**پوښتنه**: د ناپاکي جامې د پرېوللو په وخت کې که چيرې پر بدن يا جامه څاڅکي ومونښلي نو ايا هغه به ناپاکي وي که نه؟

**جواب**: په دې صورت کې شک مه دراچوئ، مګر ناپاکه جامه بايد ښه په احتياط سره پرېولل شي چې څاڅکي يې بدن ته ونه رسيږي.

**(فتاوی دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ۲۳۸)**

وعفی الخ بول انتضح کرؤس ابرو کذا جانبها الاخروان کثر باصابة الماء للضرورة الخ. **(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار باب الانجاس جلد اول صفحه ۲۹۷)**

## تر اودس تازه کولو وروسته لنده پښه د چوټو د کښلو په ځای کې ايښوول:

**پوښتنه**: يو سړي په مسجد کې اودس تازه کړ او لندې پښې يې د چوټو د کښلو په ځای کې کښېښوولې او بيا ولاړی دننه مسجد ته ننه وتی او د مسجد پر کمبله يې لمونځ وکړ، په دې وخت کې خلکو ورته وويل چې وروره! نه ستا لمونځ صحيح دی ځکه چې پښې دې مرداري شوې او بله خبره



لا داده چې د مسجد کمبله دې هم مرداره کړل، ايا رشتيا هم ددغو خلکو خبره صحيح ده که نه؟

**جواب**: په دې صورت کې ددغه سړي پښې نه دي مرداري، نو چې پښې يې نه شوې مرداري، نو د مسجد فرش او کمبله هم نه ده مرداره (خو احتياطًا داسې کار کول چې لندې پښې د چوټو د کښلو په ځای کې کښېښودل شي ښه کار نه دی). **(فتاوی دارالعلوم ديوبند جلد اول صفحه ۲۳۹)**

ردالمحتار په دې هکله ليکي:

مشی فی حمام ونحوه لاينجس ما لم يعلم انه غسالة نجس (درمختار) ای کما لو مشی علی الواح مشرعة بعد مشی من برجلة قذر لايحکم بنجاسة رجله مالم يعلم انه وضع رجله علی موضعه للضرورة فتح وفيه عن التنجيس مشی فی طين او اصابه ولم يغسله وصلی تجزيه مالم يکن فيه اثر النجاسة لانه المانع الا ان يحتاط اما فی الحکم فلايجب **(ردالمحتار فصل فی الاستنجاء جلد اول صفحه ۳۲۴)**

## پای

د لوی خدایﷻ په فضل پر همدې ځای د حنفي فقهي لومړی جلد پای ته ورسېدی تر دې وروسته ددغه کتاب دوهم جلد پيل کيږي چې په سر کې به يې د پسخوردې بيان راغلی وي.